# خطبات ربانی

از افادات

فصیح اللسان لذیذ البیان
علامہ عبدالحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد دوم

پسند فرمودہ
قائد انقلاب قرآنی شیخ القرآن والحدیث حضرت
العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب
واکابرین اشاعت التوحید والسنہ حفظہم اللہ

مرتب
محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر : دار التوحید والسنۃ
محلہ توحید آباد جلسی صوابی
رابطہ نمبر: 0315-9487699

# خطباتِ ربانی

از افادات

فصیح اللسان لذیذ البیان

علامہ عبد الحق ربانی صاحب حفظہ اللہ

جلد دوم

پسند فرمودہ

قائد انقلاب قرآنی شیخ القرآن والحدیث حضرت

العلامہ مولانا محمد طیب طاہری صاحب

واکابرین اشاعت التوحید والسنہ حفظھم اللہ

مرتب

محمد یعقوب جلسوی عفی عنہ

الناشر : دار التوحید والسنۃ

محلہ توحید آباد، جلسی، صوابی

رابطہ نمبر: 0315-9487699

وَمَا عَلَيْنَآ إِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (سورة یس: 17)



دَ کتاب نوم: خطباتِ ربّاني

از افادات : فصيح اللسان لذيذ البيان علّامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

مرتب : محمد يعقوب جلسوي عفي عنه

کمپوزنګ : ابو نعمان نعمت الله بن محمد زمان (مردان) [+92-348-5004285]

وسيټنګ : ابو عبد الله ضياء الرحمٰن الحنفي (مردان) [+92-307-5134893]

جلد نمبر : دوم

صفحات : 419

طبع دريم : 2022 ستمبر




## اسټاکسټ

دارُ التَّوحِيْدِ والسُّنَّه (محلّه تُوحيد آباد، جَلسئ، صَوابي) [رابطه نمبر: 9487699 -0315]

## دَ میلاویدو نور ځایونه

1- مکتبة الحسن اينډ اشاعت اسلامک ډيټا سنټر محله عيسى خيل نيو روډ مينګوره سوات

2- اسلامي کتب خانه عبد الرحمن پلازه، صوابي

3- مکتبه حسينيه شيوه اډه، صوابي

4- ديوبندي کتب خانه سخاکوټ بازار ضلع ملاکنډ

# فهرست

**نهي عن المنکر... 42**

**ردبدعات...65**

## عيد ميلاد النبي... 84

**ذکر بالجهر (پۀ زوره ذکر کول) ... 129**

**دَسنتو نه روستو پهٔ جمع دعاء کول... 146**



**دَجنازې نه روستو دعاء... 164**

**دَ مړي دَ کور نه خوراک کول .. 180**

**زیارة القبور... 201**

## وادهٔ کول سنت دي... 218



## دَ وادهٔ رسم او رواج... 239

دَمحرم رسم او رواج .. 255

## دَصفر دَمیاشتې رسومات... 271

**دَ شعبان دَ مياشت رسم ... 291**



**په شريعت کښې دَ خوشحالۍ طريقه ... 311**

## پهٔ شريعت کښې دَ غم طريقه ... 334

## دَشيطان وسوسې... 357

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا

(سورة التوبة: 24)

# موضوع

# دَ نبي ﷺ سره مينه لازمه ده

مقام جاسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ نبي ﷺ سره مینه لازمه ده

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لاَ أَوَّلَ لَهُ وَلاَ آخِرَ لَهُ لاَ ضِدَّ لَهُ وَلاَ نِدَّ لَهُ وَلاَ مُمِدَّ لَهُ وَلاَ بَشِيْرَ لَهُ وَلاَ نَذِيْرَ لَهُ وَلاَ وَزِيْرَ لَهُ وَلاَ مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلاَنَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾.(1)

وقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلاَوَةَ الإِيمَانِ: مَنْ كَانَ اللهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا، وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لاَ يُحِبُّهُ إِلاَّ لِلهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُودَ فِي الكُفْرِ، بَعْدَ إِذْ أَنْقَذَهُ اللهُ، مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ».(2)

عزتمندو، حاضرینو، مسلمانانو رونړو! په مخکښي جُمعو کښي په اتّباع دَ محمد مصطفٰی ﷺ باندي دَ قرآنِ کریم آیتونه او احادیث مبارکه دَ رسول الله ﷺ تاسو اوریدلي وو، په دي جُمعه کښي دَ دې بیان دے: چي دَ نبي ﷺ سره محبت او مینه کول دا په هر مسلمان باندي لازم او واجب دي، دَ هغهٔ دَ ذات سره به هم مینه کوې، دَ هغهٔ دَ دین او دَ هغهٔ دَ شریعت سره، او دَ هغهٔ سنت طریقې سره به هم مینه کوې، دا په هر مسلمان باندي لازم او واجب دي.

### دَ هر څهٔ نه محبوب پیغمبر ﷺ

او حدیث پاک کښي راغلي دي، جناب رسول الله ﷺ وئیلي دي: «لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى أَكُونَ

(1) [سورة التوبة: 24].

(2) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب من كره أن يعود في الكفر كما يكره أن يلقى في النار من الإيمان، برقم: (21)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الإيمان، باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان، برقم. (43).

أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ.[1]

"تر هغې وخته پورې يَو انسان دَ كامل ايمان والا نشي جوړيدلے ترڅو پورې چې زهٔ محبوب نهٔ يم جوړ شوے هغهٔ ته دَ هغهٔ دَ مور، پلار نه، دَ هغهٔ دَ اولاد نه، او دَ ټولو خلقو نه"، چې زهٔ هغهٔ ته محبوب شوے نهٔ يم تر هغې وخته پورې هغهٔ سرے دَ كامل ايمان والا نهٔ شي جوړيدے.

علماء كرام، محدثين حضرات ذكر كوي: چې دا خو لازمي خبره ده: چې دَ اولاد سره كومه مينه ده انتهائي ډيره مينه وي، مور پلار سره، دوستانو سره دَ انسان ډيره مينه وي، مينه خو يَو طبعي شے دے، دا خو غير اختياري شے دے، دا خو دَ بنده پخپل اختيار كښې نهٔ وي، چا سره زياته مينه وي، بعضې سره كمه وي، نو دا خو يَو غير اختياري شے دے، داسې شے دے چې دَ چا پهٔ اختيار كښې نهٔ دے.

## دَ حديث مطلب

علماء كرام وائي: دَ حديث دا مطلب دے: دَ مينې نه مراد هغهٔ مينه ده چې يَو طرف ته دَ محمد عربي ﷺ سنت طريقه ده، يَو طرف ته دَ هغهٔ حكم دے، بل طرف ته ستا دَ ښځې حكم دے، نو پهٔ داسې وخت كښې به دَ ښځې حكم پريږدې او طريقه دَ پيغمبر ﷺ هغهٔ به مخكښې كوې، او كهٔ داسې نهٔ وي نو بيا ستا ايمان كامل نهٔ دے، هسې تهٔ ځان ته مومن وائې، دارنګې يَو طرف ته دَ امام الأنبياء حكم دے، او بل طرف ته ستا دَ مور او پلار حكم دے، دَ مور او پلار سره مينه دَ ايمان نښه ده، مور او پلار سره مينه دَ ثواب ذريعه ده، جنت له دَ داخليدو ذريعه ده، دَ مور او پلار حكم چې دَ شريعت مطابق وي نو هغهٔ منل فرض دي، خو ليكن دَ مور او پلار مقام پهٔ شريعت كښې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه روستو دے، كهٔ يَو سنت طريقه راشي او مور پلار درله دَ هغې خلاف حكم كوي تهٔ به دَ هغوي خبره نهٔ منې، تهٔ به پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ باندې عمل كوې.

معاشره كښې كورے! خلق پهٔ يَو طرف روان دي، خلق بدعات كوي، رسومات كوي، شركيات كوي، نو تهٔ به څهٔ كوې، ستا به دا فرض وي: چې تهٔ به پهٔ سنت طريقه دَ نبي ﷺ باندې عمل كوې، او دا دَ ايمان تقاضه ده، دا به نهٔ وائې: چې يرهٔ څهٔ اوكړو اوس معاشره داسې ده، دور داسې دے: چې پهٔ دې كښې پهٔ باندې عمل مشكل دے، دور كهٔ هر رنګې وي، معاشره كهٔ هر رنګې وي، خلق كهٔ هر رنګې وي تهٔ به دَ خپل پيغمبر ﷺ پهٔ طريقه باندې عمل كوې، كهٔ هغه هر ځائے كښې وي.

(1) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب حب الرسول ﷺ من الإيمان، برقم: (15).

## دَ يَو صحابي دَ بادشاه خواته تلل

يَو صحابي دَ بادشاه خواته تلے وو، بادشاه هغهٔ له دَ سرو زرو پهٔ لوښي کښې خوراک راوړو، نو کهٔ دا مونږ او تاسو وے، نو مونږ به وئيل: چې دَ بادشاه دربار ته کوره، او تهٔ ئې خوراک له کينښولے ئې، او دَ سرو زرو پهٔ لوښي کښې ئې درته خوراک راوړے، او تهٔ پکښې لا انکار کوې، هغهٔ صحابي ورته وائي: نا! چې زهٔ دَ سرو زرو پهٔ لوښي کښې خوراک نهٔ کوم، زمونږ پيغمبر محمد مصطفیٰ ﷺ دَ سرو زرو دَ لوښو دَ استعمال نه منع کړې ده، ما له دَ خاورو پهٔ لوښي کښې خوراک راوړئ، دا ئې هغوي ته ښودله چې مونږ دَ خپل پيغمبر پهٔ طريقه باندې دومره پوره عمل کوو، دَ هغهٔ پهٔ حکم دومره پورې عمل کوو، نو کهٔ معاشره کښې خلق يَو کار يَو شان کوي، تهٔ به هغوي ته ښائي چې زهٔ دَ معاشرې تابع نهٔ يم، زهٔ دَ خپل پيغمبر محمد مصطفیٰ ﷺ تابع يم، او دغه دَ حديث معنیٰ ده: چې «لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ»،[1] پيغمبر کريم ﷺ فرمائي: "تر هغې وخته پورې يَو انسان دَ کامل ايمان والا نشي جوړيدلے ترڅو پورې چې زهٔ هغهٔ له محبوب نهٔ يم جوړ شوے دَ هغهٔ دَ مور او پلار نه، دَ هغهٔ دَ اولاد نه، او دَ ټولو خلقو نه"، نو چې دَ تمامو خلقو نه ورته زيات محبوب شوے نهٔ يم تر هغې وخته پورې دے دَ کامل ايمان والا نشي کيدے، دَ ټولو نه به زيات محبت ما سره ساتي.

## دَ عمر فاروق ﷛ دَ نبي اکرم ﷺ خواته تلل

سيدنا عمر فاروق ﷛ دَ نبي ﷺ خوا ته راغلے، امام الأنبياء ته فرمائي: "يَا رَسُولَ اللهِ! لَأَنْتَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ إِلاَّ مِنْ نَفْسِي".[2]

"دَ الله محبوبه پيغمبره ﷺ! دنيا کښې چې هر شے دے دَ هغې ټولو اشياؤ نه تهٔ ما ته ډير زيات محبوب ئې ما سيوا دَ خپل ځان نه".

چې دَ خپل ځان نه راته زيات محبوب نهٔ ئې، وائي: دَ هر شي نه راته گران ئې: اولاد پکښې راغے، مور پکښې راغله، پلار پکښې راغے، ښځه پکښې راغله، خو صرف دومره ده، چې زما نفس نه ما ته زيات محبوب نهٔ ئې.

رونړوا يَو دَ صحابه کرامو ﷡ خبره وه، يَو زما او ستا خبره ده، دَ صحابي چې کومه خبره پهٔ

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب حب الرسول ﷺ من الإيمان، برقم: (15).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور، باب كيف كانت يمين النبي ﷺ، برقم: (6632).

زړهٔ کنبې وي هغهٔ خبره به ئې پهٔ خُلهٔ باندې هم وه، يَو زما او ستا خبره ده چې پهٔ زړهٔ کنبې يَو شان او پهٔ ژبه باندې بل شان، وائي به: يره جي! تا سره مې ډيره مينه دَه، زړهٔ کنبې راته ګران ئې، خو کهٔ لږ درنه اخوا شو، او بل چا سره کينښناستو، نو بيا به تا پسې خبرې کوي، بيا به تا پسې کنځلې کوي بيا به تا پسې غيبت کوي، دا دَ منافقانو صفت دے، دا منافقت دے، الله دې زمونږ او ستاسو نه دا صفت لرې کړي، دا ډير غلط صفت دے، چې تا سره راشي وائي به: ستا ملګرے يم، او چې بل سره لا ړشي نو وائي: ستا ملګرے يم.

**ژبه او زړهٔ يَو کول**

نبي کريم ﷺ فرمائي: چې چا کنبې دا عادت وي چې تا سره راشي وائي: ستا ملګرے يم، بل سره چې ورشي نو وائي: ستا ملګرے يم، ستا خبرې هغهٔ ته اوړي او دَ هغهٔ خبرې تا له راوړي دا ډير ناکاره صفت دے، نبي کريم ﷺ فرمائي: «مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا، كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ».(1)

"څوک چې پهٔ دنيا کنبې دَ دوو (۲) مخونو والا وي...".

تا سره يَو شان خبره کوي او بل سره بل شان خبره کوي، ستا خبره ما ته راوړي او زما خبره تا ته راوړي، نبي ﷺ فرمائي: "دَ داسې انسان به دَ قيامت پهٔ ورځ باندې دَ اُور دوه ژبې وي".

نو څهٔ چې زړهٔ کنبې دي نو هغهٔ پهٔ خُلې وئيل پکار دي، دَ ژبې او دَ زړهٔ کنکشن يَو کول غواړي، هسې نه چې پهٔ خُلهٔ باندې يَو څهٔ وائي، او زړهٔ کنبې دې بل څهٔ وي، دَ صحابه کرامو ﷺ ايمان خو به دا وو: چې دروغ خو هغوي نهٔ وئيل، چې څهٔ به ئې زړهٔ کنبې وو هغهٔ به ئې پهٔ خُلې باندې وئيل، نو نبي ﷺ ته عمر ﷺ فرمائي: "دَ هر څيز نه راته زيات محبوب ئې خو صرف دَ ځان نه راته زيات محبوب نهٔ ئې"، اوس هم خلق وائي: يره جي! تهٔ راته دَ خپل ځان نه زيات محبوب ئې خو چې موقع راشي نو بيا دې خوا له نهٔ راځي.

**واقعه**

يَو زنانه وه، دَ خپل بچي سره ئې ډيره زياته مينه وه، نو هغهٔ بچې ئې بيمار وو، نو دا ورته ناسته وه، ورته وائي: بچې! الله دې ما ته ستا غم نهٔ ښائي، کهٔ تهٔ مړ کيږې نو الله دې ما ستا نه مخکنبې مړه کړي، نو بچے بيمار وو، دا ورته ناسته وه، ورته وائي: بچې زهٔ خو ستا غم نشم برداشت کولے، او کهٔ چرې ستا وخت پوره وي نو ستا پهٔ سر کنبې دې الله ما مړه کړي، يَو کس

(1) أخرجه الدارمي في "سننه" في كتاب الرقاق، باب لح قيل في ذي الوجهين، برقم: (2970).

دا خبره واوريده، چې شپه شوه، دروازه ئې اوډبوله، وائي: دروازه کولاؤ کړئ، هغهٔ بوډئ آبئ ورته وائي: څوک ئې؟ او څهٔ له راغلے ئې، او څهٔ وائې؟ هغهٔ ورته وائي: آبئ! زه ملک الموت يم، وائي: څهٔ کوې؟ وائي: آبئ! ستا هغهٔ سؤال قبول شو، تا چې بيګا کوم سؤال کړے وو، وائي: کوم سؤال؟ وائي: تا وئيلي وو: "چې الله! کهٔ زما دَ دې بچي نيته برابر وي نو دَ دهٔ پهٔ سر کښې ما مړه کړې، نو دَ ځوي نيته دي برابر ده، دَ هغهٔ پهٔ بدله کښې تا مړه کوو"، آبئ ورته وائي: روغ او رنځور پيژنه، ما خو داسې وئيلي وو، خو زما ځوي بيمار دے، زهٔ خو روغه يم. نو بعضې داسې وي: چې پهٔ خُلهٔ باندې وائي، خو چې موقع راشي بيا ئې څوک نهٔ وينې.

**شعر**

يَو شاعر ډير ښکلے شعر وئيلے دے، وائي:

جَزَى اللهُ الشَّدائِدَ كلَّ خَيْرٍ عَرِفْتُ بِها صديقي مِنْ عَدُوِّي

"الله دې مصيبتونو له ډير خير ورکړي، ما پکښې خپل دوست او دشمن اوپيژندو".

چې ما سره ئې مينه وه هغهٔ مې هم اوپيژندو، او چې ما سره ئې بغض او حسد وو هغهٔ هم ما اوپيژندو، نو دا پته دَ تکليف وخت کښې لګي.

**دَسيدنا طلحه ﷺ حالت**

صحابه کرامو ﷺ دَ دې مينې مظاهره کړې وَه، طلحه ﷺ ميدانِ جهاد کښې ولاړ دے، پهٔ امام الأنبياء ﷺ باندې غشي راوريږي، دَ تورو ګزارونه پرې کيږي، دَ نيزو ګزارونه پرې کيږي، سيدنا طلحه ﷺ دَ هغې ډپاره داسې خپل ځان استعمالوي لکه دَ ډال پهٔ شانتې، دا نهٔ کوي: چې ځان روستو کوي، او دَ الله پيغمبر ﷺ مخکښې کوي، نا! بلکه ځان مخکښې کوي او دَ الله پيغمبر ﷺ روستو کوي، حديث کښې راځي: دَ سيدنا طلحه ﷺ لاس باندې څهٔ دپاسه اويا (۷۰) ګزارونه شوي وو، خو لاس ئې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه ښکته شوے نهٔ وو، سيدنا طلحه ﷺ باره کښې راځي: عَنْ قَيسِ بن أبي حازم ﷺ، قَالَ: "رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ الَّتِي وَقَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ شَلاًّءَ".(1)

"قيس بن ابي حازم ﷺ وائي: ما دَ طلحه ﷺ هغهٔ لاس شل ليدلے وو چې پهٔ کوم لاس ئې نبي ﷺ دَ أُحُد پهٔ ورځ بچ کولو".

(1) انظر: "الجمع بين الصحيحين البخاري ومسلم"، برقم: (170).

لاس ئې دَ ډېرو کُزارونو دَ وجې نه شل شوے وو، دا دَ ايمان مظاهره وي، چې زړهٔ کښې کومه خبره وي چې هغهٔ پهٔ خُلې باندې وي.

نو سيدنا عمر ﷺ فرمائي: "اے دَ الله پيغمبره! تهٔ ما ته دَ هر خيز نه زيات محبوب ئې مګر دَ خپل ځان نه راته محبوب نهٔ ئې"، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: «لاَ، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْكَ مِنْ نَفْسِكَ».[1]

"نا! داسې نهٔ ده! قسم مې دې وي پهٔ هغهٔ ذات باندې چې زما ساه دَ هغهٔ پهٔ لاس کښې ده: تر هغې وخته پورې تهٔ دَ کامل ايمان والا نهٔ ئې ترڅو پورې چې زهٔ تا ته دَ خپل ځان نه زيات محبوب شوے نهٔ يم".

**دَ نبي ﷺ باره کښې دَ الله رب العزة شهادت**

قرآنِ کريم کښې الله تعالى دَ خپل پيغمبر ﷺ باره کښې وائي: ﴿النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ﴾.[2]

"پيغمبر محمد عربي ﷺ ډير مهربانه دے پهٔ مومنانو باندې دَ خپلو نفسونو نه".

امام الأنبياء ﷺ پهٔ تا باندې دَ خپل ځان نه ډير مهربانه دے، تهٔ پخپل ځان دومره نهٔ خفه کيږې، لکه څومره چې امام الأنبياء ﷺ پهٔ تا باندې خفه کيږي، نو کم از کم تهٔ ورسره هم دَ خپل ځان نه سيوا مينه اوکره، چې هغهٔ پهٔ تا باندې ستا دَ نفس نه سيوا مئين دے، نو تهٔ هم دَ هغهٔ سره دَ هغهٔ دَ نفس نه سيوا مينه اوکره.

نو نبي ﷺ عمر ﷺ ته فرمائي: «لاَ، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْكَ مِنْ نَفْسِكَ».

"نا! داسې نهٔ ده! قسم مې دې وي پهٔ هغهٔ ذات باندې چې زما ساه دَ هغهٔ پهٔ لاس کښې ده: تر هغې وخته پورې تهٔ دَ کامل ايمان والا نهٔ ئې ترڅو پورې چې زهٔ تا ته دَ خپل ځان نه زيات محبوب شوے نهٔ يم".

سيدنا عمر ﷺ حيران شو چې اوس به څهٔ کوم! کهٔ چرې دا زمونږ او ستاسو پهٔ شان خلق وے نو وئيل به ئې: چې دا خبره خو ډيره ګرانه ده، صرف اوريدلې به مو وه او تلې به وو، سر به مو ښکته کړے وے، سيدنا عمر ﷺ لږ غوندې سر ښکته کړو، امام الأنبياء محمد رسول الله ﷺ ته وائي: "فَإِنَّهُ الآنَ، وَاللهِ، لأَنْتَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ نَفْسِي".

---

(1) اخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور، باب كيف كانت يمين النبي ﷺ، برقم: (6632).

(2) [سورة الأحزاب: 6].

"يقينًا شان دا دے: اوس قسم پهٔ الله تهٔ خامخه ما ته دَ خپل ځان نه هم زيات محبوب ئي"، اوس زما تا سره دومره محبت شو چې دَ نفس نه زيات محبت شو، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: «الآنَ يَا عُمَرُ».[1]

"اے عمره! اوس تهٔ کامل ايمان والا شوې".

نو پيغمبر ﷺ ورته څهٔ وائي؟ وائي: چې کلهٔ زهٔ تا ته دَ خپل ځان نه هم زيات محبوب شوم نو اوس تهٔ کامل ايمان والا شوې، اوسه پورې تهٔ کامل ايمان والا نهٔ وې.

عزتمندو، مسلمانانو! ايمان به هله کامليږي چې مونږ او تاسو دَ امام الأنبياء ﷺ سره دَ خپل ځان نه زياته مينه اوکړو. "نفس" نه مراد دا دے: چې خپل خواهش روستو کړو او دَ امام الأنبياء ﷺ طريقه او سنت مخکښې کړو.

**خواهشات پريښودل**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[2]

"تر هغې وخته پورې يو سړے دَ کامل ايمان والا نشي کيدے ترڅو چې دَ هغهٔ تمام خواهشات دَ هغې دين نهٔ دي تابع شوي کوم دين چې ما راوړے دے".

زما او ستا دَ نفس خواهش دے چې ګيره اوخرَيُو، دَ امام الأنبياء محمد مصطفیٰ ﷺ حکم دے: «خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ: وَفِّرُوا اللِّحَى، وَأَحْفُوا الشَّوَارِبَ».[3]

"دَ مشرکينو خلاف اوکړئ، ګيره پريږدئ او بريتونه کټ کړئ".

زما او ستا خواهش دا دے: چې ګيره خرايُو او بريت پريږدو، دَ يهودو او نصاراؤ خلاف اوکړئ، ګيرې پريږدئ او بريت کم کړئ، او نن زما او ستا خواهش دا دے: چې ګيره اوخرَيُو او بريت پريږدو، دَ نفس تابعداري به نهٔ کوو، بلکه دَ محمد رسول الله ﷺ تابعداري به کوو، پهٔ خُلې خو زمونږ دا دعوىٰ ده: چې دَ نبي ﷺ به منو خو زړهٔ چې دا نهٔ وائي، زما زړهٔ دا غواړي: چې زما مخ دې صفا وي، او امام الأنبياء ﷺ وائي: چې زما دَ امتي پهٔ مخ دې ګيره وي، زما دَ خپل نفس سره دومره مينه نشته خومره چې دَ الله رسول ﷺ زما دَ نفس سره مينه ده، ما او تا خپل خير او شر باندې نهٔ پوهيږو، امام الأنبياء ﷺ زمونږ او ستاسو پهٔ خير او شر باندې پوهيدو، ما او تا ته خو صرف ظاهري ښکاري، پيغمبر پاک ﷺ ته خو پته وه؛ ځکه الله ورته وحي کوله.

(1) أخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور، باب كيف كانت يمين النبي ﷺ، برقم: (6632).
(2) أخرجه البغوي في "شرح السنة" في كتاب الإيمان، باب رد البدع والأهواء، برقم: (104).
(3) أخرجه البخاري في كتاب اللباس، باب تقليم الأظفار، برقم: (5892).

## دَ نبي ﷺ ارشاد مبارکه

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً، وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيراً».[1]

"کهٔ چرې تاسو زما پشان پوهیدئ لکه څنګه چې زهٔ پوهیږم ډیر لږ به تاسو خاندلي وئ او ډیر زیات به تاسو ژړلي وئ".

هغهٔ پیغمبر پاک ﷺ چې الله دَ هغهٔ باره کښې فرمائي: ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ﴾.[2]

"زما محبوبه پیغمبره! نهٔ دے لیږلے مونږ تا لره مګر رحمت دپاره دَ ټولو مخلوقاتو".

دَ هغهٔ راتلل زمونږ او ستاسو دپاره لوئي رحمت دے، چې هغهٔ زمونږ دَ نفسونو نه پهٔ مونږ باندې زیات مهربانه دے؛ ځکه مونږه خپل نفس پهٔ دنیا کښې صرف دَ دنیا دَ نقصاناتو نه بچ کوو، او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ مقصد دا وو: چې دنیا کښې هم مونږه اوچت یُو، او آخرت کښې هم مونږه اوچت یُو، هغهٔ محمد عربي ﷺ زمونږ دَ دنیا دَ جوړولو کوشش هم کوي او زمونږ دَ آخرت دَ آبادولو کوشش هم کوي، نو زمونږ دَ دې خپل نفس سره ډیره مینه ده او کهٔ دَ الله دَ پیغمبر ﷺ راسره ډیره مینه ده؟ مونږ وایُو: دنیا دې خائسته تیره شي نو خیر دے کهٔ آخرت کښې دَ جهنم هرې کندې له غورځیږو، دَ الله پیغمبر ﷺ وائي: نا! زما امت دې جهنم له نهٔ غورځیږي، دَ شپې به روان وو، دَ ورځې به روان وو، هر وخت به نبي ﷺ خلقو له دعوت ورکولو، او خلق به ئې دَ جهنم دَ عذاب نه بچ کول، دَ جهنم دَ عذابونو نه به ئې یَرول، او دَ جنت بشارتونه به ئې ورکول، او دغه ناپوهه خلقو به ورسره جنګونه کول، دَ دوي اصلاح به ئې کوله، دوي به ورباندې دَ کټو ګزارونه کول، تردې پورې چې دَ خپل پلار نیکهٔ دَ کلي مکه مکرمې نه ئې هم شړلے وو، نو مونږ او تاسو پخپل ځان ډیر مئین یُو، او کهٔ دَ الله پیغمبر ﷺ پهٔ مونږ ډیر مئین دے؟ دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ خپل امت سره ډیره زیاته مینه ده، حالانکې هغهٔ زمونږ دَ دنیا او دَ آخرت دَ دواړو خیر خوا دے، نو چې مونږ دَ هغهٔ تابعداري نهٔ کوو نو صحیح ده چې زهٔ خو خپل زړهٔ خوشحاله کړم لیکن ما دَ خپل محبوب پیغمبر محمد مصطفی ﷺ زړهٔ خفه کړو، چې دَ هغهٔ سنت نه ما مخ واړولو، بل طرف ته یهود او نصارٰی چې هغهٔ دَ اسلام سخت دشمنان دي، دَ هغوي سره مې مشابهت اوکړو، چې هغوي دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ سنتو خلاف کولو، نو پکار دا ده: چې دَ هغوي مخالفت اوشي، او عمل پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ باندې اوشي.

(1) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب قول النبي ﷺ: «لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلا ولبكيتم كثيرا»، برقم: (6485).

(2) [سورة الأنبياء: 107].

يَواځې كيره نۀ ده، بلكه چې هر يَو عمل مسلمان دَ خپل پيغمبر ﷺ پۀ طريقه باندې كړي، غمونه دَ هغۀ پۀ طريقه كړو، ښادئ دَ هغۀ پۀ طريقه كړو، معاملات دَ هغۀ پۀ طريقه كړو، لين دين دَ هغۀ پۀ طريقه كړو، بيا تۀ گوره! چې مسلمانانو كښې څنګه اتفاق او اتحاد راځي.

**دَ مسلمانانو دَ ذلت وجه**

نن چې مسلمان ورځ پۀ ورځ ذليله كيږي، ورځ پۀ ورځ مخ پۀ ښكته راځي، ورځ پۀ ورځ خوارېږي وجه څۀ ده؟ مسلمان عمل پرېخودلے دے پۀ شريعت دَ خپل پيغمبر محمد مصطفىٰ ﷺ باندې، خو چې كوم څيز دَ الله پيغمبر ﷺ منع كړے دے هغۀ پۀ مسلمان كښې شته، چې دَ كوم څيز حكم ئې ورته كړے هغۀ پۀ مسلمان كښې نشته، دَ مونځ حكم ئې كړے چې مونځ پنځۀ وخته كوئ، دَ قرآنِ كريم او دَ احاديث مباركۇ نه ثابت دے، مسلمان نه تپوس اوكړه: چې پۀ ورځ او پۀ شپه كښې څومره مونځونه كوې؟ دَ روژې حكم ئې كړے دے، پنجاب طرف ته ورشه چې پته درته اولګي (اوس خو سرحد (خيبر پښتونخوا) كښې هم دا داسې نمونو كمے نشته)، دَ حج حكم ئې كړے دے، پۀ ډېرو خلقو حج فرض دے او حج نۀ كوي، دَ زكوٰة حكم ئې كړے دے، څوک پوره زكوٰة نۀ وركوي، چې دَ څۀ نه ئې منع كړي يُو، هغې كښې مبتلا يُو، دَ سود نه ئې منع كړې ده پۀ هغې كښې مبتلا يُو، زناء حرامه ده، نن څومره خلق پۀ زناء كښې مبتلا دے، چرس حرام دي، څومره خلق ئې څښكي، فوډر حرام دي څومره خلق ئې څښكي، دروغ وئيل حرام دي، نن څومره خلق پۀ دروغو كښې مبتلا دے، غلا حرامه ده، كوم يَو سړے دے چې دَ غلا نه به بچ وي، ډېر كم خلق به وي چې دَ غلا نه به بچ وي، دهوكې حرامې دي، څومره خلق پۀ دهوكو كښې مبتلا دي؟ دا زميندراان چې دَ پلو بوجئ ډكوي، نو داسې طريقې سره ئې ډكوي چې ټوله دهوكه ده، كۀ دَ اوكې او دَ آلوګانې بوجئ اوګورې! نو پۀ سر كښې به يَو شان وي او مينځ كښې به بل شان وي، دا ټوله دهوكه ده، دنيا دے څۀ څيز چې نن مسلمان پۀ دې كندكو كښې اخته دے.

**دَ دنيا باره كښې دَ الله رب العزة اعلان**

الله رب العزة فرمائي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٞۖ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَاۖ وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِٱللَّهِ ٱلۡغَرُورُ﴾.(1)

"اے خلقو! يقينًا وعده دَ الله ريښتيا ده، او دهوكه دې نۀ كړي تاسو لره ژوند دُنيَوي او دَ الله پۀ ذات مو څوک دهوكه باز دهوكه نۀ كړي". آخرت درنه څوک هير نۀ كړي، دَ الله چې كومه وعده ده هغۀ بالكل حقه وعده ده.

(1) [سورة الفاطر: 5].

## دَ ځوانئ باره کښې تپوس

نن زما او ستا ځواني ده نو دَ دې ځوانئ باره کښې به تپوس کيږي، حديث کښې راځي:
«وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَ أَبْلاَهُ».[1]

"دا دومره قيمتي وخت دَ ځوانئ دې په څهٔ کښې زور کړے؟".

دومره قيمتي وخت غوړونه روغ، خپې روغې، سترګې روغې، هر اندام دَ بدن روغ، دَ دې باره کښې به تپوس کيږي، چې تا پهٔ دې ځوانئ کښې زما دَ رضاء دپاره څومره کارونه کړي وو؟ او زما دَ خفه کولو دپاره دې څومره کارونه کړي وو؟ دا ځواني خو پهٔ تا باندې الله راوستې ده، نو تهٔ پکښې دَ الله سره دشمني کوې؟ نن پکښې تهٔ دَ الله پيغمبر ﷺ سره دشمني کوې، دَ شريعت خلاف پکښې کوې، نو ياد اوساتئ! نبي ﷺ سيدنا عمر ﷺ ته فرمائي: اوس تهٔ کامل ايمان والا شوې چې کلهٔ دې ما سره دَ ځان نه هم زياته مينه ده.

عزتمندو! پکار دا دي: چې مونږ او تاسو دَ تولو نه مخکښې دَ الله حکم اومنو، بيا دَ الله دَ پيغمبر ﷺ حکم اومنو، او خپل خواهش روستو کړو، دا دَ مسلمان فريضه ده.

## دَ ايمان دَ خوږوالي موندلو دپاره درې صفتونه

دَ دې وجې نه حديث پاک کښې راځي:
«ثَلاَثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلاَوَةَ الإِيمَانِ».[2]

"درې څيزونه، درې خصلتونه چې کلهٔ پهٔ چا کښې راغلل نو دغه سړے به دَ ايمان پهٔ خوږ والي پوهيږي":

(۱) **اول:** «مَنْ كَانَ اللهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا».

"هغهٔ کس چې الله او دَ الله پيغمبر ﷺ ورته دَ هر څيز نه زيات محبوب وي".

دا صفت چې پهٔ چا کښې راغلے نو دے به دَ ايمان پهٔ خوند باندې پوهيږي، او کهٔ دَ دنيا دَ څيزونو سره ئې محبت وي او دَ الله او دَ الله دَ رسول ﷺ سره ئې مينه نشته نو دا سړے به دَ ايمان پهٔ خوند نهٔ شي پوهيدے.

(۲) **دويم:** «وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لاَ يُحِبُّهُ إِلاَّ لِلهِ عَزَّ وَجَلَّ».

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله ﷺ، باب في القيامة، برقم: (2416).

(2) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب من كره أن يعود في الكفر كما يكره أن يلقى في النار من الإيمان، برقم: (21)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الإيمان، باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان، برقم: (43).

"هغهٔ څوک چې دَ یَو مسلمان سره مینه کوي هغهٔ سره مینه نهٔ کوي مګر دَ الله دَ رضاء دپاره".
هغې دیندارہ خلقو سره مینه کوي چې هغوي دیندارہ دي، مینه ورسره ولې کوي؟ صرف دَ الله دَ رضاء دپاره، دا دَ ایمانِ کامل نښه ده: "اَلْحُبُّ لِلّٰهِ وَالْبُغْضُ لِلّٰهِ".
"مینه دَ چا سره کوې دَ الله دَ رضاء دپاره، بُغض دَ چا سره کوې صرف دَ الله دَ رضاء دپاره".
افسوس پکار دے دَ مسلمان پهٔ حال باندې چې دوي بُغض کوي دَ هغې انسان سره چې هغه دیندارہ دے، مینه دَ هغې چا سره کوي چې کوم سړے بد کاره دے، خلق اُلټه روان دے، هغې چا سره مینه او محبت کوي چې هغهٔ بے دینه دے، او هغې چا سره بُغض او حسد کوي چې کوم سړے دیندارہ دے، آفسوس پکار دے، کهٔ چرې یَو ګیره خریلے ورته دعوت ورکړي، ورته وائي: چې راځه! میلمه به ئې، فاجر او فاسق سړے دعوت ورکړي، دَ حرامو پیسو خوراک ورباندې کوي، نو پهٔ منډه ځي، لیکن دَ کلي هغهٔ معزّز خلق کهٔ تهٔ ورته دعوت ورکړې چې راځئ! دَ الله دَ کتاب ختم دے، قال الله او قال الرسول بیانیږي، نو بیا به پکښې دوي یَو هم نهٔ وینې، وجه دا ده: چې بُغض او حسد پهٔ مخه اغستې دي، آفسوس پکار دے، دَ ایمانِ کامل نښه خو دا ده: چې مینه هم دَ الله دَ رضاء دپاره، بُغض هم دَ الله دَ رضاء دپاره، نو تا طریقه بدله کړه بُغض دَ هغې چا سره کوې چې دَ هغهٔ سره دَ الله مینه ده، او مینه دَ هغې چا سره کوې چې هغهٔ دَ الله دَ دین دشمنان دي.

(۳) **دریم:** نبي ﷺ فرمائي: «وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُودَ فِي الكُفْرِ، بَعْدَ إِذْ أَنْقَذَهُ اللهُ مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ».[1]
دَ ایمان پهٔ خوند به هغهٔ څوک پوهیږي: "چې هغهٔ بد ګنړي چې کفر ته واپس شي پس دَ هغې نه چې الله ورله دَ دې کفر نه خلاصون ورکړے دے، لکه څنګه چې دے اُور ته غورځیدل بد ګنړي".
لیکن ما او تا نهٔ پوهیږو او پهٔ خبرو خبرو کښې کافران شو، دَ فقهې کتابونه بیا اوګورئ! ډیر خلق دَ دې معمولي معمولي خبرو دَ وجې نه کافران کیږي:

### دَ کیرې پورې ټوقې کول

"احسن الفتاوٰی" دَ مفتي رشید احمد لدهیانوي صاحب ؒ، "فتاوٰی رحیمیه" دَ مولانا

(1) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب من كره أن يعود في الكفر كما يكره أن يلقى في النار من الإيمان، برقم: (21)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الإيمان، باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان، برقم: (43).

مفتي عبد الرحيم لاجپوري ؒ اوکوړئ! ليکلي ئې دي: "چې کيرې پورې توکئ کول، مسخرې کول کفر دے"، يَو سړي کيره پرېخودلې ده، او تۀ وربورې خاندې، کيرې پورې ورپسې خندا کوې، هغۀ دَ الله دَ پيغمبر ﷺ سنت پرېخودلي دي، او تا وربورې اوخاندل، نو تۀ پرې کافر شوې، کلمه اووايه، او دَ نکاح تجديد هم اوکړه، کتاب مې درته اوښودلو، صرف کيره نا! کۀ هر سنت دَ نبي ﷺ پورې دې خندا اوکړه نو تۀ کافر شوې، بيا به کلمه وائې، او نکاح به تازه کوې، دَ دين يَو خبره سپکه ګنړل، دَ دين خبرې پورې خندا او توقې کول دې سره سړے کافر کيږي، مونږ مسلمانان دَ دې خبرو نه غافله يُو، دا درې صفات چې پۀ چا کښې راغلل دَ ايمان پۀ خوند او پۀ مزه به دغه سړے پوهيږي.

**دَ دروغو مينه سبب دَ عذاب**

دَ دې وجې قرآنِ کريم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾.(1)

"اووايه زما پيغمبره! کۀ چرته وي ستاسو پلاران، او ستاسو ځامن او ستاسو رونړه، او ستاسو بيبياني او ستاسو قبيله او ستاسو هغۀ مالونه چې تاسو ګټلي دي، ستاسو هغۀ تجارت چې تۀ دَ هغې دَ کوټه کيدو نه يريږې (يا علماء ذکر کوي: ستاسو هغۀ خور او لور چې تۀ پرې يريږې چې کۀ زۀ پۀ دې مسئلو باندې عمل اوکړم کيدے شي چې خلق مې بدنام کړي، بيا به زما دَ خور، او لور تپوس څوک نۀ کوي، کور کښې به راته پاتې شي، پۀ دې باندې يريږې)، ستا کور، ستا بنګله چې هغۀ تا ته خوښه ده، دا ټول څيزونه راواخله چې دا زيات محبوب وي تاسو ته دَ الله او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه او دَ جهاد کولو نه پۀ لاره دَ الله تعالی کښې، پس انتظار کښې اوسيږئ تردې چې الله خپل حکم نازل کړي، دَ الله دَ حکم پورې انتظار کوئ، او الله هدايت نۀ کوي قوم فاسقانو ته".

علماء کرام مختلف معاني کوي: (۱) يَو معنٰی پکښې دا ده: دَ الله دَ عذاب پۀ انتظار کښې يئ، پۀ تاسو به دَ الله عذاب راځي، چې مال سره دې مينه شته، او دَ الله سره او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ سره دې مينه نشته، اولاد او ښځې سره دې مينه زياته ده، کور سره دې مينه زياته ده او مال، دولت سره دې مينه زياته ده، قوم، قبيلې سره دې مينه زياته ده، دَ الله حکم او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ

(1) [سورة التوبة: 24].

طریقې دې پرېخودې دي، الله وائي: زما دَ عذاب په انتظار کښې اوسيږئ، دا هغهٔ عذاب دے چې مسلمانان ورځ په ورځ وهل خوري او ورځ په ورځ ښکته راځي.
﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾.(1)
"الله توفيق نهٔ ورکوي قوم فاسقانو ته".
دَ فسق فتوٰی پرې الله اولګوله، الله وائي: داسې فاسق قوم له زهٔ هدايت نهٔ کوم، رونړو! دا خبرې سختې دي خو دا دَ ځان نه نهٔ دي، دا دَ قرآنِ کريم فتوې دي، مطلب مې دا دے: چې دا عهد اوکړئ! چې هسې مونږ وايُو: "لا إله إلا الله محمد رسول الله"، چې په دې خپله کلمه خو عمل اوکړو کنه، هغهٔ کار اوکړه چې په هغې الله رضاء کيږي، هغهٔ کار مهٔ کوه: چې په هغې ستا ربّ خفه کيږي، هغهٔ کار اوکړه: چې په هغې ستا پيغمبر ﷺ خوشحاليږي، هغهٔ کار مهٔ کوه: چې په هغې باندې ستا پيغمبر ﷺ خفه کيږي.
ليڪن آفسوس دے صد آفسوس! دَ خپلې ښځې وَ وجې نه، دَ خپل اولاد دَ وجې نه، دَ خپل رشته دار دَ وجې نه، مونږه دَ الله خفه کولو ته تيار يُو، مونږه دَ الله دَ پيغمبر ﷺ خفه کولو ته تيار يُو، خو چې زمونږ نه څوک خفه نشي، دَ قيامت په ورځ به الله له څهٔ جواب ورکوُو، هسې ستاسو نه تپوس کوم، تهٔ سجده چا ته لګوې، تا ربّ چا ته وئيلے دے، تا إلٰه چا ته وئيلے دے، کهٔ چرې دغه شان شي نو بيا خو تا الله ته إلٰه نهٔ دے وئيلے، تا خو بيا دنيا ته إلٰه وئيلے دے.
عزتمندو! سوچ کول غواړي: چې مونږ دا عهد اوکړو: چې هره مسئله چې راځي زهٔ به دَ هغې وضاحت په خپل خپل ځائے باندې کوم، او کهٔ غلطه وي او ما ورته صحيح اووئيله نو إن شاء الله زهٔ به دَ خپلې خبرې نه په لوډ سپيکر توبه اوباسم، او کهٔ صحيح وي نو بيا به ئې منئ؛ عزتمندو! دا ياد اوساتئ! هله به ايمان کامليږي چې مخکښې به دَ الله رضاء طلب کوو، وروسته به دَ نبي ﷺ رضاء طلب کوو.
**دَ نبي ﷺ سره محبت**
حديث کښې راځي: نبي ﷺ ته يَو صحابي راغلے ورته وائي: دَ الله پيغمبره! قيامت به کلهٔ وي؟ نبي ﷺ ورته وائي: «مَا أَعْدَدْتَ لَهَا؟» قَالَ: "مَا أَعْدَدْتُ لَهَا مِنْ كَثِيرِ صَلَاةٍ وَلَا صَوْمٍ وَلَا صَدَقَةٍ".
"تا دَ هغې دپاره څهٔ تيارے کړے دے؟ هغهٔ صحابي ورته وائي: دَ الله پيغمبره! هيڅ تيارے مې ورته نهٔ دے کړے، دومره مونځونه مې هم نشته، دومره نفلونه مې هم نشته، دومره تهجّد او

(1) [سورة التوبة: 24].

روږي مې هم نشته".

خو صرف دومره ده: چې "وَلَكِنِّي أُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ".

"ليکن زما دَ الله او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ سره مينه ده"، نبي ﷺ ورته وائي: «أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ».[1]

"تهٔ به دَ هغې چا سره ئې دَ قيامت پهٔ ورځ باندې چې چا سره ستا پهٔ دنيا کښې مينه او محبت دے".

## دَ محبت فائده او نقصان

کهٔ نن دې دَ انګريزانو دَ طريقې سره محبت دے صبا به دَ انګريزانو پهٔ صف کښې ولاړ ئې، کهٔ نن دې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې سره مينه، محبت ذے صبا به دَ مومنانو پهٔ صف کښې ولاړ يې، اوس دې خپله خوښه ده، او مينه خو هغهٔ وه لکه څنګه چې صحابه کرامو ﷺ کړې وه.

## دَ يوې زنانه دَ نبي ﷺ سره محبت

يَو حديث کښې راځي: يَو زنانه وه پهٔ يَو جهاد کښې دَ هغې پلاړ شهيد شو، رونړه ئې شهيدان شول، خاوند ئې هم شهيد شو، دا څومره درد دے، چې پلار هم شهيد شي، او ورور هم شهيد شي، او خاوند هم شهيد شي!، کهٔ دا زما او ستا دَ دور زنانه وې څومره به پهٔ دې ملک کښې چغې وې، هغه نيک بخته زنانه راغله، دَ احد پهٔ جنګ کښې، هغهٔ زنانه راغله، نهٔ دَ خاوند تپوس کوي، نهٔ دَ ورور تپوس کوي، نهٔ دَ پلار تپوس کوي، تپوس کوي: "مَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟".

"دَ الله دَ پيغمبر ﷺ څهٔ اوشول؟ روغ دے او کهٔ شهيد شوے دے؟".

"قَالُوا خَيْرًا هُوَ بِحَمْدِ اللهِ كَمَا تُحِبِّينَ قَالَتْ أَرِنِيهِ حَتَّى أَنْظُرَ إِلَيْهِ".

"هغوي ورته اووئيل: دَ الله پيغمبر ﷺ بالکل بچ دے دَ الله پهٔ حمد او صفت سره لکه څنګه چې ستا خوښه ده، نو هغې زنانه اووئيل: زما زړهٔ تسلي نهٔ کوي، ما ته لږ دَ الله پيغمبر ﷺ اوښايئ؟".

"فَلَمَّا رَأَتْهُ قَالَتْ كُلُّ مُصِيبَةٍ بَعْدَكَ جَلَلٌ".[2]

"نو کلهٔ ئې چې دَ الله پيغمبر ﷺ اوليدو نو وائي: دَ الله پيغمبره! چې تهٔ روغ ئې او تهٔ ژوندے ئې نو ستا دَ ژوند نه روستو تمام مصيبتونه آسان دي، هغهٔ برداشت کولے شم خو ستا شهادت نشم برداشت کولے". دا دَ هغوي ايمان وو.

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الأدب، باب علامة حب الله عز وجل، برقم: (6171).

(2) انظر: "الشفا بتعريف حقوق المصطفى" للقاضي عياض بن موسى: (22/2).

**څلور بچي شهيدان کيدل**

يَو زنانه ده، دَ هغې پۀ ميدانِ جهاد کښې څلور بچي شهيدان کيږي، هغې زنانه ته خلق وائي: يَو بچے دې شهيد شو، هغۀ زنانه وائي: "إِنَّا لِلهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُون"، وائي: بل بچے دې شهيد شو، بيا هغه وائي: "إِنَّا لِلهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُون"... تردې پورې چې څلور بچي ئې شهيدان شول، او هغۀ وائي: "إِنَّا لِلهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُون"، وائي: پۀ بچو مې څۀ کار نشته خو دا راته اووايئ: چې محمد رسول الله ﷺ بچ دے او کۀ نا؟ دا دَ هغوي مينه وه دَ رسول الله ﷺ سره؛ دغه خو وجه وه چې خپل ځان به ئې دَ تڪليف پۀ وخت کښې مخکښې کولو او دَ الله پيغمبر ﷺ به ئې روستو کولو.

**دَ سيدنا علي ﷺ نه تپوس**

دَ دې وجې نه دَ سيدنا علي ﷺ نه چا تپوس اوکړو، وائي: "كَيْفَ كَانَ حُبُّكُمْ لِرَسُولِ الله ﷺ؟".

"ستاسو دَ الله دَ پيغمبر ﷺ سره څومره مينه وه؟".

سيدنا علي ﷺ ورته فرمائي: "كَانَ واللهِ أَحَبَّ إِلَيْنَا من أَمْوَالِنَا وَأَوْلادِنَا وَآبَائِنَا وأُمَّهَاتِنَا وَمِنَ المَاءِ البَارِدِ عَلَى الظَّمَإِ".(1)

"قسم پۀ الله چې دَ الله پيغمبر ﷺ مونږ ته زيات محبوب وو زمونږ دَ مالونونه او زمونږ دَ اولاد نه، زمونږ دَ پلارانو نه، زمونږ دَ موريانو نه، او دَ يخو اُوبو نه دَ تندې پۀ حالت کښې".

دَ ځان نه راته ډير کران وو، دَ بچو نه راته ډير کران وو، او دَ هغې يخو اوبو نه چې کلۀ سړے ډير زيات تږے دے، پۀ دې اميد دے چې ما ته به کوم ځائے کښې يخې اوبۀ ميلاؤ شي، چې زۀ ئې اوڅښکم تندې پۀ مخه باندې اغستے دے، هغۀ دَ دې تندې دپاره پۀ دغه وخت کښې دې اوبو ته ئې دومره شوق نۀ دے دَ دې اوبو سره دومره مينه ئې نۀ ده لکه څومره چې زمونږه دَ محمد مصطفى ﷺ سره مينه وه، الله دې زمونږ او ستاسو دَ خپل پيغمبر ﷺ سره داسې محبت پيدا کړي.

**دَ کافرانو دَ يَو صحابي رانيول**

يَو صحابي کافرانو رانيولے دے، ورته وائي: ستا خوښه ده... او دغه وخت کښې ئې شهيد کولو، او دا څومره دَ آفسوس مقام دے چې ستا لاسونه او خپې ئې تړلې وي، او کافران ستا نه سر کټ کوي نو دَ سړي پۀ زړۀ کښې به څومره څومره خبرې تيريږي! نو يَو صحابي کافرانو رانيولے دے، او ورته وائي: چې مونږ به اوس تا وژنو، سيدنا زيد بن دثينه ﷺ وو، نو يَو کافر ورته وائي: "ستا دا خوښه

(1) انظر: "الشفا بتعريف حقوق المصطفى" للقاضي عياض بن موسى: (22/2).

ده: چې مونږ تا پرېږدو او ستا په ځائے باندې مونږ دَ امام الأنبياء محمد مصطفٰی ﷺ نه سر کټ کړو؟"، کهٔ دا مونږه او تاسو وَے مونږ به وئیل: چې دَ هغهٔ پهٔ شان خو لس مرهٔ کړه خو چې زهٔ بچ شمه، هغهٔ صحابي چې دَ کافرانو پهٔ لاس کښې دے... ابو سفیان خپلو ملګرو ته وئیلي وو: "چې دَ دې خلقو سره مقابلې مهٔ کوئ، قسم دے چې دَ خپل ځان نه ورته پیغمبر ﷺ ډیر ګران دے، ځکه به تاسو دَ هغې چا سره مقابله اوکړئ چې هغهٔ خپل ځان وژني خو دَ الله پیغمبر ﷺ بچ کوي"، صحابه کرامو ﷺ خو به دَ الله دَ پیغمبر ﷺ توکانړې زمکې ته نهٔ پرېخودلې، دَ الله دَ پیغمبر ﷺ نه وینه راوتې ده، صحابي ته وائي: دا اوغورځوه! هغهٔ اوخښکله، هغهٔ به ئې پهٔ زمکه باندې نهٔ غورځوله، دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ چاراندام هغهٔ اوبهٔ ئې زمکې ته نهٔ دې پرېخودې، داسې محبت ئې وو.

نو هغهٔ صحابي ته وائي: "ستا خوښه ده چې مونږ تا پرېږدو او ستا پهٔ ځائے دَ الله پیغمبر قتل کړو؟"، هغهٔ صحابي ورته وائي: "تاسو خو قتل کول یادَوئ او کهٔ تاسو ما پریدوئ او دَ الله پیغمبر ﷺ پخپل کور کښې ناست وي او دَ هغهٔ پهٔ خپه کښې ازغے ماتیږي زهٔ خپل مرګ برداشت کولے شم خو دَ الله دَ پیغمبر ﷺ پهٔ خپه کښې ازغے ماتیدل نهٔ شم برداشت کولے".

دا مینه وه دَ صحابه کرامو ﷺ دَ نبي ﷺ سره، الله دې مونږ له هم داسې ایمان نصیب کړي (آمین!)، بیا تهٔ ګوره هر کار به تا له آسان وي، ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ﴾.(1)

"پهٔ صبر او مونځ باندې امداد حاصل کړئ، دا صبر ډیر ګران کار دے، دا مونځ ډیر ګران کار دے خو چې څوک دَ الله نه اویریږي نو پهٔ هغهٔ باندې دا ګران نهٔ دے".

کهٔ چرې مونږ او تاسو کښې دَ الله دَ ذات نه یره راغلله نو هر کار به مونږ ته آسان وي، کهٔ یره نهٔ وي راغلې نو هغهٔ آسان کار هم مونږ ته ګران دے.

الله رب العزة دې زمونږ او ستاسو پهٔ اعمالو کښې خیر او برکت واچوي، الله رب العزة دې زمونږ او ستاسو تمام اعمال دَ خپلې رضاء دپاره او پهٔ طریقه دَ محمد عربي ﷺ باندې اوکرځوي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

(1) [سورة البقرة: 45].

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

الٓمٓ ﴿١﴾ أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتْرَكُوا أَن يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ ﴿٢﴾

(سورة العنکبوت: 1-2)

# موضوع

# پهٔ دین قرباني

**بتاریخ: 22-06-2007**

**مقام جلسئ**

**خطیب**

**فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله**

# په دين قرباني

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْه وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْه وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمِ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿الٓمٓ * أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُّتْرَكُوْا أَنْ يَّقُوْلُوْا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ * وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِيْنَ﴾.[1]

عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړوا په سابقه جُمعه کښې تاسو دَ امر بالمعروف او نهي عن المنکر باره کښې وضاحت او تفصيل سره بيان اوريدلے وو، او بيا دا هم بيان شوي وو: چې دينِ اسلام نوم دَ "قربانئ" ورکولو دے، لکه څنګه چې دَ دنيا کار بغير دَ محنت او بغير دَ قربانئ نه نهٔ کيږي دغسې دَ دين کار هم بغير دَ محنت او بغير دَ قربانئ نه نهٔ کيږي، کهٔ چرې يَو سړے وائي: چې زهٔ خپل کور کښې ناست يم او دَ خپلې مرضئ مطابق زندګي به تيروم او بس پهٔ ما کښې به هم دين راځي، او پهٔ دې خلقو کښې به هم دين راځي نو دا خبره صحيح نهٔ ده، دين دَ قربانئ نوم دے، دا به کلهٔ دَ مال قرباني پيش کوې، کلهٔ به دَ جان قرباني پيش کوې او کلهٔ به دَ وخت قرباني پيش کوې، چې څه مطالبه ستا نه ستا ربّ کوي، او هغې ته ضرورت دے، او هغهٔ قرباني تهٔ پيش کوې، نو هله به پهٔ تا کښې هم دين راځي، او پهٔ خلقو کښې به هم دين راځي.

## دَ جنت دعويدار

مونږ او تاسو دعويدار دَ جنت يُو، چې مونږ او تاسو له به الله جنت راکوي، خو رونړوا دا جنت کوړے مفت نهٔ دے، مفت دے او خيراتي دے خو کم از کم دَ هغې چې کوم شرائط او ضوابط دي پهٔ هغې باندې به عمل کول غواړي، کني دَ جنت قيمت هيڅ څوک نشي برابرولے.

(1) [سورة العنكبوت: 1-3].

**پهٔ جنت کښې معمولي ځائې ميلاويدل**

جناب رسول الله ﷺ فرمائيلي وو: «مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا».(1)

"پهٔ جنت کښې دَ چابک هومره ځائے دَ تمامو نعمتونو نه بهتر دے".

نو تهٔ اووايه: چې دَ چابک هومره ځائے دَ تمامې دنيا نه بهتر دے، نو دَ هغې قيمت څوک نشي اداء کولے، صحيح ده چې الله تعالیٰ بهانه کوري، جنت مفت ورکوي، خو څهٔ شرائط او ضوابط ئې دَ هغې دپاره کيخودلي دي، يَو ډير ادنیٰ قيمت، يَو ډير معمولي قيمت هغهٔ الله تعالیٰ پهٔ مونږ باندې کيښودے دے، چې هغهٔ به ما ته راکوئ نو جنت ستاسو دے.

**زمونږ نفس دَ الله دے**

دا زمونږ او ستاسو نفسونه دا زمونږ او ستاسو خپل نفسونه نهٔ دي، بلکه دا مونږ له الله راکړے دے، کهٔ چرې الله مونږ نهٔ پيدا کولو، نو مونږ خپل ځان نهٔ شو پيدا کولے، دا زمونږ او ستاسو مال دا زمونږ او ستاسو نهٔ دے، بلکه دا مونږ او تاسو له الله رب العزة راکړے دے، خو ليکن الله رب العزة وائي: ذا زما درکړے نفس، دا زما درکړے مال زما دپاره استعمال کړه نو جنت به تا له درکړم، څومره آسانه سودا ده.

**دَ جنت قيمت**

دَ دې سودا بيان الله پهٔ قرآنِ کريم کښې کړے دے، الله فرمائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾.(2)

"الله پاک دَ مومنانو نه دَ مومنانو نفسونه او دَ مومنانو مالونه اغستلي دي؛ ځکه چې بدله کښې به هغوي له الله جنت ورکوي".

الله تعالیٰ اغستونکے دے او مومن خرخونکے دے، الله مشتري دے، مومن بائع دے، مومن خرخول کوي، څهٔ شے خرخوي خپل نفس خرخوي، الله تعالیٰ اخستونکے دے، سودا کوي، قيمت ئې دَ سودا څهٔ شے دے؟ قيمت ئې جنت دے، سودا دَ مومن نفس دے، اے مومنه! ربّ کائنات فرمائي: تهٔ دا خپل نفس ما له راکړه، تهٔ دا خپل مال ما له راکړه، زهٔ به تا له جنت درکړم.

نو مطلب مې دا وو: چې دين دَ قربانۍ نوم دے، قرباني به دَ څهٔ پيش کوې؟ کلهٔ به قرباني دَ مال پيش کوې؟ کلهٔ به قرباني دَ بدن پيش کوې، کلهٔ به قرباني دَ وخت پيش کوې، او کهٔ چرې

(1) أخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق، باب ما جاء في صفة الجنة وأنها مخلوقة، برقم: (3250).

(2) [سورة التوبة: 111].

داسې نهٔ وي نو ياد ساته! بيا ستا دا نفس خرڅ نهٔ دے، بيا تا سودا نهٔ ده کړې، بلکه تهٔ دروغ وائې.

**کامياب تجارت**

کلهٔ الله رب العزة فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾.(1)

"اے مومنانو! داسې يَو سودا درته ښائم، داسې يَو عظيم الشان سودا چې تاسو هغهٔ سودا اوکړئ، نو تاسو به دَ دردناک عذاب نه بچ شئ".

ډيرې فائدې والا تجارت دے، هغهٔ تجارت دا دے: ﴿تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾.(2)

"پهٔ الله به ايمان لرئ، دَ الله پيغمبر ﷺ باندې به ايمان لرئ، او دَ هغې نه روستو به دَ الله پهٔ لاره کښې جهاد کوئ، مال به لګوئ، بدن به کړوئ (نو هله به تاسو له جنت ميلاويږي)، کهٔ چرته تاسو پوهيږئ".

نو هله به تاسو ته دَ فائدې والا تجارت ميلاويږي، نو دين هميشه دپاره دَ قربانۍ نوم دے، دين له به قرباني پيش کوې، نو هله به تا کښې دين راځي، هله به پهٔ دې جهان کښې او دې عالَم کښې دين راځي.

**دَ نبي ﷺ دَ الله دَ دين دپاره تکليف برداشت کول**

انبياء کرام عليهم السلام او خصوصًا جناب محمد رسول الله ﷺ چې پهٔ تمامو انبياؤ عليهم السلام کښې اوچت شان والا پيغمبر وو، هغهٔ پيغمبر ﷺ چې هغهٔ دَ الله دوست دے، هغهٔ پيغمبر ﷺ چې دَ هغهٔ تابعداري دَ الله تابعداري ده، هغهٔ پيغمبر ﷺ چې مخکښې ګناهونه ئې هم معاف دي، روستني ګناهونه ئې هم معاف دي، هډو ګناه ترې نه شوې نهٔ ده، تهٔ ترې نه ګناه قبل النبوّة شوې او نهٔ بعد النبوّة شوې ده، دومره لوئي شان والا پيغمبر ﷺ دے، ليکن امام الأنبياء محمد مصطفٰی ﷺ دَ الله دَ دين دَ تبليغ دپاره، دَ الله دَ دين دَ سربلندۍ دپاره، دَ الله دَ دين دَ خوررولو دپاره جناب محمد رسول الله ﷺ کنځلې برداشت کړې دي، کلي نه شړل ئې برداشت کړي دي، وهل ټکول ئې برداشت کړي دي، زخمونه ئې برداشت کړي دي، غاښونه مبارک ئې شهيدان شوي دي، سر مبارک ئې زخمي شوے دے، امام الأنبياء ﷺ لوږې تيرې کړې دي، تندې ئې تيرې کړې دي، ليکن الله چرته هم داسې نهٔ دي وئيلي

(1) [سورة الصف: 10].

(2) [سورة الصف: 11].

چې زما حبیبه! بس کړه، بلکه ربِّ کائنات فرمائي: ﴿وَٱعۡبُدۡ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأۡتِيَكَ ٱلۡيَقِينُ﴾.[1]

اے زما حبیبه! دا کورے دَ یَوې ورځې کار نهٔ دے، دا دَ دوَو ورځو کار نهٔ دے، دا دَ یَو کال کار نهٔ دے، بلکه "عبادت دَ ربّ به تر هغهٔ وخته پورې کوې چې ترڅو پورې تا له مرګ نهٔ دے راغلے".

پیغمبر ته وائي: تر مرګه پورې به ستا دا کار وي چې دَ الله عبادت به کوې.

**دَ مخکښینو انبیاؤ تکالیف**

دَ جناب محمد رسول الله ﷺ نه مخکښې دَ مخکینښنو انبیاؤ علیهم السلام تکالیف اوګوره!

**دَ سیدنا ابراهیم خلیل الله علیه السلام حالت**

سیدنا ابراهیم علیه السلام هغه پیغمبر دے، هغه دَ لوئي مقام والا پیغمبر دے، چې قرآنِ کریم کښې دَ هغهٔ مقام ذکر کوي، دَ دې نه لوئي مقام به بل څهٔ وي؟ چې الله ورته خپل خلیل وئیلے دے، ربِّ کائنات فرمائي: ﴿وَٱتَّخَذَ ٱللَّهُ إِبۡرَٰهِيمَ خَلِيلٗا﴾.[2]

"الله سیّدنا ابراهیم علیه السلام خپل خالص دوست جوړ کړے دے".

"خلیل" هغهٔ چا ته وائي: چې سړے ورته دَ خپل راز خبرې پاش کوي، ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالی خالص دوست دے، هغهٔ ابرهیم علیه السلام څومره تکالیف برداشت کړي دي! خپل کلے ئې پرېښودلے دے، دَ خپل پلار نه تکلیف میلاؤ دے، تولې سختئ برداشت کوي، تول تکالیف برداشت کوي، لیکن ابراهیم علیه السلام ته الله نهٔ وائي: چې بس کړه، ډېر تکلیف درته میلاؤ شو، نور تکلیف مهٔ برداشت کوه، هغهٔ ابراهیم علیه السلام چې دَ دین دَ سربلندئ دپاره، دَ الله دَ توحید خوررولو دپاره، دَ الله حکم خوررولو دپاره او دَ هغې خلقو له دَ رسولو دپاره سیدنا ابراهیم خلیل الله اُور کښې غورځیږي، لیکن ابراهیم علیه السلام دا نهٔ وائي: چې دا خو اُور دے، او دیته به ځان نهٔ غورځوم، بلکه ابراهیم علیه السلام اُور ته غورځیدل برداشت کوي، لیکن دَ دین پرېښودل نهٔ برداشت کوي.

**دَ زکریا او دَ یحیی علیهما السلام حالت**

سیدنا زکریا علیه السلام چې هغه دَ اوسپنې پهٔ اره باندې اره کولے شي، دوه ټوټې کولے شي، لیکن زکریا علیه السلام خپل مشن او خپل کار نهٔ پرېږدي، دارنګې سیدنا یحیٰی علیه السلام اوګوره! هغهٔ دَ اُوسپنې پهٔ اره باندې دوه ټوټې کولے شي، لیکن یحیٰی علیه السلام تر مرګه پورې دَ توحید مسئله نهٔ

(1) [سورة الحجر: 99].

(2) [سورة النساء: 125].

پرېږدي، بني اسرائيلو پۀ سوونو پيغمبران ﷷ پۀ يَو يَو وخت وژلي دي، ليکن الله تعالىٰ دا نۀ دي وئيلي چې بس کړئ، دا ئې نۀ دي وئيلي چې خير دے، مسئله کښې لږه نرمي پيدا کړئ، چې تاسو ته خوک خۀ اونۀ وائي، بلکه هر ځائے کښې الله پيغمبر ﷺ ته حکم کوي: چې پيغمبره! زما خبره صفا صفا بيان کړه، حتّٰی که امام الأنبياء محمد مصطفٰی ﷺ پۀ ډير سخت وخت کښې راغلے وو، دَ عيسٰی ﷺ نه شپږ سوه (۶۰۰) کاله بعد يا پنځۀ نيم سوه (۵۵۰) کاله بعد راغلے وو، چې ټوله دنيا دَ شرکياتو نه ډکه وه.

**دَ پيغمبر ﷺ بعثت پۀ داسې دور کښې وو چې دَ بوتانو عبادت به کيدو...**

يَو صحابي فرمائي: داسې دور پۀ دې خلقو راغلے وو چې دَ بوتانو دَ عبادت نه هغوي ته بل شے محبوب نۀ وو، ټولو کښې محبوب شے هغوي ته دا وو: چې بُت ته به ئې سجده کوله، ليکن الله ربّ العزة خپل پيغمبر ﷺ ته وائي: ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ﴾.[1]

"اے زما پيغمبره! کلک اودرېږه لکه څنګه چې تا ته حکم شوے دے او هغې چا ته هم دا حکم دے: خوک چې تا سره راګرځيدلي دي، هغوي به هم کلک اودرېږي".

کلۀ الله تعالىٰ وائي: ﴿وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ﴾.[2]

"ميلان مۀ کوئ هغۀ کسانو ته چې ظالمان دي، ګني اُور به درته اورسيږي".

ظالمانو طرف ته ميلان اونۀ کړې، کلک اودرېږه، نيغ اودرېږه.

کلۀ ورته الله رب العزة فرمائي: ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾.[3]

"زما حبيبه! صَفا صفا مسئله بيان کړه، څنګه چې درته حکم شوے دے او دَ مشرکانو نه مخ واړوه".

مطلب مې صرف پۀ دې يَو خبره کښې وو: چې دين منوم دَ قربانئ دے، قرباني به پيش کول غواړي، کلۀ به دَ مال قرباني پيش کول غواړي، کلۀ به دَ بدن قرباني پيش کول غواړي، کلۀ به دَ وخت قرباني پيش کول غواړي، چې مونږه وخت پيش کوو؛ ځکه دا عُمر مونږ له الله راکړے دے.

**دَ پنځو(۵) خبرو تپوس**

نبي ﷺ فرمائي: دَ قيامت پۀ ورځ باندې به انسان پخپل ځائے باندې ثابت قدم ولاړ وي، چې ترڅو پورې ترې دَ پنځو (۵) خبرو تپوس نۀ دے شوے:

(1) [سورة هود: 112].

(2) [سورة هود: 113].

(3) [سورة الحجر: 94].

(۱) نو يَو تپوس: «عَنْ عُمُرِهِ فِيمَ أَفْنَاهُ».[1]

"دَ ځوانئ باره کښې دے: چې دا دومره ښُکلې ځوانۍ دې په څهٔ کښې لګولې وه؟".

صرف دَ دنيا په کار کښې دې لګولې وه، ټوله دې دوبئ او سعودي کښې دَ مال ګټلو دپاره لګولې وه؟ او ټوله دې په ګناهونو کښې لګولې وه؟ کار کسب کول خو حرام نهٔ دي، خو داسې خو نهٔ ده کنه چې تا ورته دين پرېښودے وو، دَ ځوانئ باره کښې به تپوس کيږي، چې ځوانۍ دې په څهٔ کښې تيره کړې وه؟

(۲) دويم تپوس: «وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَ أَبْلَاهُ».

"دَ عمر باره کښې به تپوس کيږي: چې دا عمر دې په څهٔ کښې فناه کړے او ختم کړے وو؟".

شپيتهٔ (٦٠) کاله عمر دې تير کړے وو، اويا (٧٠) کاله عمر دې تير کړے وو، سل (١٠٠) کاله عمر دې تير کړے وو، دا عمر تا په څهٔ کښې تير کړے وو؟ دا تپوس به زمونږ او ستاسو نه کيږي، چې زما او ستا نه تپوس اوشي نو ما او تا به څهٔ جواب ورکوو چې چرته جومات ته راغلے نهٔ ئې، او کهٔ چرته راشي نو داسې ټائم له چې امام اودريږي يا اودريدلے وي، او کهٔ چرته بيان يا درس اورېد شي نو بيا په تا نا وخته وي، چې دا ولې اورېد شو؟ دين دَ قربانۍ نوم دے دې له به وخت ورکوې.

(۳) دريم تپوس: «وَمَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَهُ».

"دَ مال باره کښې به تپوس کيږي: چې دا مال دې دَ کوم ځائے نه ګټلے وو؟".

حلال دې راوړے وو، کهٔ حرام؟ دا مال دې څنګه استعمال کړے وو حلال کهٔ حرام؟ ټول عمر دې شوکې ډاکې کړې وې پردۍ مېندې خويندې دې ژړولې وې او کهٔ نه څهٔ حلاله مزدوري دې کړې وه.

(٤) څلورم تپوس: «وَفِيمَ أَنْفَقَهُ».[2]

دا مال خو دې ګټلے وو، "خو دا دې بيا لګولے کوم ځائے کښې دے؟".

کوم ځائے کښې دې خرج کړے، دين خو قرباني غواړي آيا تا چرته په دين مال لګولے وو؟ په دې دين به مال لګوې، کهٔ سحر بازار ته لاړشې نو په سوونو او زرګونو باندې پيسې لګوې

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله ﷺ، باب في القيامة، برقم: (2416).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله ﷺ، باب في القيامة، برقم: (2416).

هغه خير دے، او كۀ دَ دين باره كښې چنده كيږي، او څوك اووائي: "چنده راوړئ"، دَ دين پۀ كار باندې مال اولګوئ نو بيا جيب له ستا لاس نۀ ورځي، پۀ جيب ئې لړمانان كيښنولي وي.

**دَ صحابه كرامو ﷡ حال**

دَ صحابه كرامو ﷡ حال اوګوره! جناب رسول الله ﷺ به چې اعلان اوكړو: چې جومات له چنده راوړئ! جهاد دپاره چنده جمع كيږي، يا دَ بل كار دپاره جمع كيږي، هر صحابي ځي، او دَ خپل كور نه څۀ نا څۀ راوړي، بعضې صحابه كرام ﷡ چې به كور كښې څۀ نۀ وو، وائي: دَ الله پيغمبر ﷺ وئيلي دي، اوس خو به څۀ كول غواړي نورو خلقو سره به لاړل او هغوي له به ئې پۀ مزدوري باندې باغونه اوبۀ كړل، هغه پيسې به ئې راوړې، او نبي ﷺ له به ئې وركړې، كجوره به ئې پۀ مينځ نيمه كړه هغه نيمه ټوټه به ئې راوړله، دَ هغوي دغه وس وو.

اعلان كيږي چې غزوه تبوك له تلل پكار دي: هر سړے خپل وس كوي، غزوه تبوك كران جهاد وو؛ ځكه سفر لرې وو، سورلۍ كمې وې، ګرمي زياته وه، صحابه كرام ﷡ راغلي دي، نبي ﷺ ته وائي: "مونږ له سورلۍ راكړئ، مونږه هم جهاد له ځو؟، غريبانان يُو، سورلۍ راسره نشته، اسلحه او سامان راسره نشته، كۀ چرې څوك څۀ راكوي نو مونږ جهاد له ځو"، كمزوري وه، اسلحه نۀ وه، سورلۍ نۀ وې، نبي ﷺ اوفرمائيل: ﴿لَآ أَجِدُ مَآ أَحۡمِلُكُمۡ عَلَيۡهِ﴾.[1]

"چې ما سره خو دومره سورلۍ نشته چې تاسو پرې سوارۀ كړم".

پيغمبر ﷺ ورته وائي: څه خير دے، تاسو سره څۀ نشته، نو تاسو مۀ ځئ.

هغوي واپس خپلو كورونو ته روان دي؛ قرآنِ كريم دَ هغوي هغه حالت ذكر كوي: ﴿تَوَلَّوا وَّأَعۡيُنُهُمۡ تَفِيضُ مِنَ ٱلدَّمۡعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ﴾.[2]

"واپس روان شول دوي، او پۀ داسې حال كښې چې دَ سترګو نه ئې اوښكې روانې دي پۀ دې باندې خفه دي چې مونږ سره ولې دومره مال نشته چې دَ الله پۀ لار كښې اولګوو".

پۀ دې باندې ژاړي چې دومره مال خو چې راسره وے چې نن مونږ دَ جهاد نه نۀ وے پاتې شوے، او مونږ زمونږ څۀ حال دے، مونږ خو ځان له بهانې كورو.

(٥) پنځم تپوس: «وَمَاذَا عَمِلَ فِيمَا عَلِمَ».[3]

---

(1) [سورة التوبة: 92].

(2) [سورة التوبة: 92].

(3) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله ﷺ، باب في القيامة، برقم: (2416).

دَ قیامت پهٔ ورځ به دا تپوس کیږي: "تا څخپل علم څومره عمل کړے دے".

نو رونړو! دین قرباني غواړي، کلهٔ به دَ مال ضرورت راځي، او کلهٔ به دَ بدن ضرورت راځي، او کهٔ چرې داسې نهٔ وي نو جنت کټل ګران کار دے، صرف پهٔ دې باندې نهٔ کیږي: چې الله رب العزة دې مونږ له جنت راکړي، عملي نمونه به پیش کول غواړي.

**سره امتحان راځي**

قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ﴾.[1]

"آیا تاسو دا ګمان کوئ چې تاسو به کښې جنت ته لاړشئ او تاسو ته لا تر اوسه دَ هغه خلقو حالت نهٔ دے راغلے چې مخکښې تیر شوي ستاسو نه...".

دَ هغوي پهٔ شان سخته به نهٔ وي راغلي، هغه شان تکلیف نهٔ دے راغلے، تاسو هغه لا نهٔ دے برداشت کړے، او تاسو وایئ: چې مونږ به جنت ته لاړ شو، نا! بلکه هغه شان سختې به برداشت کوئ، تکلیف به برداشت کوئ، هله به جنت له ځئ.

هغوي ته څنګه سختۍ، څنګه تکالیف رسیدلي وو؟ نو الله فرمائي: ﴿مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ﴾.[2]

"رسیدلے وو هغوي له تکلیف پهٔ مالونو کښې، او پهٔ بدنونو کښې".

مال کښې هغوي ته تکلیف میلاؤ شوے وو، مال ئې خلقو لوټلے وو، کوروونه ئې ورته سوَزولي وو، غریبي پرې راغلې وه، دَ هغوي بدن ته تکلیف میلاؤ شوے وو، بدن ئې دَ الله دَ دین دپاره ټوټې شوے دے، هغه شان حالت به تاسو هم راځي، چې تاسو داسې حالت برداشت کړئ نو هله به تاسو جنت ته ځئ.

دومره سختۍ پهٔ هغوي راغلې وې، دومره تکالیف پهٔ هغوي باندې راغلي وو: ﴿وَزُلْزِلُوا حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ﴾.[3]

"دومره جرقولے شوي وو دَ کافرانو دَ طرف نه تردې پورې چې پیغمبر او هغې خلقو چې دَ دهٔ سره ئې ایمان راوړے وو هغوي به وئیل: ﴿مَتَى نَصْرُ اللَّهِ﴾ کلهٔ به وي دَ الله امداد؟".

دَ الله هغهٔ مدد به کلهٔ راځي؟ بیا دلته علماء کرام مختلف توجیهات ذکر کوي، خو چې یَو معنیٰ

(1) [سورة البقرة: 214].

(2) [سورة البقرة: 214].

(3) [سورة البقرة: 214].

اوکړي نو هر څهٔ به حل شي: (۱) اوله توجیه: هغهٔ دا ده: پیغمبر به هم وئیل، او مومنانو به هم وئیل: دَ الله نه ئې سؤال کولو چې: ﴿مَتَىٰ نَصۡرُ ٱللَّهِ﴾ "دَ الله هغهٔ امداد به کلهٔ وي؟، ربّه! ستا هغه امداد به کلهٔ راځي؟".

(۲) دویمه توجیه: مومنان به دومره سترې شول، دومره به تنګ شول، چې هغوي به پیغمبر ته اووئیل: چې تا مونږ ته وئیلي وو: چې الله امداد کوي نو

﴿مَتَىٰ نَصۡرُ ٱللَّهِ﴾، "هغه امداد به کله راځي؟"، نو پیغمبر ﷺ به ورته تسلیةً (تسلي به ئې ورکوله) اووئیل: ﴿أَلَآ إِنَّ نَصۡرَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ﴾.[1]

"خبردار! امداد دَ الله نزدې دے".

نو غم مهٔ کوئ، دَ الله امداد نزدې راروان دے، نو پهٔ تاسو به سختئ نهٔ وي راغلي او تاسو به وایئ: چې مونږ به جنت له ځو.

**دَ سیدنا خباب بن الأرت رضي الله عنه واقعه**

محدثین دَ خباب بن الارت رضي الله عنه واقعه ذکر کوي: خباب بْن الأرت رضي الله عنه راغلے او نبي ﷺ دَ خانه کعبې دیوال ته ډډه لګولې وه، خپل څادر ئې سر مبارک ته ایخودلے وو، سیدنا خباب بن الأرت رضي الله عنه وائي: مونږ پیغمبر ﷺ ته شکایت اوکړو: "أَلاَ تَسْتَنْصِرُ لَنَا أَلاَ تَدْعُو لَنَا؟".[2]

"اے دَ الله پیغمبره! تهٔ مونږ دپاره دعاء کاني نهٔ غواړې؟ او تهٔ زمونږ دپاره دَ الله نه دَ امداد سؤال نهٔ کوې؟ چې الله زمونږ امداد اوکړي".

نبي ﷺ رااوچت شو، او رنګ مبارک ئې تک سور شو، او سیدنا خباب بن الأرت رضي الله عنه ته فرمائي: چې اے خبابه! ستاسو نه مخکښې چې کوم خلق وو، او مخکښې امتونه چې وو، نو هغې کښې به یَو سړے اونیولے شو او هغهٔ دپاره به کنده اوکنستلے شوه دَ نامهٔ پورې، او پهٔ هغهٔ کنده کښې به دے اودرولے شو، او بیا دَ اوسپنې اره به راوړے شوه: «فَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ فَيُجْعَلُ نِصْفَيْنِ».

"نو دا اره به دَ هغهٔ دَ سر دَ پاسه کیخودلے شوه، او ورته به ئې اووئیل: چې یا دُ دینِ اسلام نه واوړه او یا به نن ستا سر قلم کیږي، بدن به دې دوه ټکړې کیږي، هغهٔ به دَ الله دَ دین نه نهٔ اوړیدو، پهٔ اره به ئې دوه ټکړې کړو، یَو ټوټه به یَو خوا اوغورځیده او بله ټوټه به ئې بل خوا اوغورځیده".

لیکن هغهٔ بیا هم دَ الله دَ دین نه روستو شوي نهٔ وو، دارنګې «وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الحَدِيدِ، مَا

(1) [سورة البقرة: 214].
(2) أخرجه البخاري في كتاب الإكراه، باب من اختار الضرب والقتل والهوان على الكفر، برقم: (6943).

دُونَ لَحْمِهِ وَعَظْمِهِ، فَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ».[1]

"دَ هغوي دَ بدنونو نه به غوښې دَ اوسپنې په منږځو منږځ کولے شوې، تش هډوکي به پاتې کيدل، ليکن هغوي دې خبرو دَ الله دَ دين نه نهٔ دي واپس کړي".

داسې سختې خلقو برداشت کړي دي (الله أكبر كبيراً!).

نو ستا څهٔ خيال دے چې تا باندې به امتحان نهٔ راځي، سخته به نهٔ راځي، او تکليف به نهٔ راځي، او تهٔ به جنت ته ځې؟ الله رب العزة فرمائي: ﴿أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتْرَكُوا أَن يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ﴾.[2]

"آيا دا خلق دا ګمان کوي: چې دوي به دغه شان پريښودلے شي، چې دوي به وائي: چې مونږ ايمان راوړے دے، او بيا به پهٔ دوي باندې امتحانات نهٔ راځي؟".

ايمان سره به ضرور پهٔ تا امتحانات راځي، او کهٔ تهٔ وائې: چې مونږ باندې خو به امتحان نهٔ کيږي، نو تهٔ څنګه مومن ئې؟ الله دې مونږ دَ کامل ايمان والا جوړ کړي.

**دَ مفسر ابن کثير قول**

"تفسير ابن کثير" دَ دې سورة العنکبوت دَ آيت لاندې ليکلي دي، وائي: "چې سخت امتحان چې پرې شوے وو هغهٔ پهٔ انبياؤ عليهم السلام شوے وو، بيا چې څوک پهٔ دې امت کښې غوره خلق دي، زيات امتحانات پهٔ هغوي باندې راغلي دي، او بيا چې څوک غوره وي نو زيات امتحانات پهٔ هغوي باندې راځي".

يعني: چې چا کښې څومره دين وي دومره امتحانات به پهٔ هغهٔ باندې راځي، او چې مذبذب غوندې وي، دَ چا پهٔ ښهٔ خبره ئې پروا نهٔ ساتي، او دَ چا پهٔ بده خبره هم پروا نهٔ ساتي نو پهٔ هغهٔ باندې به څهٔ امتحان راشي، صحابه کرام رضي الله عنهم باندې څومره امتحانات راغلي وو، خو ليکن پهٔ هغې دور کښې چې کوم خلق مذبذب غوندې وو چې نهٔ به ئې دَ چا دَ ښې خبرې پروا ساتله، او نهٔ دَ بدې خبرې، منافقان چې ورته وائي، هغوي ته هيڅ تکليف نهٔ وو ميلاؤ شوے، کهٔ کافران به زورور شول نو هغوي ته به ئې وئيل: چې مونږ ستاسو ملګري يُو، کهٔ مومنان به زورور شول وائي: مونږ ستاسو ملګري يُو: ﴿وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَى

(1) أخرجه البخاري في كتاب الإكراه، باب من اختار الضرب والقتل والهوان على الكفر، برقم: (6943).

(2) [سورة العنكبوت: 2].

شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ﴾.(1)

"كلهٔ چې به دَ مومنانو سره میلاؤ شول وائي: مونږ خو ایمان راوړے دے، مونږ مومنان یُو، او چې کلهٔ به دَ مومنانو نه اخوا شول، کافرانو سره به مخامخ شول وائي: مونږ خو ستاسو پاخهٔ ملګري یُو، دا خو مونږ مومنانو پورې ټوقې کولې".

ستا به یَو سوچ وي کهٔ څوک ښهٔ کوي نو دَ هغهٔ ملګرتوب به کوې او کهٔ څوک بد کوي او زما وس وي نو زهٔ به ئې دَ ګریوان نه نیسم، او کهٔ دَ ګریوان نه دَ نیولو وس مې نشته نو بیا به هغهٔ له پهٔ خلهٔ باندې وایم، چې دا شے دې ناروا دے، او کهٔ دَ خُلې وس هم نهٔ وي نو زړهٔ کښې به دَ هغهٔ سره خپل تعلقات ختموم، بیا تهٔ ګوره! چې پهٔ تا امتحان راځي او کهٔ نهٔ راځي؟ امتحان به ضرور راځي، الله رب العزة فرمائي: ﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ﴾.(2)

"پهٔ تحقیق سره امتحان کړے وو مونږ پهٔ هغهٔ کسانو باندې چې مخکښې دَ دوي نه وو (مخکښې خلقو باندې امتحانانونه راغلي وو، پهٔ دوي به هم امتحان راځي)، خامخه ښکاره کوي الله ریشتوني خلق او خامخه ښکاره کوي به الله دروغژن خلق".

دا تفرقه به الله خامخه راولي، مومنان به هم الله ښکاره کوي او دروغژن به هم الله ښکاره کوي.

## دَ صحابه کرامو ﷺ قرباني

نو دین دَ قربانۍ نوم دے، پهٔ دین کښې به قرباني پیش کوې، دا نن چې ما او تا دَ صحابه کرامو ﷺ نومونه اخلو، چې ابو بکر صدیق ﷺ یا عمر فاروق ﷺ یا هر یَو صحابي چې دَ هغهٔ نوم ما او تا اخلو نو ورسره وایُو: "رَضِيَ اللهُ تعالی عنه"، دا وجه څهٔ ده؟ قرباني ئې پیش کړې وه، محنت ئې کړے وو، تکلیف ئې برداشت کړے وو، نن دَ هغوي نوم پهٔ تمامه دنیا کښې ژوندے دے، چې څوک ئې هم نوم یادَوي (ما سیوا دَ روافضو او شیعه ګانو نه) دَ مسلمانانو پهٔ زړهٔ کښې دَ هغوي سره مینه وي، او چې نوم ئې یادَوي نو "رَضِيَ اللهُ عنه" ورسره وائي، بلکه الله هم اعلان کړے دے: ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ﴾.(3)

"تحقیق سره الله خوشحاله دے دَ مومنانو نه".

(1) [سورة البقرة: 14].

(2) [سورة العنكبوت: 3].

(3) [سورة الفتح: 18].

**دَ سيدنا ابوبکر صديق ﷺ حالت**

دَ سيدنا ابو بکر صديق ﷺ چې دَ هغه نن دومره لوئي مقام دے، نو دا ولې دے؟ قربانۍ ئې پيش کړې وه، هغهٔ ابو بکر صديق ﷺ چې حديث کښې راځي: "وَقَامَ أَبُو بَكْرٍ فِي النَّاسِ خَطِيبًا، وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا، فَكَانَ أَوَّلَ خَطِيبٍ دَعَا إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

"سيدنا ابو بکر ﷺ اودريدو خطبه ئې شروع کړه، او نبي ﷺ ناست دے، رومبنے خطيب او رومبنے بيان کونکے چې دَ الله طرف ته خلق رابللي وو او دَ الله پيغمبر ﷺ طرف ته خلق رابللي وو هغه "ابو بکر صديق ﷺ" دے".

رومبنے بيان پهٔ صحابه کرامو ﷺ کښې هغهٔ شروع کړے وو، او چې کلهٔ ابو بکر صديق ﷺ بيان شروع کړو نو حديث کښې کښې راځي: "وَثَارَ الْمُشْرِكُونَ عَلَى أَبِي بَكْرٍ وَعَلَى الْمُسْلِمِينَ فَضَرَبُوا فِي نَوَاحِي الْمَسْجِدِ ضَرْبًا شَدِيدًا، وَوُطِئَ أَبُو بَكْرٍ وَضُرِبَ ضَرْبًا شَدِيدًا".(1)

"مشرکان يَو ځل پهٔ ابو بکر باندې راجمع شول او حمله ئې پرې اوکړه او پهٔ مسلمانانو ئې هم حمله اوکړه، نو دوي اووهلے شول پهٔ جومات کښې پهٔ سخت وهلو سره، او ابو بکر صديق ﷺ ئې دومره اووهلو چې ابو بکر صديق ﷺ بے هوشه شو، پيغمبر کريم ﷺ هم وهل اوخوړل او ابو بکر صديق ﷺ هم اووهلے شو...".

او ابو بکر ﷺ ته چې ډير وهل ورکړي وو نو هغه عتبه بن ربيعه ورکړي وو، چې دَ ابو بکر صديق ﷺ دا ټول مخ پهٔ وينو باندې سور وو، پهٔ مخ مخ ئې پهٔ پڼړو وهلے وو، ابو بکر صديق ﷺ بے هوشه شو، قوم ئې راغلو، بني تيم قبيله راغله او هغه ئې اوچت کړو، او کور ته ئې يَوړو، او هغوي اووئيل: چې کهٔ چرته ابو بکر صديق ﷺ وفات شو، مونږ به دَ دهٔ بدله کښې عتبه بن ربيعه قتلوو، او دَ هغوي پوخ يقين وو چې ابو بکر ﷺ دَ دې وهلو نه بيا روغيدے نشي، داسې ئې وهلے وو، سحر وهلے شوے دے تر مازيکره پورې ابو بکر صديق ﷺ دَ خپل ځان دَ حال نه خبر نهٔ دے، خلق ترې تپوس کوي، جواب نهٔ ميلاويږي هغه خبرې نشي کولے.

او چې ځنګه ابو بکر صديق ﷺ پهٔ هوش باندې راغلے دوي ترې تپوس کوي: چې حال

---

(1) أخرجه خيثمة بن سليمان في "من حديث خيثمة بن سليمان القرشي الأطرابلسي": (126/1).

دې څنګه دے؟ ابو بکر صدیق ﷺ فرمائي: "مَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟".

"چې دَ الله دَ پیغمبر ﷺ به څنګه حال وي؟".

دومره مینه ئې وه، دا نۀ وائي: "چې زۀ ښۀ یم، یا ښۀ نۀ یم"، اول ترې هغوي تپوس کوي: چې طبعیت دې څنګه دے؟ دے ورته وائي: "مَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟".(1)

"دَ رسول الله ﷺ څۀ حال دے".

او چې دا ئې اووئیل نو قوم ئې خو ټول کافران وو، صرف دَ قومیت دَ وجې نه دۀ سره ملګري شوي وو، دوي ورته کنځلې او ردې بدې شروع کړې، چې اوس هم تۀ دَ هغۀ نه نۀ اوړې، دا ټول وهل خو تا دَ هغۀ دَ وجې نه اوخوړل، او اوس هم تۀ هغۀ نۀ پریږدې، ابو بکر صدیق ﷺ ئې پریخودلو، او دوي ترې لاړل، او دَ هغۀ مور وه: "أُمِّ الْخَيْرِ بِنْتِ صَخْرٍ" روستو بیا مسلمانه شوه، هغه وخت کښې لا مسلمانه نۀ وه، هغې ته وائي: دۀ ته لږه ډوډئ او دَ اوبو څۀ غم اوکړه؛ ځکه ټوله ورځ ئې څۀ نۀ دي خوړلي.

ابو بکر صدیق ﷺ دَ مور نه تپوس کوي: "چې مورې! دَ پیغمبر کریم ﷺ څنګه حال دے؟"، هغه ورته وائي: "بچیه! ماته خو پته نشته، خو دا ډوډئ ده، لږ غونډې خوراک مې ستا دپاره تیار کړے دے، دا اوخوره! چې طبعیت دې لږ ښۀ شي"، ابو بکر صدیق ﷺ ورته فرمائي: زما دې پۀ الله قسم وي چې زۀ به دَ دې نه څکه هم اونۀ کړم، او نۀ به اوبۀ اوڅښکم چې ترڅو پورې ما دَ رسول الله ﷺ حال نۀ وي معلوم کړے، هغې وخته پورې به خوراک نۀ کوم، چې دَ نبي ﷺ حال به څنګه وي؟ زۀ خو اووَهلے شوم، خو چې هغه به مړ وي او کۀ ژوندے به وي؟ مور ته وائي: ورشه! او دَ امّ جمیل نه تپوس اوکړه؛ ځکه هغه پټه مسلمانه شوې وه، مور ورته وائي: هلته به ورشم نو؛ ځکه دَ مور دَ خپل ځوي سره ډیره مینه وي.

هغه مور ئې لاړه امّ جمیل پسې، او دَ امّ جمیل نه تپوس کوي: چې دَ پیغمبر ﷺ حال به څنګه وي؟ زما زوي داسې وائي، هغه خو مسلمانه وه، لیکن خپل ایمان ئې پټ ساتلو؛ ځکه کمزورې وه، هغه ورته وائي: زۀ نۀ ستا ځوي ابو بکر پیژنم او نۀ محمد بن عبد الله پیژنم، خبر دے؟ چې ستا زوي زخمي دے نو دَ هغۀ خوا له به درسره لاړه شمه.

چې کله هغه راغله، هغې وخت کښې له دَ پردې حکم نۀ وو، دغه شان به خلق تلل، هغه

(1) أخرجه خيثمة بن سليمان في "من حديث خيثمة بن سليمان القرشي الأطرابلسي": (126/1).

راغله او دَ ابو بکر صدیق ﷺ حال ته ئې اوکتل، نو بے اختیاره ئې دَ خُلې نه چغې اووَتې: چې دا دومره ظلم، دا دومره زیاتے تا سره چا اوکړو؟ ابو بکر صدیق ﷺ ورته وائي: ما پریږدوه، خو دَ نبي ﷺ حال راته اووایه، چې هغهٔ خنګه دے؟ هغه ورته وائي: دا مور دې ناسته ده، کهٔ دَ دې پهٔ مخکښې وایم نو دا به راباندې خبر شي، هغه ورته وائي: زما مور نه مهٔ یریږه، ماته اووایه، ورته وائي: پیغمبر ﷺ ښهٔ دے، "دارِ أرقم" دَ اَرقم پهٔ کور کښې ناست دے.

ابو بکر صدیق ﷺ پهٔ دغه وخت کښې هم وائي: نا! زما به هله دَ زړهٔ تسلي اوشي چې ما تاسو دَ نبي ﷺ خوا ته اورَسوئ، تلے نهٔ شو، یَو لاس ئې پهٔ خپلې مور باندې واچولو، یَو لاس ئې پهٔ ام جمیل باندې واچولو وائي: ما دَ نبي ﷺ خواته بوځئ، او چې کلهٔ دَ پیغمبر ﷺ خواته راغلے، حدیث کښې راځي: "وَأَكَبَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ فَقَبَّلَهُ، وَأَكَبَّ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ".(1)

"نبي ﷺ ابو بکر صدیق ﷺ ته ورتر غاړې وتو، او ښکل ئې کړو، او مسلمانان هم هغهٔ ته ورتر غاړې وتل".

او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ زړهٔ ابو بکر ﷺ ته ډیر نرم شو، او اوئې ژړل، او دهٔ هم اوژړل، صحابه کرامو ﷺ اوژل، دا هغه ابو بکر صدیق ﷺ چې نن مونږ او تاسو دَ هغهٔ دَ نوم سره "رضِي الله عنه" وایُو، هغه ابو بکر صدیق ﷺ اوښان ئې دَ دې دپاره ساتلي وو: چې کلهٔ ما ته پیغمبر ﷺ دَ هجرت حکم کوي نو پهٔ دې اوښانو به هجرت له ځو، او هغې له به ئې هر وخت ګیا اچوله، تیار به ئې ساتلي وو، کلهٔ چې پیغمبر ﷺ ته الله وحي اوکړه، چې ستا قوم نن تا قتلوي، تهٔ دَ خپلې بسترې نه ځه، او هجرت اوکړه.

نو نبي ﷺ راغلے، ابو بکر صدیق ﷺ ته وائي: چې دَ الله حکم دے، چې ځئ، ابو بکر ﷺ خپله اوښه راروانه کړه، دواړه پرې سوارهٔ شول، او غارِ ثور ته لاړل، درې شپې او درې ورځې پهٔ هغې کښې تیرې کړې، هغه سفر چې عمر فاروق ﷺ چې هغهٔ وئیل: چې زما دَ ټول عمر عبادت او زما دا ټولې نیکئ کهٔ چرې ابو بکر صدیق ﷺ زما سره پهٔ دغې یَو شپه باندې بدلوي چې کومه شپه ئې نبي ﷺ سره غارِ ثور کښې کړې ده، دا ټول زهٔ هغهٔ له پهٔ دې باندې ورکوم، دا ټول عبادت دَ ابو بکر صدیق ﷺ دَ دغې یَوې شپې دَ غارِ ثور نه قربان دے، دا پهٔ

(1) أخرجه خيثمة بن سليمان في "من حديث خيثمة بن سليمان القرشي الأطرابلسي": (126/1).

څهٔ باندې؟ دا ئې قرباني پیش کړې وه.

## دَ ابوبکر صدیق ﷛ دَ صحابیت نه انکار کول

دَ دې وجې نه علماء کرام ذکر کوي: کهٔ دَ یَو بل صحابي دَ صحابیت نه یَو سړے انکار اوکړي، نو سړے فاجر او فاسق او بدعتي دے، لیکن کافر نهٔ دے، دَ کفر فتوٰی پرې نشي لګولے، ما سیوا دَ سیدنا ابو بکر صدیق ﷛ نه، چې قرآنِ کریم پهٔ نصَّ صریح سره دَ هغهٔ صحبت دَ نبي ﷺ سره ثابت دے: ﴿إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾.(1)

"کله چې نبي ﷺ خپل ملګري ته اووئیل: خفه کیږه مهٔ، غمژن کیږه مهٔ؛ یقینًا الله زمونږ سره ملګرے دے".

قرآنِ کریم سره دَ هغهٔ صحبت ثابت دے.

کهٔ دَ ابو بکر صدیق ﷛ دَ صحابیت نه یَو سړے انکار کوي نو سړے پرې کافر کیږي؛ ځکه دَ قرآنِ کریم نه انکار کول کفر دے، دَ ابو بکر صدیق ﷛ ډیرې کارنامې دي: هغه ابو بکر صدیق ﷛ خپل کلے پریخودلے دے مکه مکرمه او حبشو طرف ته پهٔ هجرت باندې ځي دَ الله دَ دین دپاره، دَ "صحيح البخاري" روایت دے: عائشه ﷞ فرمائي: چې مونږ باندې داسې ورځ نهٔ تیره شوې (دا دَ هغوي خوش قسمتي وه)، داسې یَو ورځ مونږ باندې نهٔ ده راغلې چې هغې کنبې مونږ کره پیغمبر ﷺ سحر او ماښام نهٔ وي راغلے، سحر به هم پیغمبر ﷺ مونږ کره راتلو، او ماښام به هم راتلو.

نو دومره مینه وه دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ ابوبکر ﷛ سره لیکن چې کلهٔ امتحانات زیات شول، تکالیف مومنانو ته زیات شول، ابو بکر صدیق ﷛ دَ کلي نه رُوان شو، حبشو طرف ته روان شو، او چې حبشو ته ځي نو چې کلهٔ "بَرْكُ الغِمادِ" علاقې ته اورسیدو، نو لار کنبې ورسره ابنُ دَغِنَه میلاؤ شو، او دا ابن دغنه دَ "القارَة" سردار وو، هغهٔ ورسره میلاؤ شو، دغنه ئې دَ مور نوم وو، پهٔ هغې باندې مشهور شوے وو، علماء کرام ذکر کوي: اصل کنبې دَ مور پهٔ نوم دے مشهور وو، خپل نوم ئې حارث بن زید وو، دغه ابن دغنه اوچت سړے وو؛ ځکه دَ قاره قوم سردار وو، ابو بکر صدیق ﷛ ته فرمائي: ابو بکره! چرته تهٔ ځې؟ ابو بکر صدیق ﷛ ورته وائي: "أَخْرَجَنِي قَوْمِي، فَأُرِيدُ أَنْ أَسِيحَ فِي الأَرْضِ وَأَعْبُدَ رَبِّي".(2)

---

(1) [سورة التوبة: 40].

(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).

"قوم مې دَ ملک نه اوباسي، قوم مې دَ کلي کنبې نهٔ پرېږدي، زما دا اراده ده: چې پهٔ دې زمکه کنبې گرځم، او دَ خپل ربّ عبادت کوم".

دا مې زړهٔ دے چې پهٔ دې زمکه کنبې گرځم او چې کوم ځائے ما له رکاوټ نهٔ وي چې هلته دَ الله عبادت کوم.

دا مسئله یاد اوساتئ! کهٔ چرته یَو ځائے کنبې تا څوک دَ الله عبادت ته نهٔ پرېږدي، نو هغه ځائے پرېږده خو دَ الله عبادت به نهٔ پرېږدې، ابو بکر صدیق ﷺ ته اوګوره! چې ملک ئې پرېښودے دے، قرآنِ کریم کنبې هم الله فرمائي: چې کلهٔ دا فاجران، کافران خلق قیامت کنبې راپورته شي، ملائک به ورته وائي: ﴿فِيمَ كُنتُمْ﴾.[1]

"تاسو څهٔ کنبې وئ؟".

﴿قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا﴾.[2]

"دوي به وائي: وس او طاقت مو نهٔ وو، چا دَ الله عبادت ته نهٔ پرېښودو، ملائک به ورته وائي: آیا دَ الله زمکه فراخه نهٔ وه؟ چې یَو ځائے کنبې ئې نهٔ پرېښودئ بل ملک له به دې هجرت کړے وو، بل ځائے به دې دَ الله عبادت کړے وو.

نو ابو بکر صدیق ﷺ ورته وائي: زهٔ ملک پرېښودلے شم، کلے پرېښودلے شم، لیکن دَ الله عبادت نشم پرېښودلے، زړهٔ مې دا دے: چې پهٔ دې زمکه کنبې به ګرځم، او بل ځائے کنبې به دَ خپل ربّ عبادت کوم، ابن دغنه ورته وائي: "فَإِنَّ مِثْلَكَ يَا أَبَا بَكْرٍ لاَ يَخْرُجُ وَلاَ يُخْرَجُ".[3]

"اے ابا بکره! ستا پهٔ شان قیمتي انسان خلق دَ کلي نه نهٔ اوځي، او نهٔ هغهٔ کلي نه وېستلے شي، ابو بکره! تهٔ ولې ځې؟".

بیا ورته وائي: "إِنَّكَ تَكْسِبُ المَعْدُومَ وَتَصِلُ الرَّحِمَ، وَتَحْمِلُ الكَلَّ وَتَقْرِي الضَّيْفَ وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الحَقِّ".

په تا کنبې خو الله ډېر ښکلي ښکلي صفات کېخودي دي: "یقینًا تهٔ خو غریبانانو سره احسان کوې، تهٔ خو دَ خلقو سره خپلوَلئ پالې، دَ خلقو بوج پخپل ځان باندې رااچوې، تهٔ خو دومره قیمتي سړے ئې چې تهٔ خو میلمه له ډوډئ ورکوې، تهٔ خو دَ حق دَ حوادثو ملګرتوب کوې".

---

(1) [سورة النساء: 97]..

(2) [سورة النساء: 97].

(3) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).

او پکار دا دے: چې دا صفات پهٔ هر مسلمان کښې راشي، چې ځان ته مسلمان وائي، چې دے غريب سره احسان کوي، دَ مسلمان خپلولي پالي، دَ مسلمان پهٔ ځان باندې بوج غورځوي، او بل مسلمان ترې بچ کوي، ميلمه له ډوډئ ورکوي، دارنګې دَ حق ملګرتوب کوي، چې دا صفات هر مسلمان پهٔ ځان کښې پيدا کړي، نن خو کهٔ مونږ عقيده او عمل برابر کړو نو نور کار مو خراب وي، اخلاق خراب وي، دارنګې ګاونډې رانه خفه وي، غريب له مونږ پهٔ قسم سره خيرات نهٔ ورکوو، دَ ميلمه خو مونږ هډو خيال نهٔ ساتو، او حق خو مونږ صرف دَ هغهٔ چا کرځولے دے چې څوک ئې وائي، او کهٔ څوک حق وائي دَ هغهٔ ملګرتوب خو درکنار چې هغهٔ پسې مونږ ردې بدې وايُو.

بهر حال ابو بکر صديق ﷺ ته ابن دغنه وائي: "فَأَنَا لَكَ جَارٌ ارْجِعْ وَاعْبُدْ رَبَّكَ بِبَلَدِكَ، فَرَجَعَ وَارْتَحَلَ مَعَهُ ابْنُ الدَّغِنَةِ".(1)

"راځه، واپس شه! زهٔ به تا له امن درکړم (زهٔ به ستا قوم باندې اوکرځم، او زهٔ به ورته اووايم: چې دهٔ له به څهٔ نهٔ وايئ، دهٔ له ما امن ورکړے دے)، پهٔ دې خپل کلي کښې دَ خپل ربّ عبادت کوه، ابو بکر ﷺ راواپس شو ابن دغنه هم ورسره راروان دے".

کلهٔ چې کلي ته راورسيدل، ابن دغنه دَ تمامو قريشو ډلو ته ورغلے او يَو يَو ته اودريدو او هغوي ته وائي: ګورے! خبردار! ما ابو بکر صديق له امن ورکړے دے، دا قيمتي سړے دے، چې دَ خلقو بوجونه اوچتوي، دارنګې خپلوَلئ پالي، دارنګې ميلمه له ډوډئ ورکوي، دَ حق پرستو امداد کوي، دَ حق ملګرے دے، داسې سړے خلق دَ کلي نه نهٔ اوباسي، هغه خو اوچت سړے وو، خلقو دَ هغهٔ خبره نهٔ غورځوله، قريشو دَ ابن دغنه دَ پناه ورکول تکذيب اونهٔ کړو، ټول قريش ورته وائي: صحيح ده چې تا پناه ورکړې ده نو مونږ هم پناه ورکړې ده، خو شرط ئې دا اولکولو، او ورته وائي: "مُرْ أَبَا بَكْرٍ فَلْيَعْبُدْ رَبَّهُ فِي دَارِهِ، فَلْيُصَلِّ فِيهَا وَلْيَقْرَأْ مَا شَاءَ، وَلاَ يُؤْذِينَا بِذَلِكَ وَلاَ يَسْتَعْلِنْ بِهِ، فَإِنَّا نَخْشَى أَنْ يَفْتِنَ نِسَاءَنَا وَأَبْنَاءَنَا".(2)

ابو بکر صديق ﷺ ته اووايه: چې تا ته امن دے تا ته به څوک تکليف نهٔ درکوي خو يَو کار به کوې: "چې ابو بکر ته حکم اوکړه: چې دَ خپل ربّ عبادت به پهٔ کور کښې دننه کوې،

(1) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).

(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).

او مونځ دې پخپل کور کښې دننه کوي، قراءت هم چې کوې نو کور کښې دننه به ئې کوي
خومره چې کوي، خو په قراءت باندې به مونږ له تکليف نهٔ راکوي، او دا به په تيزه نهٔ وائي
ځکه مونږ يريږو چې زمونږ ښځې او زامن به په فتنه کښې اخته کړي".

نو دوي به وئيل: چې مونږ په دې يريږو چې زنانه او اولاد راته خرابوي؛ ځکه به دے عبادت پهٔ کور کښې پهٔ پټه پټه کوي، هغې وخت کښې چې به مسلمان شو وائي: دے بے دينه شو.

ابن دغنه ابو بکر ﷺ ته اووئيل: خير دے، دغه شان اوکړه، دَ کنړې نه درته خپل کور ښهٔ دے، چې کور کښې دننه ناست ئې، ابو بکر صديق ﷺ کور ته دننه شو، يَو څو ورځې پهٔ خپل کور کښې ئې پټ عبادت اوکړو، ابو بکر ﷺ اووئيل: يره! دا خو ډير ګران کار دے، چې دَ چا زړهٔ کښې جذبه وي هغهٔ کلهٔ صبريدے شي، ابو بکر صديق ﷺ دَ خپل کور نه رابهر شو، دَ خپل کور مخې ته ئې ځان له جوماتکے غوندې جوړ کړو، او پهٔ هغې کښې به ئې عبادت کولو، مونځ به ئې پکښې کولو، "وَيَقْرَأُ الْقُرْآنَ".[1]

"او هغې کښې به ئې قرآنِ کريم لوستلو".

خپله زمکه ده، خپل جائيداد دے، دَ خپل کور مخه ئې ده، دَ چا کور او کوڅې ته هم نهٔ دے تلے، ابو بکر صديق ﷺ پهٔ هغې کښې قرآن لولي، دَ مشرکانو زنانه به هغې ته راجمع شوې، زامن به ئې راجمع شول، او سم داسې راجوخت به شول ورته، دَ ابو بکر صديق ﷺ دې قراءت ته به ئې غوږ کيخودو، نو پهٔ هغوي به ډير اثر کيدو، او دَ ابو بکر ﷺ حال هم دا وو: چې حديث پاک کښې راځي: "وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ رَجُلاً بَكَّاءً، لاَ يَمْلِكُ عَيْنَيْهِ إِذَا قَرَأَ الْقُرْآنَ".[2]

"ابو بکر صديق ﷺ داسې انسان وو چې هغهٔ به ډير زيات ژړل، سترګو نه به ئې اوښکې روانې وې، دَ خپلو سترګو مالک به نهٔ وو کلهٔ چې به ئې دَ قرآنِ کريم تلاوت کولو".

نو دَ ابو بکر ﷺ به بے اختياره دَ سترګو نه اوښکې روانې وې، دا چې دَ چا پهٔ زړهٔ کښې درد وي نو داسې کيږي، چې قرآن به ئې لوستو نو بے اختياره به ئې ژړل، او دَ زنانو او دَ ماشومانو زړونو کښې حسد نهٔ وي، نو چې هغوي به دا حال اوکتو نو هغوي به اووئيل: دا خو واقعي دَ کمال والا دين دے، نو پهٔ دوي به ئې ډير اثر کولو.

(1) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).
(2) أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة، برقم: (3905).

نو دَ قریشو مشرانو چې دا اوکتل هغوي اوونیل: دا خو بیا کار خراب شو، دا ابو بکر صدیق کهٔ چرې پهٔ دغه طریقه قرآن لولي او مونځونه کوي نو زمونږ ټولې زنانه به دَ ځان سره واړوي، اولاد به راته خراب کړي، نو دوي ابن دغنه پسې سؤال جواب اولیږلو: چې راشه! تا چې چا له امن ورکړے دے، یا دې هغه ستا پهٔ هغې خبرې عمل اوکړي، او یا ترې نه هغهٔ خپل امن واپس کړه، بیا مونږه پوهه شه او هغهٔ پوهه شه، ابن دغنه راغلے او ابو بکر ﷺ ته وائي: کور کښې دننه کیښنه، هغهٔ ورته وائي: کور کښې نشم کیښناستلے، هغهٔ ورته وائي: چې نهٔ کیښنې نو ما له زما امن واپس راکړه، ابو بکر صدیق ﷺ وائي: خپل امن واپس واخله، ما له دَ الله پناه کافي ده، ابوبکر صدیق هغهٔ بیا دَ الله عبادت شروع کړو، او چې کلهٔ ترې ابن دغنه خپله پناه اوچته کړه، نو ابوبکر بیا چا کلي کښې نهٔ دے پرېخودلے.

## ابوبکر صدیق ﷺ سره دَ یَو سړي میلاویدل

محدّثین ذکر کوي: ابو بکر صدیق ﷺ سره یَو ځل یَو سړے میلاؤ شو، ابو بکر صدیق ﷺ خانه کعبې ته روان وو، دَ ابوبکر صدیق ﷺ پهٔ سر ئې خاورې اوغورځولې، او چې کوم ځائے کښې به میلاویدو نو خلقو به تکلیف ورکولو.

نو مقصد مې دا دے: چې دین دَ قربانۍ نوم دے، قرباني به ورکوې، او هغهٔ دَ وخت تقاضه ده، بعضې وخت به دَ مال قرباني راځي، چې دَ کومې قربانۍ ستا نه مطالبه وي هغه به عملي کوې.

## دَ سیدنا عثمان ﷺ حالت

سیدنا عثمان ﷺ چې دریم نمبر خلیفه دے، دَ هغهٔ حال اوګوره! عثمان ﷺ چې کلهٔ اسلام راوړو خپل ترهٔ حکم بن ابي العاص هغه اونیولو، نو هغهٔ ئې اوتړلو، او ترلے دغه شان پروت دے، خو ورځې پروت دے، او ورته وائي: تهٔ دَ خپل پلار نیکهٔ دین پرېږدې، یَو نوي دین پسې ځې، دَ پلار نیکهٔ طریقه ولې پرېږدې؟ اوس هم بعضې جاهلان داسې وائي، وائي: دې پنج پیریانو نوې نوې خبرې راوباسلې، او زمونږ هغه زړې خبرې ئې ټولې ختمې کړې، او زمونږ دَ پلار نیکهٔ طریقه ئې پرېخوده، بعضې خلق وائي: مونږ ته فلانکي استاذ وئیلي وو: "چې خپله "قُلْ هو" او "اَلْحَمْدُ" به نهٔ پرېږدئ، قسمه قسم مُلیان به راځي، او تاسو به اړوي"، دَ "قُلْ هو" او "اَلْحَمْدُ" دا مقصد نهٔ دے چې "قُلْ هو" او "اَلْحَمْدُ" به نهٔ پرېږدئ، بلکه دَ هغوي دا مقصد وو: چې دا خپلې طریقې به نهٔ پرېږدئ، هغوي ته دا پته وه چې دا مونږ کومې خبرې کوو دا غلطې کوو، الله دَ خپل دین حفاظت کوي: ﴿إِنَّا

﴿نَحۡنُ نَزَّلۡنَا ٱلذِّكۡرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ﴾.[1]

الله وائي: "دا قرآنِ کریم ما رالیږلے دے او مونږ به پخپله دَ دې حفاظت کوو".

نو دوي ته دا پته وه: چې روستو به الله څهٔ داسې خلق پیدا کوي: چې هغوي به دَ دې صفائي خلقو له کوي: چې کوم حق دے هغه به خلقو ته حق ښکاره کوي، چې کوم باطل دے هغه به باطل ښکاره کوي، نو بیا خو به دا خلق وائي: "چې مونږ خو غرق یُو، نو هغوي به څکه وئیل چې دا خپلې خبرې به نهٔ پریږدیٔ"، حق به الله خامخه ښکاره کوي، او دَ دې باطل پرستو دا چالونه به ښکاره کیږي، دَ دې وجې نه حدیث مبارکه کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «يَرِثُ هَذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُولُهُ، يَنْفُونَ عَنْهُ تَأْوِيلَ الْجَاهِلِينَ، وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِينَ، وَتَحْرِيفَ الْغَالِينَ».[2]

دَ علم پهٔ هر پیړئ کښې دَ یَوې پیړئ نه روستو بله پیړئ چې راځي الله داسې عادلان خلق پیدا کوي، "اخلي دا علم دَ هرې پیړئ نه عادلان خلق، هغهٔ عادلان خلق چې دَ دې دین نه به هغه خلق دَ زیاتي کونکو خلقو هغه تحریف لرې کوي، دَ جاهلانو خلقو غلط تاویل هغه به ترې لرې کوي، دَ باطل پرستو خلقو غلطې معنٰی کاني او دروغ هغه به ترې لرې کوي، صفا دین به خلقو ته بیانوي".

نو عثمان ﷛ ته هم دغه شان وائي، او همیشه دپاره دَ مشرکانو اعتراض به دا وو پهٔ نبي ﷺ باندې چې: مونږ څنګه دَ خپل پلار او نیکهٔ دین پریږدو؟ دا خلق پوهیږي نه کهٔ تاسو لږ سوچ اوکړو، نو نوي او زړې به تاسو معلومې کړئ، دې خلقو نوې خبرې شروع کړي، مونږ هغه زړې خبرې کوو، جماعت اشاعت التوحید والسنة هغه زړې خبرې کوي، دا مُلیان به دَ چا خبرې کوي، یا به ئې دَ پلار خبره وي او یا به ئې دَ نیکهٔ خبره وي، یا به لږه دَ هغې نه مخکښې خبره وي، دَ څلورو، پنځو سوو کالو خبره به راروانه وي، چې دا کار به شروع شوے وي، نو دا خبرې نوې دي، او کهٔ نه دَ پیغمبر ﷺ خبرې چې دَ هغې څوارلس سوه (۱۴۰۰) کاله اوشول، هغه نوې دي؟، کهٔ مونږ داسې یَو خبره کړي وي چې هغه پیغمبر ﷺ نهٔ وي کړي نو هغه نوي خبره ده، کهٔ مونږ داسې یَو خبره کوو چې نبي ﷺ دَ هغې خلاف کړے وو نو واقعې چې زمونږ هغه خبرې بیا نوې دي، او دَ دوي هغه زړې دي، خو کهٔ مونږ وایُو: چې امام الأنبیاء محمد مصطفٰی ﷺ دَ نن

(1) [سورة الحجر: 9].

(2) أخرجه البيهقي في "سنن الكبرى"، برقم: (20911).

نه څوارلس سوه کاله مخکښې داسې وئيلي دي، او يَو سړے وائي: چې نه، زما نيکۀ خو داسې نۀ دي وئيلي زۀ به هغه شان کوم، نو زمونږ خبره زړه ده، او کۀ دَ دۀ دا خبره زړه ده؟ دے چې دَ پلار نيکۀ خبره پيش کوي هغه نوې ده، او دَ پيغمبر ﷺ خبره زړه ده، دا خلق نۀ پوهيږي، دا نوې خبرې نۀ دي، خو دا پۀ دې خلقو باندې نوې لګي، دا ډيرې پخوانۍ خبرې دي، او دا ډيرې حقيقت او رشتيا خبرې دي، خو خلقو له صحيح ځکه نۀ معلوميږي چې دوي اوريدلي نۀ دي، او چا خبر کړي نۀ دي، او دا مسئله ده: چې يَو سړے پۀ يَو خبره باندې نۀ پوهيږي نو دے دَ هغې دُشمني کوي، "اَلنَّاسُ أَعْدَاءٌ لِّمَا جَهِلُوْا".

"خلق دشمنان وي دَ هغې څۀ دپاره چې نۀ ئې پيژني".

يَو مسئله باندې به نۀ پوهيږي نو خود به دَ هغې خلاف کوي.

بهر حال عثمان بن عفان ﷺ ته وائي: چې تا زۀ تر هغې وخته پورې نۀ پرانيزم چې ترڅو پورې تا دا نوې خبرې نۀ دي پريښودي، او دَ خپل پلار نيکۀ زړې خبرې دې نۀ دي شروع کړي، عثمان بن عفان ﷺ پروت دے، خو چې کلۀ ئې ترۀ پوهه شو کۀ زۀ دَ دۀ سره هر څۀ اوکړم خو دے دَ خپلې خبرې نه نۀ اوړي، نو بيا ئې عثمان ﷺ پريښودلو.

**دَ سيدنا عمر ﷺ حالت**

سيدنا عمر فاروق ﷺ چې دَ هغۀ څومره لوئي مقام دے، او دَ هغۀ څومره لويه دبدبه ده، او څومره مشهور وو پۀ شجاعت کښې، ليکن پۀ عمر فاروق ﷺ باندې څومره تکليفونه دَ الله پۀ دين کښې تير شوي دي، عمر فاروق ﷺ چې کلۀ اسلام راوړو، نو هغۀ وائي: زۀ دا خپل اسلام خلقو ته ښائم، چې عمر فاروق مسلمان شوے دے؛ ځکه چې هغۀ کلۀ دَ پيغمبر ﷺ مخالف وو نو ښکاره پۀ ښکاره به پيغمبر ﷺ پسې ګرځيدو چې چا به تَرې تپوس اوکړو: چې چرته ځې؟ وائي: ځم دا محمد رسول الله قتلوم، على الإعلان به ئې وئيل، چې دا زما دشمن دے، او کۀ مې کوم ځائے کښې اوموندو نو قتلوم به ئې، توره به ئې دَ ځان سره ګرځوله، چا به چې ورته اووئيل: "ولې ئې قتل کوې؟، وائي: دے زمونږ خدايان لات، منات، عزّى نۀ مني، دے به زۀ قتلوم، نو عمر ﷺ چې څنګه ښکاره دشمن وو دَ نبي ﷺ، خو چې ايمان ئې راوړو نو ښکاره

اعلان ئې هم اوکړو، چې ما ايمان راوړے دے.

پۀ قريشو کښې يَو سړے وو، هغۀ ته ئې "جميل بن معمه" وئيلو، هغۀ ډير چغل مار انسان وو، چې کلۀ هغۀ خبر شو چې عمر ﷺ خو ايمان راوړو، نو لاړو او قريشو ته وائي: عمر هغۀ صابي شوے دے، عمر وريسې روستو روان دے، او آواز ئې اوکړو: "ولٰكِنْ قَدْ أَسْلَمْتُ".

"ما خو اسلام راوړے".

"صابي" به ئې هغه وخت يے دينه ته وئيلو، چې پۀ دغه غلط دين باندې به روان وو، نو عمر ﷺ چغه کړه: "أَشهَدُ أَنْ لَّا إِله إِلا الله، وأَشهَدُ أَنَّ محمدًا رَّسول الله" چې کلۀ ئې چغه کړه، مشرکان ټول پۀ دۀ راجمع شول، جنگ ورسره شروع وو، تردې پورې چې دَ نمر سترګه پۀ پريوتو باندې شوه، کافران هم کيښناستل، عمر ﷺ ستړے شوے وو کيښناستو او عمر ﷺ ورته وائي: اے کافرانو! زۀ يواځې يم او تاسو ډير يئ، افسوس دے کۀ چرې زمونږ دَ دريو سوو (٣٠٠) کسانو پورې يَو تعداد وے! يا به مې تاسو دَ دې کلي نه بهر کولے يا به مونږ بهر کيدو، بيا مې ستاسو مقابله بالکل کولے شوه، خو اوس زۀ بالکل يَواځې يم، نن کۀ مونږ دَ هغوي نوم اخلو نو هغې سره "رضي الله عنه" وايُو، دا هغوي قربانۍ پيش کړې وې.

دغې شان دَ يَو يَو صحابي کارنامه چې اوکورې! نو هغۀ څومره قربانۍ دَ الله دَ دين دپاره پيش کړې دي، او نن ما او تا څومره سخته برداشت کوو، هغه سختې خو لاړې، هغه تکاليف خو لاړل، چې کم از کم دومره خو اوکړو چې دا دين خو پۀ ځان کښې راولو، صحابۇ ﷺ چې پۀ بل کښې دين راوستے دے نو پخپل ځان کښې ئې خو خود راوستے وو، تکليف ئې برداشت کړے دے خو پۀ بل کښې ئې دين راوستے دے، خو چې مونږ او تاسو ئې خو چې کم از کم پخپل ځان کښې راولو، پخپل کور کښې، پخپلو بچو کښې ئې خو راولو کنه.

الله رب العزة دې مونږ او تاسو دَ صحابه کرامو ﷺ پۀ نقش وقدم باندې روان کړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم اللہ الرحمن الرحیم

كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

(سورة آل عمران: 110)

# موضوع

# نهي عن المنكر

بتاريخ: 2007-06-03

مقام جلسۀ

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربانی حفظه الله

# نهي عن المنكر

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللهِ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم مِّنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ﴾.[1]

عَنْ دُرَّةَ بِنْتَ أَبِي لَهَبٍ قَالَتْ: "قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَنْ خَيْرُ النَّاسِ؟"، قَالَ: «أَتْقَاهُمْ لِلرَّبِّ، وَأَوْصَلُهُمْ لِلرَّحِمِ، وَآمَرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ، وَأَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ».[2]

عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړو! امر بالمعروف او نهي عن المنكر دا يو داسې موضوع ده: چې كهٔ چرې يو سړے ټول عمر پهٔ امر بالمعروف او نهي عن المنكر باندې بيان كوي نو هغهٔ نهٔ ختميږي، يو خو دَ هغې فضائل دي، او بل امر بالمعروف او نهي عن المنكر نهٔ كول دَ هغې عذابونه مختصر كتابونو كښې ليكلي دي، ليكن دَ دين مسائل چې خلقو له بيانوي: دَ نيكۍ حكم به وي يا به دَ بدۍ نه منع وي، يا به حكم دَ الله وي، دَ دې نه بهر كيدے نشي، مسلمان له پكار دي، چې هغهٔ امر بالمعروف او نهي عن المنكر كوي.

**دَ نبي ﷺ دَ امت خصوصيت**

دَ رسول الله ﷺ دَ اُمت خصوصيت دا دے: چې دَ جناب رسول الله ﷺ نه بعد امر

(1) [سورة آل عمران: 110].

(2) أخرجه يحيى بن الحسين الشجري في "ترتيب الأمالي" في صلة الرحم، ما يتّصل بذلك، برقم: (2036).

بالمعروف او نهي عن المنكر دَ دې اُمت ډيوټي ده، چې په دې امت کښې به بعضې خلق داسې وي چې: ﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾.(1)

الله وائي: "خامخه ضروري يَوه ډله دې تاسو کښې موجوده وي چې هغوي خلق خير ته (دَ الله کتاب ته، او سنت دَ نبي ﷺ ته) رابلي، امر بالمعروف کوي، او نهي عن المنکر کوي، دَ نيکئ حکم کوي او دَ بدئ نه خلق منع کوي".

نو داسې ډله دې په تاسو کښې ضرور موجوده وي؛ ځکه دَ جناب رسول الله ﷺ نه بعد بل پيغمبر دنيا ته نهٔ راځي، نو تر قيامته پورې ځومره مومنان چې دي ځومره علماء چې دي دا دَ هغوي ډيوټي ده چې: هغوي به امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوي.

**دَ رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته وينا**

دَ دې وجې نه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته فرمائيلي وو: «بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً».(2)

"زما دَ طرف نه خلقو ته اګر کهٔ يَو آيت مو اَوريدلے وي دَ هغې دعوت او تبليغ هم اوکړئ".

**دَ آخري امت صفت**

ما چې کوم آيت لوستلے دے، په دې آيت کښې الله دَ دې امت صفت ذکر کوي او بيا دَ دې امت کار ذکر کوي، چې کار دَ دې امت به څهٔ وي؟.نو الله تعالى فرمائي: ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم مِّنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ﴾.(3)

"تاسو په لوح محفوظ کښې، دَ الله په علم کښې په ټولو امتونو کښې بهترين امت يئ...".

په ټولو انبياؤ ﷺ کښې اوچت مقام او اوچته درجه دَ امام الأنبياء محمد رسول الله ﷺ ده، حديث پاک کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: «أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ يَوْمَ القِيَامَةِ وَلاَ فَخْرَ».(4)

"زهٔ دَ تمام اولاد دَ آدم ﷺ سردار يم، خو په نورو انبياؤ ﷺ باندې زهٔ فخر نهٔ کوم".

(1) [سورة آل عمران: 104].

(2) أخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء، باب ما ذكر عن بني أسرائيل، برقم: (3461).

(3) [سورة آل عمران: 110].

(4) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب: ومن سورة بني إسرائيل، برقم: (3148).

دَ جنابِ رسول الله ﷺ ډېر لوئي مقام دے، دَ هغې بيان به إن شاء الله پخپل ځائے باندې راځي، هغه وجه پيغمبر ﷺ پهٔ احاديثو کښې بيان کړې ده: چې زما دَ خصوصيت او فضيلت څهٔ وجه ده؟ او څهٔ نښه ده؟ چې ما له الله پهٔ نورو پيغمبرانو اوچت والے نصيب کړے دے، نو (۱) يَو وجه پهٔ هغې کښې نبي ﷺ دا هم ښودلې ده: چې مخکښې انبياء کرام عليهم السلام الله يَو يَو قوم او يَو يَو خاندان ته ليږلي دي او زهٔ چې يمه نو «وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ كَافَّةً».(1)

"زهٔ تمامو خلقو له ليږلے شوے يم".

او کلهٔ وائي: «بُعِثْتُ إِلَى الأَحْمَرِ وَالأَسْوَدِ»(2)

"زهٔ سور رنګ والا او تور رنګ والا ته ليږلے شوے يم"، يعني عربو ته هم ليږلے شوے يم، او دَ عربو نه ما سيوا عجم چې دي نو هغوي ته هم ليږلے شوے يم، نو نبي ﷺ اوچت پيغمبر وو.

الله به دَ نورو انبياؤ نه وعده اغستله چې: اے زما انبياؤ! کهٔ چرې تاسو ژوندي يئ او محمد عربي ﷺ راشي نو ﴿لَتُؤْمِنُنَّ بِهِۦ وَلَتَنصُرُنَّهُۥ﴾.(3)

"خامخه تاسو به پهٔ هغهٔ باندې ايمان راوړئ، او خامخه تاسو به دَ هغهٔ امداد کوئ".

تاسو به بيا خپل مشن پرېږدئ او دَ محمد عربي ﷺ پهٔ شريعت او دَ هغهٔ پهٔ مشن به عمل کوئ.

### دَ سيدنا عمر رضي الله عنه دَ "تورات" نسخه لوستل

هغه مشهور حديث دے: رسول الله ﷺ ناست وو، سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه دَ "تورات" نسخه پړاووله، دَ نبي ﷺ رنګ مبارک بدل شو، سيدنا ابو بکر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه ته وائي: "پهٔ تا دې ستا مور بوره شي تهٔ نهٔ ګورې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ رنګ ته! چې څومره خفه دے او تهٔ بيا هم "تورات" پړاوهې؟"، فَنَظَرَ عُمَرُ إِلَى وَجْهِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ غَضَبِ اللهِ وَغَضَبِ رَسُولِهِ رَضِينَا بِاللهِ رَبًّا وَبِالإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوسَى فَاتَّبَعْتُمُوهُ وَتَرَكْتُمُونِي، لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ، وَلَوْ

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الصلاة، باب قول النبي ﷺ: "جعلت لي الأرض مسجدا وطهورا"، برقم: (438).

(2) أخرجه الدارمي في "سننه" في ومن كتاب السير، باب: الغنيمة لا تحل لأحد قبلنا، برقم: (2510).

(3) [سورة آل عمران: 81].

كَانَ حَيًّا وَأَدْرَكَ نُبُوَّتِي، لاَتَّبَعَنِي».[1]

"عمر ﷺ چې دَ نبي ﷺ مخ مبارک ته اوکتل نو هغه "تورات" ئې بند کړو، وائي: "أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ غَضَبِ اللهِ وَغَضَبِ رَسُولِهِ"، الله پورې پناه غواړم دَ الله دَ غُصې نه او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ غُصې نه، بيا وائي: "رَضِينَا بِاللهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا"، زهٔ راضي يم پهٔ الله باندې چې هغهٔ زما ربّ دے، او پهٔ دينِ اسلام باندې چې هغهٔ زما دين دے، او محمد رسول الله ﷺ باندې چې هغهٔ زما پيغمبر ﷺ دے، او چپ کيښناستو، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ غصه چې کلهٔ کمه شوه نو نبي ﷺ هغهٔ ته فرمائي: دَ قرآنِ کريم پهٔ موجودګئ کښې تهٔ دَ تورات پاڼې اړاوول کوې؟ حالانکه دَ قرآنِ کريم سره مخکښې ټول کتابونه منسوخ شوي دي، پهٔ هغې به اوس عمل نهٔ کوې، چې کلهٔ زمونږ دَ شريعت نه خلاف وي، ورته وائي: دا خو "تورات" دے، پهٔ موسٰی ﷺ باندې رالیږلے شوے دے، کهٔ چرې موسٰی ﷺ پخپله ژوندے وو او زهٔ الله پيغمبر رالیږلے وے نو هغهٔ به هم زما امتي وے"، دومره اوچت مقام والا پيغمبر دے.

نو زمونږ پيغمبر ﷺ پهٔ تمامو پيغمبرانو کښې دَ لوئي مقام والا دے، الله رب العزة فرمائي: ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾.[2]

"دغه پيغمبران دي غوره کړي دي مونږ بعضې دَ دوي پهٔ بعضو نورو باندې".

دا مقام الله محمد عربي ﷺ ته ورکړے دے، دَ چا مقام الله اوچت کړے دے، او دَ چا مقام ئې دومره نهٔ دے اوچت کړے، ليکن ما او تا له دا پکار دي: چې دَ خپل ذهن نه او دَ خپل سوچ نه دَ عصبيت او تعصّب پهٔ بنياد باندې دَ انبياؤ ﷺ پهٔ مينځ کښې فرق نهٔ کوو.

**دَ مومنانو وينا**

الله رب العزة فرمائي: مومنان وائي: ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ﴾.[3]

"مونږ جدا والے نهٔ راولو پهٔ مينځ دَ يو تن دَ انبياؤ ﷺ دَ الله تعالٰی کښې".

---

(1) أخرجه الدارمي في "سننه" في المقدمة، باب: ما يتقى من تفسير حديث قول النبي ﷺ...، برقم: (449).

(2) [سورة البقرة: 253].

(3) [سورة البقرة: 283].

الله! تا چې کوم پیغمبران ﷺ راالیږلي دي مونږ پخپل ذهن کښې دَ هغوي په مينځ کښې تفرِقه نهٔ پیدا کوو؛ چې دا اوچت مقام والا دے او دا دَ ښکته مقام والا دے، لکه یهودو به داسې کول: "چې خپل پیغمبران به ئې منل او نور پیغمبران به ئې نهٔ منل"، مونږ به داسې نهٔ کوو، مونږ به ټول پیغمبران ﷺ منو لیکن عمل به کوو پهٔ شریعت دَ محمد عربي ﷺ باندې، دَ يَو پیغمبر ﷺ سره به مونږ بُغض او حسد نهٔ ساتو، بلکه دَ هر پیغمبر سره به مونږ مینه او محبت کوو، دا دَ ایمانِ کامل تقاضه ده.

نو نبي ﷺ پهٔ تمامو انبیاؤ ﷺ کښې دَ اوچت مقام والا وو، امت دَ نبي ﷺ پهٔ تمامو امتونو کښې دَ اوچت مقام والا دے، الله فرمائي: ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾.[1]

الله وائي: "دارنګې ګرځولي یئ مونږه تاسو لره يَو امت غوره دَ دې دپاره چې شئ تاسو ګواهي کونکي پهٔ خلقو باندې".

تاسو به پهٔ قیامت کښې پهٔ خلقو باندې ګواهي کوئ، دومره دَ انصاف او عدل والا امت دے.

**الله رب العزة به دَ نوح ﷺ نه تپوس کوي**

الله رب العزة به دَ نوح ﷺ نه تپوس کوي: "چې اے نوح! تا خپل قوم ته مسئله بیان کړې وه او کهٔ نهٔ دې وه بیان کړې؟ قوم ته دې بیان کړے وو، او کهٔ نه؟ هغه بد بخته قوم به انکار اوکړي، هغوي به وائي: چې یا الله! مونږ ته نوح ﷺ مسئله نهٔ ده بیان کړې، نوح ﷺ نه به الله تپوس اوکړي: چې تا مسئله بیان کړې وه؟ نوح ﷺ به وائي: ما بیان کړې ده، قوم به ئې وائي: مونږ باندې څوک ګواه پیش کړه؟ دَ چا مخکښې دې مونږ ته مسئله بیان کړې ده؟ الله تعالی به ورته وائي: ګواه درسره شته؟ ګواهان درسره څوک دي؟ نوح ﷺ به وائي: آوا زما سره ګواهان امت دَ محمد رسول الله ﷺ دے، دوي به زما دپاره دا ګواهي کوي، الله به دا امت رااوغواړي، چې تاسو دا ګواهي کوئ چې نوح ﷺ خپل قوم ته مسئله بیان کړې ده؟، نو امت دَ محمد عربي ﷺ به وائي: چې آوا الله مونږ ګواهي کوو، چې مسئله نوح ﷺ قوم ته بیان کړې وه، قوم نهٔ وه منلې، هغهٔ قوم به اعتراض اوکړي: چې تاسو پهٔ آخره زمانه کښې پیدا شوي یئ تاسو ته څهٔ

(1) [سورة البقرة: 143].

پته ده؟ چې مونږ ته نوح عليه السلام مسئله بيان کړې ده او کۀ نۀ ئې ده بيان کړې؟ الله رب العزة به دَ دې امت نه تپوس کوي: تاسو ته څۀ پته ده: چې نوح عليه السلام خپل قوم ته مسئله بيان کړې وه؟ امت به ورته وائي: يا الله! مونږ ستا کتاب لوستلے وو، او ستا پۀ کتاب کښې مونږ وئيلي وو: چې نوح عليه السلام خپل قوم ته مسئله بيان کړې وه: ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا﴾.(1)

الله وائي: "يقينًا مونږ نوح ليږلے وو قوم دَ دۀ ته، نو نوح عليه السلام پخپل قوم کښې پنځوس کم زر (۹۵۰) کاله تير کړي وو".

نهۀ نيم سوه (۹۵۰) کاله نوح عليه السلام خپل قوم ته دعوت چلولے وو، چې دا امت اووائي: چې الله مونږ ستا کتاب لوستلے وو، تۀ دروغ نۀ وائې، نوح عليه السلام خپل قوم ته مسئله بيان کړې وه، نو الله رب العزة به نوح عليه السلام ته وائي: آو! تا مسئله بيان کړې وه".

نو دا امت بهترين امت دے.

### دَ دې امت کار او ذمّه داري

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾.(2)

"تاسو پۀ لوح محفوظ کښې پۀ تمامو امتونو کښې بهترين امت يئ، ايستلے شوي يئ تاسو دپاره دَ فائدې دَ خلقو، تاسو به حکم کوئ پۀ نيکو کارونو باندې، خلق به منع کوئ دَ ناروا کارونو نه، او تاسو به ايمان لرئ پۀ الله تعالى باندې".

نو کار به ستاسو دا وي، علماء کرام ذکر کوي: "چې ﴿أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ "تاسو دَ خلقو دَ فائدې دپاره ايستلے شوي يئ"، خلق به زنځيز کښې راولئ، او پۀ دينِ اسلام کښې به ئې دننه کوئ، دا دَ هغوي دپاره فائده ده".

نو کار به ستاسو دا وي: تاسو به امر بالمعروف کوئ، او نهي عن المنکر به کوئ، او تاسو به ايمان لرئ پۀ الله تعالى باندې، دا دَ غوره امت کار شو، نو اوس کوم سړے چې پۀ الله تعالى باندې ايمان نۀ لري او کوم سړے چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر نۀ کوي دا سړے به غوره

(1) [سورة العنكبوت: 14].

(2) [سورة آل عمران: 110].

امت کښې نشي راتلے، بلکه دا به دې امت کښې ناکاره خلق دے، چې هغهٔ امر بالمعروف نهٔ کوي، او نهي عن المنکر نهٔ کوي، پهٔ الله ایمان نهٔ راوړي.

**اهل کتابوله دَ ایمان ترغیب**

﴿وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ﴾.[1]

"کهٔ چرې ایمان راوړے وے اهل کتابو خامخه به دا غوره وے دَ دوي دپاره، بعضې کسان دَ هغوي نه مومنان دي او زیات پکښې فاسقان دي".

نو مقصد مې دا وو: چې دَ دې امت غوره والے پهٔ دې باندې دے، چې دے به امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوي.

**امر بالمعروف او نهي عن المنکر پرېښودل**

چا چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر پرېښودلے وو، الله پرې عذاب نازل کړے دے، الله دَ هغوي بدي پخپل کتاب کښې بیان کړې ده، قرآنِ کریم کښې الله تعالی دَ یهودو باره کښې ذکر کوي: ﴿لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَى لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ﴾.[2]

"پهٔ لعنت کړے شوي دي هغهٔ کسان چې هغوي کافران وو دَ بني اسرائیلو نه پهٔ ژبه دَ داود ﷺ او پهٔ ژبه دَ عیسٰی ځوي دَ مریم ﷺ باندې (دواړو انبیاؤ ﷺ پهٔ دوي باندې لعنت وئیلے دے)، ...".

**وجه څهٔ ده دَ لعنت وئیلو؟**

وجه دا ده: ﴿ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ﴾.[3]

"دا پهٔ سبب دَ هغې چې دوي به نافرماني کوله او وو دوي زیاتے کونکي".

دَ الله حکمونه ئې نهٔ منل او زیاتے ئې کولو، څهٔ ئې کول؟ ﴿كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُنْكَرٍ فَعَلُوهُ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ﴾.[4]

"وو هغوي چې منع به ئې نهٔ کوله دَ ناروا نه چې کولو به ئې هغې لره، (امر بالمعروف او نهي

(1) [سورة آل عمران: 110].

(2) [سورة المائدة: 78].

(3) [سورة المائدة: 78].

(4) [سورة المائدة: 79].

عن المنکر ئې نهٔ کولو) ډیر بد دي هغهٔ چې دوي کوم کارونه کول".

دوي چې کوم کارونه کول دا ډیر ناکاره کارونه وو، خپله ئې هم ګناه کوله، او بل ئې هم نهٔ منع کولو، چې ګناه مهٔ کوه.

پهٔ دې ځائے باندې علماء کرام ذکر کوي: معلومیږي دَ دې آیت کریمه نه دا خبره او دا مسئله: چې نهي عن المنکر، دَ ناروأ نه منع دا واجب او لازم ده، کوم سړے چې نهي عن المنکر نهٔ کوي، کوم سړے چې دَ ناروأ نه خلق نهٔ منع کوي دا.سړے دَ الله دَ وعید او دَ عذاب مستحق دے، دَ یهودو حالت اوګورهٔ هغوي دَ ناروأ نه منع نهٔ کوله نو لعنت پرې نازل شو.

**پهٔ بني اسرائیلو کښې اول نقصان**

حدیث پاک کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: پهٔ بني اسرائیلو کښې چې رومبنے نقصان راغلے وو، نو هغهٔ دَ څهٔ وجې نه راغلے وو؟ بني اسرائیلو کښې رومبنے نقصان دَ دې وجې نه راغلے وو چې یَو سړي به بل سړے پهٔ ګناه باندې اولیدو، ورته به راغلے او ورته به ئې اوؤئیل: "یَا هَذَا، اتَّقِ اللهَ وَدَعْ مَا تَصْنَعُ، فَإِنَّهُ لاَ یَحِلُّ لَكَ".

"اے سړیه! دَ الله نه اویریږه، دا ګناه مهٔ کوه، پریږده هغهٔ کار چې تهٔ ئې کوې او هغهٔ کار ستا دپاره جائز نهٔ دے".

نو یَو ورځ به ئې ورته دا خبره اوکړه، چې کلهٔ هغهٔ سړے به منع نشو، نو "ثُمَّ یَلْقَاهُ مِنَ الْغَدِ فَلاَ یَمْنَعُهُ ذَلِكَ".

"بیا چې صبا به ورسره میلاؤ شو، بیا به هم دے پهٔ دغه خپل حال باندې وو، نو بیا به ورته دهٔ امر بالمعروف او نهي عن المنکر نهٔ کولو، بیا به ئې ورته څهٔ نهٔ وئیل"، "أَنْ یَكُونَ أَكِیلَهُ وَشَرِیبَهُ وَقَعِیدَهُ".

"چې صبا به شو، نو دَ هغهٔ سره به ئې ناسته هم کوله، دَ هغهٔ سره خوراک به ئې هم کولو، دَ هغهٔ سره څښکاک به ئې هم کولو"، هیڅ قسم تعلق به ئې ورسره نهٔ ختمولو، هسې پهٔ خُلې به ئې وئیل: چې دا کار ښهٔ نهٔ دے، دا کار مهٔ کوه، فَلَمَّا فَعَلُوا ذَلِكَ ضَرَبَ اللهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ".

"کلهٔ چې ئې دا ګناه شروع کړه چې دَ ګناهګار انسان سره به ناست وو، دَ هغهٔ سره به ئې ملګرتوب کولو نو الله دَ دوي زړونه دَ یَو بل سره ګډوډ کړل"، زړونه ئې مختلف شول، دَ دین هغهٔ

جذبه ترې ختمه شوه، نو لعنت وربانديې په دې وجه باندې نازل شو، ټول په لعنت کښې گرفتار شول.

او آخر دَ دې حديث کښې نبي ﷺ فرمائي: «كَلَّا»، "چرې هم داسې نهٔ ده"، چې يَو سړي نه اووائي: چې دا گناه مهٔ کوه، چې صبا دے دا گناه کوي تهٔ نهٔ امر بالمعروف کوي، او نهٔ نهي عن المنکر کوي، نهٔ دَ هغهٔ نه خپل ځان خفه کوي، نهٔ دَ هغهٔ سره خپل تعلّقات ختموي، دا کورے دَ کاميابئ کار نهٔ دے، «وَاللهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ، وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيِ الظَّالِمِ، وَلَتَأْطُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا، وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا».(1)

نبي ﷺ فرمائي: "په الله مې دې قسم وي، خامخه تاسو به امر بالمعروف او نهي عن المنکر به کوئ، او دَ ظالم سړي لاس به نيسئ، هغهٔ به دَ ظلم نه منع کوئ، تاسو به دغه سړے حق نه مجبوره کوئ، چې حق ته ئې مائل کړئ".

دا به ستاسو کار وي.

## دَ دې زمانې دَ خلقو کار

صرف په دې باندې کار نهٔ کيږي، چې دَ هغهٔ خپل کار دے، او زما خپل کار دے، په نن زمانې کښې دا شے ډير زيات دے، کلهٔ چې تهٔ دَ يَو رسم ردّ کوې، دَ يَو ناروا ردّ کوې نو کلهٔ کلهٔ به درته دا خپل ملگري وائي: يَره، جي! پريږده چې څوک څهٔ کوي نو ځان له ئې کوي، دا مسئلې پريږده.

## مسئلې پټول

دا خبره ياد اوساته! هغه عالم، هغه مشر، هغهٔ سپين ږَيرے انسان چې هغهٔ ته مسئله معلومه وه، ليکن بيا دَ خلقو دَ يَرې دَ وجې نه، دَ خلقو دَ خفگان دَ وجې نه حق مسئله نهٔ ښکاره کوي، دَ قيامت په ورځ باندې به دغې سړي ته دَ اُور واکې واچولے شي، بعضې خلق دَ جماعت دَ وجې نه، دَ لالچ دَ وجې نه، او بعضې خلق دَ خپل عزت دَ وجې نه حق پټوي، کهٔ ستا هر څومره لوئي عزت شي، خو دَ الله دَ دين نه لوئي عزت نشي کيدے، دا دين دومره معزّز دے، چې ايک لاکه چوبيس هزار کم وبيش انبياء کرام ﷺ الله دنيا له دَ مخلوق دَ هدايت دپاره راليږلے وو، کلهٔ هم الله يَو پيغمبر ته نهٔ دي وئيلي: چې زما پيغمبره! خير دے دلته دا مسئله مهٔ

(1) أخرجه أبو داود في كتاب الملاحم، باب الأمر والنهي، برقم: (4336).

بيانوه، هسې نه چې ستا څوک بے عزتي اوکړي، هسي نه چې تا پسې څوک کنځل اوکړي، هسې نه چې تا پسې څوک ردې بدې اووائي، نا! نا! بلکه ربّ کائنات خو خپل پيغمبر ﷺ ته وائي: ﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾.(1)

"اے زما پيغمبره! صفا صفا مسئله بيان کړه، څنګه چې درته دَ الله دَ طرف نه حکم شوے دے، او دَ مشرکانو خلقو نه مخ واړوه".

کلهٔ ربّ کائنات فرمائي: ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ﴾.(2)

"اے زما پيغمبره! کلک اودريږه لکه څنګه چې تا ته حکم شوے دے، څهٔ حکم چې دَ الله دَ طرف نه دے هغهٔ خلقو ته بيان کړه، او کلک اودريږه".

**دَ نبي ﷺ کيره مبارکه کښې سپين ويښتهٔ:**

حديث پاک کښې راځي: جناب محمد رسول الله ﷺ پهٔ کيره مبارکه کښې سپين ويښتهٔ ښکاره شول، بعضې ويښتهٔ پکښې سپين شوي وو، صحابه کرامو ﷺ ورته اووئيل: "يَا رَسُولَ اللهِ! قَدْ شِبْتَ".

"اے دَ الله پيغمبره! تهٔ خو بوډا شوې".

نو نبي کريم ﷺ ورته فرمائي: «شَيَّبَتْنِي هُودٌ، وَالوَاقِعَةُ، وَالمُرْسَلاَتُ، وَعَمَّ يَتَسَاءَلُونَ».(3)

"زهٔ سورة "هود" او "سورة الواقعه"، "مرسلات" او "عمّ يتساءلون" بوډا کړم".

علماء کرام وائي: کوم آيت بوډا کړو؟ دې آيت چې: ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ﴾.(4)

"اے زما پيغمبره! کلک اودريږه لکه څنګه چې تا ته حکم شوے دے".

دا ئې نهٔ دي وئيلي چې دلته شر پيدا کيږي، دلته به دا مسئله نهٔ کوم.

بعضې خلق دَ حکمت پهٔ مطلب نهٔ پوهيږي، دين ئې پټ کړے وي، دَ خپو دَ لاندې کړے ئې وي، او تا ته به وائي: چې قرآنِ کريم کښې الله وائي: ﴿ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾.(5)

(1) [سورة الحجر: 94].
(2) [سورة هود: 112].
(3) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب: ومن سورة الواقعة، برقم: (3297).
(4) [سورة هود: 112].
(5) [سورة النحل: 125].

"دَ الله لارې ته خلق راوبله په حکمت سره، او په خائسته نصیحت سره".

نو دوي به څۀ وائي؟ وائي به: چې دَ الله لارې ته خلق رابله خو په حکمت حکمت سره کار اوکړه، خائسته طریقې سره کار اوکړه، ورته وایه: دَ دې څۀ مطلب دے؟ حکمت څۀ ته وائي؟ نو دَ حکمت دوه (۲) قسمه دي: (۱) دا ستا په کور کښې جوړ شوے حکمت دے، او یَو دَ الله نازل کړے شوے حکمت دے، په دې دواړو کښې فرق دے، الله چې وائي: ﴿بِالْحِكْمَةِ﴾، "په حکمت باندې خلق راوبله، په خائسته نصیحت باندې خلق راوبله"، نو دا ستا دا حکمت نۀ یادَوي، څۀ مسئلې ښکاره کوه او څۀ مسئلې پټوه، بلکه الله وائي: چې زما دَ کتاب په بیان خلق راوبله، زما دَ پیغمبر ﷺ په سُنتو باندې خلق راوبله، دَ دروغو قیصې ورته مۀ کوه، امر بالمعروف او نهي عن المنکر دَ دې امت فرض دي، چې دوي به دا کار کوي، دَ الله دَ دین په بیان کښې به دَ هیچ چا نه نۀ یرېږي، ﴿وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ﴾.(1)

"دَ الله دَ دین په بیان کښې به دَ هیچ چا دَ ملامتیا نه نۀ یرېږي".

دا به دَ هر مبلّغ فریضه وي، په دې کښې بے عزّتي نشته، زما او ستا عزّتونه دې دَ انبیاؤ علیهم السلام په عزّت باندې قربان شي، او بیا خاص کر امام الأنبیاء محمد مصطفٰی ﷺ نه، چې یَو شاعر دَ نبي ﷺ باره کښې وئیلي وو:

بِأَبِيْ وَأُمِّيْ نَاطِقٌ فِي لَفْظِهِ ثَمَنٌ تُبَاعُ بِهِ الْقُلُوبُ وَتُشْتَرَى(2).

"زما مور او پلار دواړه دَ هغې خبرې کونکي انسان نه قربان شي هغۀ خبرې کونکے انسان چې دَ هغۀ خبرو مثال دَ پیسو دے، دَ هغۀ په هغې الفاظو باندې زړونه اغستلے کیږي، او خرڅیږي".

ما او تا خو به په پیسو باندې سودا کوو، او دَ محمد عربي ﷺ الفاظ دَ خُلې نه راوتل او دَ سړي زړۀ اغستل، چا ته چې به ئې خبره اوکړه نو ورته به ئې اووئیل: چې ما ته کلمه اووایه، بل به پکښې څۀ نۀ وو.

**دَ نبي ﷺ خواته دَ یَو کس راتلل**

دَ نبي ﷺ خوا ته یَو کس راغلے وو، چا ورته وئیلي وو: چې دا محمد چې دے نو دے

(1) [سورة المائدة: 54].

(2) انظر: "يتيمة الدهر" لعبد الملك بن محمد بن إسماعيل أبو منصور الثعالبي: (186/3).

لیونے شوے دے، دماغ ئې خراب شوي دي، دم پرې واچوه، کۀ الله جوړ کړو، هغۀ له به خلقو دغه بیماران راوستل، پۀ چا به سحر شوے وو، پۀ چا به لیونتوب وو، هغه به پرې دم اچولو، الله به روغولو، سړے مشرک وو، دَ جهالت دور وو، وائي: "څوک نشته چې دے ما ته راولي، چرته دَ بیت الله شریف حج له راغلے وو، دَ نبي ﷺ تپوس ئې اوکړو، چې دلته هغۀ محمد بن عبد الله کوم ځائے کښې دے؟ ما ته چا وئیلي دي: چې هغۀ لیونے دے، چې دم پرې واچوم، کۀ الله روغ کړو؛ څکه خو غلطې غلطې خبرې کوي"، نبي ﷺ سره میلاؤ شو، نبي ﷺ ته وائي: "چې ما ته چا اووئیل: چې تۀ لیونے شوے ئې، دماغ دې کار نۀ کوي، رادېخوا شه چې دم درباندې واچوم"، نبي ﷺ ورته وائي: "ما ته غوږ کیږده"، نبي ﷺ صرف خطبه شروع کړه: «إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ، نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أَمَّا بَعْدُ»،[1] دَ دې ځائے پورې چې خطبه ئې اووئیله نو دے ورته وائي: "أَعِدْ عَلَيَّ كَلِمَاتِكَ هَؤُلَاءِ".

"دوباره ئې راته اووایه!".

بیا دَ سر نه نبي ﷺ خطبه شروع کړه، او دا وو اخلاق دَ پیغمبر ﷺ، چې بیا ئې خطبه اووئیله نو ورته وائي: بیا ئې راته اووایه، نبي ﷺ ورته پۀ دریم ځل هم بیا خطبه دَ سر نه شروع کړه، او دا وو اخلاق دَ پیغمبر ﷺ کۀ چرې ما او تا ته چا اووئیل: چې بیا اووایه! نو پۀ دویم ځل باندې به اووایُو، خو زړۀ به مو مات وي، خو کۀ پۀ دریم ځل باندې وي، نو بیا به وایُو: چې تا له ئې جوړې خوند درکړو، دا اخلاق دَ محمد مصطفی ﷺ وو.

پۀ دریم ځل ئې ورته بیا خطبه شروع کړه، چې آخر ته ئې اورسوله لاس ئې رااوږد کړو، وائي: لاس رادېخوا کړه، چې زۀ تا سره پۀ اسلام بیعت اوکړم، او وائي: زما دې پۀ الله تعالی باندې قسم وي، چې ما دَ شاعرانو خبرې اوریدلي دي، ما دَ کاهنانو خبرې اوریدلي دي، ما دَ مجنونانو خبرې اوریدلي دي، دا دَ انسان کلام نۀ دے، او دَ هغۀ صحابي نوم دے: "ضماد ﷺ".

## دَ عبدالله بن سلام ﷺ ګواهي

داسې دَ لوئي شان والا پیغمبر ﷺ چې عبد الله بن سلام دَ یهودو مُلا وو، بیا مسلمان

(1) اخرجه مسلم في كتاب الجمعة، باب تخفيف الصلاة والخطبة، برقم: (868).

شوے وو، وائي: کلهٔ چې ما دَ پیغمبر ﷺ خبرې واوریدې نو راغلم چې ما دَ نبي ﷺ مخ نهٔ اوکتل، صرف دَ پیغمبر ﷺ مخ چې مې اولیدو نو زهٔ پوهه شوم چې دا دَ دروغژن سړي مخ نهٔ دے، صرف پهٔ مخ لیدو باندې ایمان راوړي، داسې حسین او جمیل پیغمبرﷺ، داسې لوئي شان والا پیغمبر ﷺ چې هغهٔ الله دَ خپل دین نه قربان کوي، دَ هغهٔ پهٔ دې دین باندې سر ماتیږي، دَ هغهٔ پهٔ دې دین باندې غاښونه شهیدان کیږي، نو کهٔ چرې ما او تا ته چا یَو کنځل اوکړه، نو دا به بده خبره وي؟ کهٔ چرې ما او تا باندې چا دباؤ اوکړو، نو دا بے عزّتي نهٔ ده، بلکه دا عزّت دے، دَ الله دپاره کهٔ ستا دا بدن ټوټې شو، خو ته به دَ الله دین نهٔ پریږدې.

**دَ الله پهٔ دین باندې مرګ**

یاد ساته! کهٔ دَ دنیا دارو خلقو پهٔ ذهن کښې تهٔ مړ هم شې، خو تهٔ مړ نهٔ ئې، دَ الله پهٔ دربار کښې تهٔ ژوندے ئې، دغه وجه ده چې الله رب العزة فرمائي: ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِن لَّا تَشْعُرُونَ﴾.(1)

"مهٔ وایئ تاسو هغهٔ چا ته چې څوک دَ الله پهٔ لار کښې مړ شو (شهیدان شو) فضول مړ، بلکه دوي ژوندي دي خو تاسو پهٔ هغهٔ ژوند باندې نهٔ پوهیږئ".

نو شهداؤ باره کښې دا چرته اونهٔ وایئ: چې دوي هسې ځان مړ کړو، نا بلکه دوي ژوندي دي، هغوي خو پهٔ صحیح ژوند باندې اوس ژوندي دي، اګر چې تاسو دَ هغوي پهٔ دې صحیح ژوند باندې نهٔ پوهیږئ، کلهٔ چې دَ دهٔ دَ بدن نه روح اووتلو، او دَ هغهٔ بدن نه ساه اووتله دغه روح لاړشي او دَ عرش دَ لاندې دَ جنت الفردوس سره فنجرې رازوړندې دي، شنهٔ شنهٔ مارغان پکښې ناست دي، دَ یَو مارغهٔ ججوره کښې دننه شي، «تَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ، ثُمَّ تَأْوِي إِلَى تِلْكَ الْقَنَادِيلِ».(2)

نبي ﷺ فرمائي: "کوم ځائے کښې ئې چې خوښه وي جنت کښې ګرځي او سریږي، او بیا واپس راځي دغه فنجرو ته".

پهٔ دې دین باندې چې تهٔ مړ شي نو هله به ژوندے کیږې.

(1) [سورة البقرة: 154].

(2) أخرجه مسلم في كتاب الإمارة، باب بيان أن أرواح الشهداء في الجنة، وأنهم أحياء عند ربهم يرزقون، برقم: (1887).

دا یاد اوساته! په دې دین باندې چې تا ته څومره تکلیف میلاؤ شو، چا نه یریږه مه، دَ چا دَ وجې نه حق خبره مهٔ پریږده، او سوچ اوکړه: چې ستا نه مخکښې اُمّتونو ته څومره تکلیفونه میلاؤ شوي وو، دغه شان به تهٔ هم لږه سخته تیرَوې، تکلیف به تیرَوې او کهٔ تکلیف نهٔ تیرَوې سخته نهٔ تیرَوې بس چې چا څهٔ اوکړل ښهٔ ئې اوکړل نو یاد ساتئ! چې پهٔ دې ګناهګارو عذاب راځي نو پهٔ ما او تا باندې به مخکښې راځي، خپله غاړه به دَ الله پهٔ دربارِ عالیه کښې خلاصوو، زمونږ او ستاسو غاړه به هله خلاصیږي چې مونږ امر بالمعروف اوکړو او نهي عن المنکر اوکړو، عزتمندو! دا خبره صحیح ده: چې مونږ کښې خو هر سړے امر بالمعروف او نهي عن المنکر نشي کولے خو بعضې خلق به امر بالمعروف او نهي المنکر کوي او بعضې خلق به دَ دغې خلقو سره تعلق او ملګرتوب کوي، دَ هغوي امداد به کوي، نو هله به دا مسئله پهٔ مخکښې باندې ځي.

**دَ نبي ﷺ ملګرتیا**

نبي ﷺ به امر بالمعروف کولو، نهي عن المنکر به ئې کولو، صحابه کرامو ﷺ به دَ نبي ﷺ سره اوکه پهٔ اوکه باندې ولاړ وو، کهٔ میدانِ جهاد له نبي ﷺ تلے دے نو صحابه کرامو ﷺ خپل ځان قربان کړے دے، خو پهٔ نبي ﷺ ئې ګُزار نهٔ دے پریخودلے، کهٔ میدانِ بیان کښې ولاړ دے نو صحابه کرام ﷺ ورسره ولاړ دي، بیان نبي ﷺ کوي او دفاع ئې صحابه کرام ﷺ کوي، نو کهٔ امر بالمعروف نشئ کولے نو دَ حق پرستو علماؤ ملګرتوب خو کولے شئ.

**دَ دین کار ته سپک کتل**

بعضې خلق وائي: یره! تنظیم پکښې چا راوستے دے؟ او دا مشورې پکښې چا راوستي دي، دَ دین دپاره به ستا یَو تنظیم وي، دَ دین دپاره به ستا یَو جماعت وي، دَ دین دپاره به ستا یَو مشوره وي، نو هله به دین پهٔ مخکښې باندې ځي، او کهٔ چرې ستا تنظیم نهٔ وي ستا مشوره نهٔ وي ستا اتفاق او اتّحاد نهٔ وي نو یاد ساته! تهٔ دَ دین کار نشې کولے، دا خرونه څومره لوئي لوئي ځناور دي، خو لیکن چې دَ هغوي پهٔ مینځ کښې ربط او ترون نشته دَ هغوي مینځ کښې دَ یَو بل سره تعلّق نشته دغه خرونه دي نو کهٔ یَو وړوکے ماشوم وریسې شي چې کوم خوا ئې زغلوي نو منډې وهي، هیڅ هم نشي کولے، کهٔ دا ماشوم نور هیڅ نشي کولے خو دَ خپل پښې نه ئې شړلے

شي، لیکن وړه دَ ګبین مچۍ ده، خو چې دَ دوي پخپل مینځ کښې تعلّق دے، خپل مینځ کښې ئې اتّفاق دے، پخپل مینځ کښې ئې وحدت دے نو یَو زورَور انسان، یَو طاقتور انسان چې ځان له طاقتوَر وائي، نو هغهٔ دَ مچو هغې ګبین له لاس نشي وروړلے، خومره پریږي! نو چې انسان سوچ اوکړي نو مچۍ غټه ده او کهٔ خر غټ دے؟ خو چې دَ دې مچو اتفاق شته، دَ دې مچو تنظیم شته، دَ دوي خپله کښې یَو بل سره تعلّق شته نو وړې مچۍ دي خو یَو لوئي انسان هغې ته لاس نشي اوړے، کټه ورته نشي غورځولے، بل څهٔ شے ورته نشي غورځولے، دا سړے دَ هغې نه پهٔ اړخ باندې ځي، هسې نه چې ما اوچیچي.

دغه شان وړوکے میږے اوګوره! څومره واړهٔ دي، چې ایله پهٔ سترګو ښکاري، خو لیکن چې کله میږي یَو ځائے کښې راجمع شوي وي، او دَ هغوي اتفاق دے، نو دَ هغوي پهٔ خوا کښې هم څوک نهٔ تیریږي، ورته پته ده: چې کهٔ ساعت کینښنم نو ټول بدن مې دَ میږو ډکیږي.

**انفرادي کار**

دا یاد اوساتئ! دَ دین کار انفرادي نهٔ کیږي، دَ دین کار اجتماعي کار ته وائي، امر بالمعروف، نهي عن المنکر نوم دَ اجتماعي کار دے، مونځ خو مونږ ځانله کوو، یَو مونځ دے ځانله دې اوکړو نو دا یَو مونځ یَو پهٔ یَو دے، او چې ځانله دې اوکړو نو دَ غاړې نه دې فرض خلاص شول، لیکن چې کلهٔ سړے جومات له راشي او جَمعې سره مونځ اوکړي نو یَو مونځ پهٔ اوویشت (۲۷) درجې دے، دا ولې؟ هغهٔ هم مونځ دے او دا هم مونځ دے، دَ جَمعې سره مونځ کښې ځکه ثواب ډیر دے؛ چې پهٔ دې کښې خلق راجمع شوي وي، او الله ته اجتماعیت خوښ دے، افتراقیت الله ته نهٔ دے خوښ.

دارنګې دَ اختر پهٔ ورځ دا عید ګاه ته خلق ولې ځي؟ دَ جُمعې دا مونځ پهٔ هر جومات کښې ولې نهٔ کیږي؟، باندو کښې ولې نهٔ کیږي؟ دَ دې وجه هم دغه ده چې تمام مسلمانان به یَو کولاؤ میدان کښې راجمع شي، دَ اختر پهٔ ورځ به عیدګاه کښې راجمع شي، او کافران هغوي ته ګوري نو پهٔ هغوي باندې به رُعب راځي، پهٔ هغوي باندې به یره راځي؛ ځکه الله ته اجتماعیت خوښ دے، پهٔ اجتماعیت کښې چې کوم کار کیږي هغه پهٔ انفرادیّت باندې نهٔ کیږي.

دغه وجه ده: چې کوم صحابي پهٔ پیغمبر ﷺ باندې ایمان راوړے دے، او چرته پیغمبر ﷺ اعلان کړے دے، چې صبا جهاد ته ځو نو هغهٔ سړے به دَ جهاد نه پاتې کیدو چې هغه به منافق

وو، هر صحابي به منده راوخله، او دَ نبي ﷺ سره به جهاد له تلو، کهٔ چرې دَ هغوي تنظيم نهٔ وے، پهٔ هغوي کښې اتفاق نهٔ وے نو نبي ﷺ به پهٔ يَواځې باندې څومره جنګ کړے وے؟ څومره مقابله به پيغمبر ﷺ کړې وه؟ ليکن چې کلهٔ پهٔ هغوي کښې تنظيم شته، پهٔ هغوي کښې اتفاق شته، حديث پاک کښې راځي: نبي ﷺ ميدان جهاد کښې ولاړ دے، غشي راځي، او نبي ﷺ باندې ګُزارونه کيږي، دَ تورې ګُزارونه پهٔ نبي ﷺ باندې کيږي، دَ نيزې ګُزارونه پهٔ نبي ﷺ باندې کيږي، سيدنا طلحه ؓ ولاړ دے خپل بدن ئې دَ نبي ﷺ بدن مبارک ته مخامخ کړے دے، چې غشے راځي، سيدنا طلحه ؓ ئې پخپل لاس واپس کوي، چې دَ نيزې ګُزار کيږي سيدنا طلحه ؓ ورته خپل لاس مخکښې کوي، حديث پاک کښې راځي: عَنْ قَيْسِ بن أبي حازم ؓ، قَالَ: "رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ الَّتِي وَقَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ شَلَّاءَ".(1)

"قيس بن ابي حازم ؓ وائي: ما دَ طلحه ؓ هغهٔ لاس شل ليدلے وو چې پهٔ کوم لاس ئې نبي ﷺ دَ اُحُد پهٔ ورځ بچ کولو".

نو دَ تورو او دَ نيزو پرې دومره ګُزارونه شوي وو، چې هغهٔ لاس ئې شل شوے وو، او کار ئې نهٔ کولو، او څهٔ کم سل (۱۰۰) يا څهٔ دَ پاسه (۸۰) ګُزارونه دَ هغهٔ پهٔ لاس شوي وو، دا خپل بدن ئې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ بدن مبارَکه نه قربان کړے دے، خپل ځان ئې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه قربان کړے دے، دَ هغوي پهٔ مينځ کښې څومره اتفاق او اتحاد وو!

مسلمانانو رونړو! پهٔ ځان کښې اتفاق او اتّحاد پيدا کړئ، او اتفاق او اتحاد پهٔ څهٔ باندې پکار دے؟ اتفاق او اتحاد دَ الله پهٔ دين باندې پکار دے، زمونږ دَ دنيا اتفاق او اتحاد وي، خو نن زمونږ ديني اتفاق او اتحاد ختم شوے دے.

چې مونږ پهٔ دين کښې راجمع شو دغې ته تنظيم وائي، دَ دنيا کار خو دَ هر سړي ځان ځان له دے، کهٔ څوک ځان له غنم کري او کهٔ څوک ځان له جوار کري، خو ليکن دَ دين کار پخپل طبعيت باندې نهٔ کيږي، هغهٔ چې الله څنګه نازل کړے دے، هغهٔ شان به ئې مونږ کوو، مونږ به دَ هغې دپاره تنظيم او جماعت جوړوو، چې څوک هم دَ دين کار کوي هغهٔ به زمونږ ملګرے

(1) انظر: "الجمع بين الصحيحين البخاري ومسلم"، برقم: (170).

وي، او څوک چې دَ دین خلاف کوي نو مونږ به ټول هغهٔ ته يَو کيږو نو پهٔ محله کښې به هيڅ څوک ګناه‌ګار پاتې نشي، کهٔ چرې داسې يَو تنظيم جوړ شي، چې پهٔ محله کښې څومره کسان دي، د دوي اتفاق وي، چې پهٔ محله کښې څومره کسان مونځ ته نهٔ راځي هغهٔ سره به مونږه دَ دنيا کار نهٔ کوو، کهٔ هغهٔ بيمار شي تپوس ته به ئې نهٔ ځو، کهٔ هغهٔ باندې غم راغے غم کښې به ورسره نهٔ کينښنو، کهٔ پهٔ هغهٔ باندې ښادي راغله ښادئ له به ورسره نهٔ ځو، نو ايمان سره وئيل پکار دي: کهٔ چرې يَو سړے دَ الله دَ رضاء دپاره مونځ نهٔ کوي، نو دَ عزيز دي دپاره به مونځ کوي، خو اتفاق چرته دے؟ تنظيم چرته دے؟ محبت چرته دے دَ دين دپاره؟ دَ دنيا دپاره خو کهٔ چرته يَو سړے ما ته لږه ترخه خبره اوکړه نو هغهٔ بيا زما دَ عمر دُشمن دے؛ ځکه چې زما بے عزتي ئې کړې ده: دهٔ ماته داسې وئيلي دي، او کهٔ زما ستا دين برباديږي، دَ يَو سړي آخرت بربادیږي نو ما او تا دَ هغې دپاره هيڅ فکر نهٔ کوو، پهٔ دې ملک کښې څومره بدعات کيږي، مونږ چغې وهو چې: اے ايماندارو! راځئ، دا خپل غم او ښادي دا خپل شکل او صورت دا خپل لين دَين، دا خپل اخلاق معاملات پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ باندې کړئ.

مسلمانانو رونړو! کهٔ چرې مونږ اتفاق اوکړو: چې پهٔ کوم غم کښې خلاف شرع کار اوشو هغې غم له به مونږ نهٔ ورځو، نو کهٔ تهٔ نهٔ ورځې نو هغهٔ خو وريژې تا له پخوي، چې تهٔ اووائې: چې دغه وريژې حرامې دي، دا زهٔ نهٔ خورم، زهٔ به دَ غم کور کره اورم نو بيا به هغهٔ وريژې نهٔ پخوي، او کهٔ هغهٔ ئې پخې کړي او ما کره ئې رااوليږي، او زهٔ وايم: چې زهٔ دا نهٔ خورم، نو هغهٔ بل وائي: ما کره ئې راوليږه، چې زهٔ ئې خورم، دا خو خيرات دے، خلق وائي: دوي خيرات نهٔ مني، زهٔ وايم: چا دَ خيرات نه منع کړي يئ؟ خيرات نه دې نهٔ منع کوو، دَ بدعاتو نه دې منع کوو.

**: امام آلوسي رحمه الله قول**

امام آلوسي رحمه الله پخپل تفسير کښې ليکلي دي، او ردّ ئې کړے دے پهٔ هغې قاريانو باندې چې غوي پهٔ تراويح کښې ختمونه کوي، يا دغه شان اجتماعي ختمونه کوي، خلق راجمع کړي، وائي: ځئ! مونږ له ختمونه اوکړئ، او بيا خيزونه اووېشي، نو امام آلوسي رحمه الله وائي: "مونږ خلق دَ عبادت نه منع کوو، چې پيغمبر ﷺ نهٔ دے کړے، او تهٔ ئې کوې نو دا ولې کوې، دَ بدعاتو نه خلق منع کوو".

مونږ باندې بعضې خلق الزام لګوي، وائي: دوي خيرات نۀ مني، مونږ دَ خيرات نه څوک نۀ منع کوو، دَ شپې خيرات کوه، دَ ورځې خيرات کوه، پۀ پټه خيرات کوه، پۀ ښکاره خيرات کوه، هر وخت خيرات کوه، خو زمونږ صرف دغه جرم دے: چې مونږ وايُو: خيرات دَ پيغمبر ﷺ پۀ طريقه باندې اوکړه، دا مونږ نۀ دي وئيلي: چې داَ خيرات زمونږ دَ پلار پۀ طريقه باندې اوکړئ، دا مو نۀ دي وئيلي: چې دا خيرات زمونږ دَ نيکۀ پۀ طريقه باندې اوکړئ، دا مو نۀ دي وئيلي: چې دا خيرات دَ هندوانو او دَ سيکانو پۀ طريقه باندې اوکړئ، کۀ دغه مو وئيلے وے نو دا به زمونږ غټ جرم وے، بلکه زمونږ جرم دا دے: چې دا خيرات دَ پيغمبر ﷺ پۀ طريقه باندې اوکړئ، مونږ ته ئې دين راوړے دے، چې هغۀ څۀ وئيلي دي نو هغه ريښتيا دي، او کۀ دَ پيغمبر ﷺ پۀ خبره کښې دې معمولي هم شک راغلے چې دا دروغ دي نو تۀ کافر کيږې.

دارنګې مونږ وايُو: چې دعاء کوئ نو پۀ سنت طريقه باندې ئې اوکړئ، پيغمبر ﷺ دَ سنت مونځ نه بعد پۀ مصلّٰي باندې دعاء نۀ ده کړې، سنت ئې پۀ کور کښې کړې دي، او کۀ پۀ جومات کښې ئې کړي دي نو پۀ اجتماعي طريقې سره نبي ﷺ دَ سنتو نه روستو پۀ جمع دعاء نۀ ده کړې، نو مونږ ئې بدنام کړو وائي: پنج پيريان دعاء نۀ مني.

**دَامام تعلق دَ مقتديانو سره دَ سلام سره ختم؛ لهذا فرض مونځ نه بعد دعاء کول..**

رورہ! دعاء چې نۀ مني هغۀ خو کافر دے؛ ځکه الله تعالی وئيلي دي: چې زما نه سوال کوئ، او حديث مبارکه کښې راځي: «الدُّعَاءُ مُخُّ العِبَادَةِ».(1)

" دعاء دَ عبادت مَغز دے".

چې دعاء نه دې انکار اوکړو نو دَ ټول دين نه دې انکار اوکړو، دعاء څوک نۀ مني؟ خو مونږ وايُو: بدعت مۀ کوئ، دعاء کوه خو بدعت مۀ کوه، دعاء کوه خو دَ سنت مونځ نه روستو ځان له ئې کوه، پۀ دغه وخت کښې ئې جمع سره مۀ کوه؛ ځکه امام سره ستا څۀ تعلّق دے؟ امام خو چې سلام اوکرځولو نو ستا خپل کار دے، او دَ امام خپل کار دے، بعضې خلق داسې کوي: چې فرض اوکړي نو امام پۀ مصلّٰي باندې مخ رااوکرځوي قوم طرف ته، نو پۀ زوره باندې به آيت

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الدعوات، باب ما جاء في فضل الدعاء، برقم: (3371).

اووائي: ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا وَإِنْ لَمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾،(1) دعاء شروع كړي، دَ دې دپاره چې دَ مقتديانو زما ته خيال شي: چې ما خو لاس بره كړل نو چې دوي هم راسره لاس بره كړي، نو بيا به دعاء پټه وائي، وائي، نو چې كلهٔ دعاء ختموي نو بيا به پهٔ آخر كښې پهٔ زوره باندې يَو آيت اووائي، دَ دې دپاره چې دَ دې خلقو ما تهٔ خيال شي: چې استاذ پهٔ مخ باندې لاس راښكې، دا يَو ځائے دَ امام سره لاس اوچتول او دا يَو ځائے بيا پهٔ مخ راښكل او دا ضروري كنړل دا پهٔ دين كښې نشته، امام به لږه دعاء غواړي نو تهٔ ډيره غواړه كنه، ولې نهٔ غواړې، دَ الله دربار خو لږ نهٔ دے، امام له به لږه پكار وي تا له به ډيره پكار وي، نو چې دعاء اوغواړې نو څه كنه، هسې دې ځان بانډه كړے دے، امام سره تعلق ستا صرف پهٔ فرض مونځ كښې وو، چې امام بره كيدو نو تهٔ به هم بره كيدې، چې امام ښكته كيدو نو تهٔ به هم ښكته كيدې، چې ترڅو پورې هغهٔ سلام نهٔ وو كرځولے نو تهٔ دَ هغهٔ تابع وې، چې امام سلام اوګرځولو، كهٔ څوك ځي نو تلے شي، كهٔ څوك ذعاء كوي، نو ځان له دې غواړي، كهٔ اوږده غواړي او كهٔ لنډه غواړي، كهٔ امام ځان له غواړي نو غواړي به، او كهٔ نهٔ غواړي نو نهٔ دې غواړي، دا مسئله ده.

كهٔ مونږ خلقو ته حقه خبره ښكاره كړو نو بعضې بد بخته خلق هغوي ښهٔ پوهه دي، خو پهٔ ضِد باندې ولاړ دي، دَ عوامو ذهن خرابول غواړي وائي: يره دوي دعاء نهٔ مني، كهٔ مونږ دا اووايُو: چې تاسو دَ مړي دَ روژو او دَ مونځونو حساب اوكړئ، دَ هغې پهٔ صحيح طريقه باندې فديه وركړئ، غريبانانو له ئې وركړئ، نو خلق مونږ باندې الزام لګوي، وائي: دوي اسقاط نهٔ مني، دوي فديه نهٔ مني، مونږ دا هر څهٔ منو خو جرم زمونږ صرف دا دے: چې مونږ وايُو: پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ ئې منو، يَو سړے دې مونږ ته اوښائي چې دا دوي چې كوم بدعات كوي دا شته؟

بهر حال مسلمانانو رونړوا كهٔ مونږ او تاسو اتفاق او اتحاد اوكړو نو پهٔ ټول ملک كښې به څوک خلافِ شرع كار اونهٔ كړي، مونږ چې حكومت پسې لګيا يُو، چې دا حكومت داسې دے، او دا حكومت داسې دے نو تا له چرته حكومت تې وي اغستې ده؟... دا دَ امرٌبالمعروف او نهي عن المنكر خبرې دي، حقيقت به وايُو، كوم يَو كس له دَ ملک صدر تې وي راليږلے دے، صحيح خبره ده، چې حاكم خو صحيح نهٔ دے هغه هر ظلم او زياتے كوي هغهٔ جدا مسئله ده،

(1) [سورة الأعراف: 23].

ليکن قوم پخپل ځان باندې اسلام نهٔ راولي، نو حکومت به ئې درباندې دَ کوم ځائے نه راولي؟ کهٔ دا تې وي ده، نو دَ دې ایجاد انګریزانو کړے دے، کهٔ يَو کس کره تې وي نهٔ وي، نو دَ هغهٔ بچے کاونډي کره ځي او تې وي کوري، کهٔ چرې زهٔ پخپل وادهٔ کښې ډمې نهٔ راولم او ځان ته بنهٔ سرے وایم نو چې زما کاونډي ئې راولي نو مخکښې پکښې زهٔ ناست يم!.

زهٔ وایم: کهٔ چرې داسې اتفاق مونږ کښې پیدا شو: چې داسې عهد اوکړو: چې پهٔ کوم غم کښې خلاف شرع کارونه وي، خلافِ شرع څنګه؟ خلافِ شرع دا دے: چې دریو ورځو کښې دننه کومې وریژې پخې شي، هغهٔ به نهٔ خورو؛ ځکه دا روژي داسې حرامې دي، دا ډوډۍ داسې حرامه ده لکه مړې پسې نچې ژړا حرامه ده، نو دا ډوډۍ به نهٔ خورو، يَو طرف ته دې خپلوان دي بل طرف ته الله تعالی دے، دَ چا مقام اوچت دے؟ دَ الله رب العزة مقام اوچت دے، چې يَو طرف ته الله خفه کيږي او بل طرف ته خپلوان خفه کيږي، نو خپلوان به خفه کوو، او الله به خوشحالوُ، زما خو دَ نن نه دا عهد دے: چې کوم خيرات خلافِ شرع دے، زهٔ به هغې ته نهٔ ځم، او هغهٔ ډوډۍ او وریژې به نهٔ خورم، کهٔ چرې مونږ دا اتفاق اوکړو او زمونږ محله کښې چا پهٔ غم کښې وریژې پخې کړې نو چې هغهٔ ورته يَو ورځ پاتې شي، نو بيا به هغهٔ دا کار نهٔ کوي، او چې مونږ دا عهد اوکړو: چې زمونږ پهٔ دې محله کښې چا کره غم اوشو نو مونږ به هغوي کره ډوډۍ ليږو؛ ځکه دا دَ هغوي سره همدردي ده، چې دَ خلقو دا بهانه روکه شي، چې زما ميلمانهٔ به څهٔ خوري، نو کاونډيانو له پکار دي: چې هغوي کره ډوډۍ يَوسي، چې مونږ دَ الله پهٔ دين غيرت نهٔ کوو، نو څوک به ئې کوي، چې پهٔ کوم وادهٔ کښې چا ډمان راوستل هغې ډمانو له به هم نهٔ ورځو، او دَ هغوي هغهٔ وريژې به هم نهٔ خورو؛ ځکه دَ هغې ډمانو تماشې له تلل حرام دي، او پهٔ کوم وادهٔ کښې چې ډمان ګډ شول، دَ هغې هغهٔ ډوډۍ خوړل هم حرام دي (پهٔ وخت دَ ډمانو دَ ګډيدو کښې).

**دَ الله حکم منل**

يَو طرف ته دَ الله حکم دے، او بل طرف ته دَ مخلوق حکم دے، نو حديث پاک کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «لاَ طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ».[1]

(1) اخرجه محيي السنة، أبو محمد الحسين بن مسعود بن محمد بن الفراء البغوي الشافعي في "شرح السنة" في كتاب الإمارة والقضاء، باب الطاعة في المعروف، برقم: (2455).

"تابعداري نشته دے دَ مخلوق، پهٔ هغه وخت کښې چې دَ خالق نافرماني وه".

یَو طرف ته الله خفه کیږي، او بل طرف ته مخلوق خفه کیږي، پریږده چې مخلوق خفه شي، څهٔ به درته اوکړي، قسم پهٔ الله کهٔ دا تمام مخلوق راجمع شي او تهٔ ګنانګار ئې نو تا دَ الله دَ عذاب نه نشي خلاصولے، او چې دَ الله پهٔ نزد باندې ګنانګار نهٔ ئې او دا تمام مخلوق راجمع شي، تا جهنم ته غورځوي، نو تا له دَ نوک برابر نقصان هم نشي رسولے، څهٔ چې کوي نو الله ئې کوي، خو چې زمونږ دَ الله پهٔ ذات اعتماد جوړ شي، کوم کار چې خلافِ شرع وي، او مونږ، تاسو دَ هغې نه توبه اوباسله، نو دا امامان خو مونږ مجبوره کړي دي؛ ځکه بعضې امامان داسې دي چې هغوي خپلې تنخواه ته ناست دي، پیسو ته ناست دي، وائي: کهٔ دَ جومات نه مې بهر کړي نو بیا به څهٔ خورم؟ یره! کهٔ چرته زهٔ دا مسئله اوکړم چې دَ سنتو نه بعد پهٔ جمع دعاء نشته، دا خیراتونه او دا شومې نشته، خیرات شته خو غیر شرعي نشته، هسې نه چې بیا خلق اووائي: چې خیرات ئې بند کړو، زهٔ وایم: چې هغهٔ خیرات چې شریعت بند کړے دے هغهٔ دَ دریمې ورځې پورې وریژې دي، دَ څلویښتۍ ورځې وریژې دي، هغهٔ دَ جُمعې شپه خاص کول دي، کلیزه دَه، چې کال کښې وریژې پخول دي، هسې خو چې څومره خیرات کوې نو کوه، خو شیطان زمونږ عبادت خرابوي، دَ شیطان کار دا دے: شیطان وائي: عبادت خو کوې چې دا عبادت ورته ختم کړم، چې ثواب ورته میلاؤ نشي، نو شیطان مونږ ته غیر شرعي څیز راته شرعي اوکرځوي.

نو امامان اکثر مجبوره وي چې مونږ خو تر اوسه پورې دا مسئلې کړي دي، دَ دې خلقو نه مو پهٔ دې چل باندې مال وهلے دے، او کهٔ چرې اوس مونږ داسې اووایُو: چې دا شے نشته نو دا خلق به مونږ ته وائي: چې تر اوسه پورې تاسو چې کولو نو دا څنګه نشته، دا پریږدئ؟ نو کهٔ چرته مونږ او تاسو امامانو ته اووئیل: چې دا شے نشته، دا پریږدئ، نو هغوي به ئې پخپله باندې پریږدي، او کهٔ نهٔ ئې پریږدي هغهٔ ئې انفرادي کوي نو مونږ به دَ هغوي سره نهٔ شریکیږو، نو خپله دَ دې ملک نه شرکیات او بدعات ختم شي، اتفاق او اتحاد اوکړئ، چې څوک هم دَ دین خدمت کوي هغهٔ زمونږ ملکرے دے، څوک هم دَ الله دَ کتاب خدمت کوي زمونږ دَ هغهٔ سره مینه او محبت او تعلّق دے، خو چې څوک دین خرابوي کهٔ هغهٔ بیا پهٔ هره جامه کښې دے کهٔ دَ

مُلا پهٔ جامه کښې دے، کهٔ هغهٔ دَ اُمّي پهٔ جامه کښې دے، کهٔ هغهٔ دَ هر چا پهٔ جامه کښې دے، هغهٔ زمونږ دشمن دے، چا چې دَ الله پهٔ دین کښې غیرت کړے دے هغهٔ الله عزتمند کړے دے، او چا چې دَ الله دین شاته کړے دے یاد ساته! هغهٔ الله ذلیله کړے دے، حدیث کښې راځي: "دَ قیامت پهٔ ورځ به الله یَو سړے راولي، ورته به وائي: پهٔ دنیا کښې دومره خلاف کارونه کیدل تا ولې دَ دې نه منع نهٔ کوله؟ دے به وائي: اَلله! ما دَ خلقو دَ وجې نه، چې خلقو نه یریدم، الله به ورته وائي: پکار دۓ چې تهٔ زما نه یریدلے وے، چې زما حکم دې ماتولو، زما نه نهٔ یریدې او دَ خلقو نه یریدې!".

نو مونږ به دَ الله پهٔ دین غیرت کوو، او امر بالمعروف، نهي عن المنکر به کوو، دَ خلقو اصلاح به لټوو، زمونږ کار دا دے، مونږ دَ دې دپاره پیدا یُو.

الله رب العزة دې مونږ له پهٔ دې خبرو دَ عمل کولو توفیق راکړي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ

(سورة النور: 63)

# موضوع

# ردِ بدعات

بتاريخ: 2005-12-16

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# ردبدعات

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ فِيهِ، فَهُوَ رَدٌّ».[2]

عزتمندو حاضرینو مسلمانانو رونړو! ما ستاسو په مخکښې د الله رب العزة دِ خوږ او معزز کتاب قرآنِ کریم نه د "سورتِ نور" دِ یَو آیت څۀ حصه اولوستله او دَ احادیث دَ رسول الله ﷺ نه ما ستاسو وړاندې یَو حدیث مبارکه عرض کړو، دَ ډیرو جُمعو نه پۀ اتباع دَ نبي ﷺ باندې تاسو دَ قرآنِ کریم آیتونه او دَ رسول الله ﷺ احادیث مبارکه واوریدل، اوس دَ هغې پۀ مقابله کښې چې کوم بدعات دي او رسول الله ﷺ دَ هغې باره کښې یَره ورکوي، او نفرت پیدا کوي دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم او دَ امت دَ هغې نه، سنت طریقه داسې یَو طریقه ده:

**دَامام مالک رحمه الله قول**

امام مالک رحمه الله فرمائي: "دَ سنت مثال داسې دے لکه دَ نوح علیه السلام دَ کشتۍ، کوم خلق چې دَ نوح علیه السلام پۀ کشتۍ کښې سوارۀ شوي دي نو نَجَا هغوي خلاص شول، نجات ورته میلاو شو او

[1] [سورة النور: 63].

[2] أخرجه البخاري في كتاب الصلح، باب إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود، برقم: (2697).

څوک چې دَ نوح ؑ دَ کشتۍ نه پاتې شول نو هغه خلق غرق او تباه شول".

**دَ نبي ﷺ دَ سنت طريقې مثال**

دَ نبي ﷺ دَ سنت طريقې هم دغه مثال دے چې څوک په دنيا کښې دَ خپل خوږ پيغمبر محمد مصطفى ﷺ په طريقه باندې عمل کوي، نو الله تعالى به ئې خلاصوي او الله تعالى به ورته نجات ورکوي او کچرته يَو سړے په دنيا کښې دَ خپل پيغمبر ﷺ په طريقه باندې عمل نهٔ کوي، دَ نبي ﷺ سنت نهٔ ژوندي کوي نو غرق دغه سړے به غرق او تباه شي، کهٔ هر څومره عمل ئې کړے دے خو هغه عمل دَ الله دربارِ عاليه کښې قبول نهٔ دے، چې دَ نبي ﷺ طريقه پکښې نهٔ وي، هغه عمل نهٔ قبليږي، نو دَ سنتو مثال دَ نوح ؑ دَ کشتۍ دے، څوک چې پرې عمل اوکړي نو بچ کيږي به او چې څوک پرې عمل اونهٔ کړي نو هغه به نهٔ بچ کيږي.

دَ نوح ؑ کشتۍ هغه کشتۍ وه، چې کلهٔ دَ نوح ؑ خپل ځوي دے کنعان خو چې کله هغه کشتۍ کښې نهٔ دے سور شوے، دَ پلار خبره ئې نهٔ ده منلې نو هيڅ څوک نشي ښودلے چې دَ نوح ؑ ځوي بچ شوے دے، هغه هم دَ نورو خلقو سره تباه شوے دے نو کهٔ تهٔ هر څومره دَ اوچت سړي ځوي ئې يا يَو لوئي عالم ئې خو چې ستا په اقوالو او افعالو کښې، ستا په غمونو او ښادو کښې دَ نبي ﷺ طريقه نهٔ وي نو ياد ساته! چې تهٔ بيا دَ بچ کيدو والا نهٔ ئې، ستا عمل دَ سره نهٔ قبليږي، هله به دې عمل قبليږي چې تهٔ خپله زندګي دَ نبي ﷺ په طريقه باندې جوړه کړې، کهٔ دَ دنيا خوشحالي غواړې نو دَ نبي ﷺ په سنتو کښې ده او کهٔ دَ آخرت خوشحالي غواړې نو هغه هم دَ نبي ﷺ په سنت طريقو کښې ده، دا طريقه به اوس کوم ځائے کښې زده کوو؟ دا طريقه مونږ دَ ځان نه نشو جوړولے، چې کني دَ ځان نه يَو طريقه جوړه کړو او مونږ اووايُو: چې دا طريقه دَ نبي ﷺ ده، او تهٔ هم دَ ځان نه يَو طريقه جوړه کړې او تهٔ وائې: چې دا ښهٔ طريقه ده. نو دا به مونږ کورو! په قرآن او سنت کښې، نو کهٔ چرې زمونږ دا خبره دَ قرآن او سنت سره برابر وي نو دغه دَ نبي ﷺ طريقه ده او کهٔ دَ قرآن او سنت سره برابر نهٔ وي نو دغه طريقه دَ نبي ﷺ نهٔ ده.

**سيدنا ابوهريره ؓ ته دَ نبي ﷺ نصيحت**

نبي ﷺ ابوهريره ؓ ته نصيحت کوي، او ورته وائې:

"يَا أَبَا هُرَيْرَةَ! عَلِّمِ النَّاسَ الْقُرْآنَ وَتَعَلَّمْهُ".(1)

"اے ابوهريره! دَ الله تعالی کتاب قرآنِ کريم خلقو ته ښايه، (او کچرته تا له قرآنِ کريم نۀ درځي) نو ښځپله قرآنِ کريم زده کوه".

دا وصيت دَ نبي ﷺ دے خپل شاګرد ابوهريره ﷺ ته.

**دَشيخ القرآن مولانا محمد طاهر ﷫ وصيت**

دا وصيت دَ شيخ القرآن ﷫ هم وو، چې هغه به فرمائيل: "زمونږ دَ دې جماعت او زمونږ دَ دې تنظيم چې څومره ارکان دي يا به هغوي قرآنِ کريم زده کړے وي او نورو ته به ئې ښائي او يا به هغوي ښځپله قرآنِ کريم زده کوي"، دا به پۀ هغوي باندې ضروري وي چې هغوي به ښځپله قرآنِ کريم زده کوي او بل ته به قرآنِ کريم ښائي.

سيدنا ابوهريره ﷺ ته نبي ﷺ فرمائي: "خپله قرآنِ کريم زده کړه او نورو خلقو ته قرآنِ کريم اووايه او کۀ تاله قرآنِ کريم نۀ درځي نو لاړشه او قرآن ياد کړه اے زما شاګرده! اے ابوهريره! کچرته تا له مرګ راغلے او تۀ پۀ دې خدمت کښې مشغول وې يا خو دې نورو خلقو ته قرآن ښودلو يا دې ښځپله زده کولو پۀ دې حالت کښې کۀ تا لره مرګ راغلے نو:

"زَارَتِ الْمَلَائِكَةُ قَبْرَكَ كَمَا يُزَارُ الْبَيْتُ الْعَتِيْقُ".

"اے ابوهريره! ستا دَ قبر ملاقات لرۀ به فرښتې داسې راروانې وي لکه څنګه چې خلق دَ بيت الله شريف زيارت له ځي".

نو دا څومره دَ سعادت خبره ده، تۀ قرآنِ کريم ياد کړه او چې مړ شوې نو فرښتې به ستا دَ قبر ملاقات له راځي، څومره دَ سعادت خبره به وي چې دغه نوراني مخلوق ستا دَ قبر نه کير چاپيره کرځي او دعاګاني درله کوي چې : اے الله! دې قبر والا ته مغفرت نصيب کړه، نو دا سنت طريقه چې مونږ يادَوو نو پۀ قرآنِ کريم کښې به ئې يادَوو او بل پۀ احاديثو دَ نبي ﷺ کښې به ئې يادَوو، بيا نبي ﷺ دغه خپل صحابي ابو هريره ﷺ ته وائي:

"وَعَلِّمِ النَّاسَ سُنَّتِيْ وَإِنْ كَرِهُوْا ذٰلِكَ، وَإِنْ أَحْبَبْتَ أَنْ لَا تُوْقَفَ عَلَى الصِّرَاطِ طَرْفَةَ عَيْنٍ حَتّٰى

(1) أخرجه علاء الدين علي بن حسام الدين ابن قاضي خان القادري الشاذلي الهندي البرهانفوري ثم المدني فالمكي الشهير بالمتقي الهندي في "كنز العمال" في كتاب العلم من قسم الأفعال، باب في فضله والتحريض عليه، برقم: (29377).

تَدْخُلَ الْجَنَّةَ فَلاَ تُحْدِثْ فِيْ دِيْنِ اللهِ حَدَثًا بِرَأْيِكَ». [1]

"او خلقو ته زما دَ دې سنتو علم ورکړه اګر کۀ دا مخلوق ئې بد ګنړي او کچرته ستا دا خوښه وي چې پۀ پل صراط باندې تيرېږې، او ستا زړۀ دا غواړي چې دَ بجلۍ دَ پرق هومره هم پۀ هغې حصار نشي نو ياد ساته! چې دَ الله تعالی دين کښې بدعات مۀ وردننه کوه، دَ الله پۀ دين کښې نوې نوې خبرې مۀ وردننه کوه".

معلومه شوه دا خبره: چې کوم سړے دَ ځان نه دَ نبي ﷺ پۀ دين کښې نوې خبرې وردننه کوي نو دا سړے پۀ پلِ صراط باندې نشي تيريدے؛ ځکه پۀ پلِ صراط باندې تيريدل دا پۀ شجاعت او بهادرۍ باندې نۀ دي، دا پۀ مضبوط بدن باندې نۀ دي، دا پۀ چل او پۀ هنر باندې نۀ دي، بلکه دا تيريدل پۀ عملِ صالح باندې دي، چې دَ يو سړي پۀ اعمالو کښې ټول بدعات دي، ټولې هغه طريقې دي چې هغه دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقو خلاف دي نو هغه به څنګه پۀ پل صراط باندې دَ بجلۍ دَ پرق پۀ شان تير شي؟

نو نبي ﷺ ابوهريره ؓ ته وائي: "کچرته ستا زړۀ دا خوښوي چې پۀ پلِ صراط باندې دَ بجلۍ دَ پرق پۀ شان تير شې نو دَ الله تعالی پۀ دين کښې بدعات به نۀ وردننه کوې".

**دَ بدعتي پۀ پلِ صراط باندې تيريدل**

دَ دې وجې نه علماءِ کرام ذکر کوي: "چې دا څومره مبتدعين دي نو دوي به چې پۀ پلِ صراط باندې تيريږي دوي به نشي تيريدے، ټول به ښکته جهنم کښې پراته وي"، دَ دې وجې نه الله تعالی فرمائي:

﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾. [2]

"هيڅ څوک پۀ تاسو کښې نشته دے مګر خامخه به هغه پۀ پل صراط باندې تيريږي".

هر څوک به پۀ پل صراط باندې تيريږي، پيغمبران به هم تيريږي، صحابه کرام ؓ به هم پۀ پل صراط باندې تيريږي، علماء کرام به هم تيريږي، عوام به هم تيريږي، کۀ نيک سړے دے او کۀ بد عمله سړے دے هغه به هم پۀ پلِ صراط باندې تيريږي.

(1) أخرجه علاء الدين علي بن حسام الدين ابن قاضي خان القادري الشاذلي الهندي البرهانفوري ثم المدني فالمكي الشهير بالمتقي الهندي في "كنز العمال" في كتاب العلم من قسم الأفعال، باب في فضله والتحريض عليه، برقم: (29377).

(2) [سورة مريم: 71].

## پهٔ پل صراط باندې د تېرېدو حالت

هر سړي له به دَ هغه دَ عمل مطابق سزا ورکولے شي، کهٔ دَ يَو سړي عمل ښهٔ دے نو هغه به دَ بجلۍ دَ پړق پشان تير شي، دَ يَو سړي عمل کښې کمے دے نو هغه به لړ پهٔ مزه مزه تيرېږي، دا پل صراط به دَ جهنم دپاسه لګيدلے وي او چې دَ يَو سړي عمل بالکل خراب دے، بالکل برباد دے نو دے چې پهٔ پل صراط باندې تيرېږي، ښکته به غورځيږي. نو علماءِ کرام فرمائي: "دَ دې حديث نه معلوميږي چې دا کوم سړے پهٔ دين کښې بدعات کوي نو دا سړے به پهٔ پل صراط باندې نشي تيريدے، بلکه دے به ښکته دَ پلِ صراط نه غوَرځيږي"، نو دين هغه دے چې کوم الله او دَ الله رسول ﷺ راليږلے دے او مونږ ته ئې ښودلے دے، کچرې دَ هغې نه مونږ ښکلې ښکلې طريقې دَ ځان نه جوړې کړو او دينِ اسلام کښې ئې وردننه کړو نو هغه دين نهٔ دے، دين هغه دے چې کوم الله او دَ الله پيغمبر ﷺ وئيلے دے؛ ځکه دين پهٔ عقل نهٔ چليږي، دين پهٔ نقل چليږي، کچرې ستا پهٔ عقل کښې يَو ښهٔ شے دے نو هغه دين نهٔ دے.

### دين پهٔ نقل دے

سيدنا علي رضي الله عنه يَو ځل پهٔ موزو باندې مسح کوله، نو خلقو ته مخامخ شو او خلقو ته وائي: "کهٔ چرې دين پهٔ عقل باندې وے نو پکار خو دا وه چې مونږ پهٔ موزو باندې دَ لاندې طرف نه مسح کولے؛ ځکه زمکې سره تلے لګي، دَ پاسه طرف خو زمکې سره نهٔ لګي حالانکه خلق دَ موزو دَ پاسه طرف باندې مسح کوي؛ لهٰذا دين پهٔ عقل نهٔ چليږي بلکه دين پهٔ نقل چليږي".

### دَ الله رب العزة اعلان

الله رب العزة اعلان کوي: ﴿فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ﴾.(1)

"تر هغې وخته پورې دا خلق کامل ايمان والا نشي جوړيدلے، الله قسم خوري چې داسې نهٔ ده لکه څنګه چې دَ دوي ګمان دے زما دې ستا پهٔ رب باندې قسم وي، چې دا خلق کامل ايمان والا نشي کيدے تر هغې وخته پورې چې دوي پخپلو کارونو کښې تا فيصله کوونکے اوګرځوي".

چې تر څو دَ هر کار فيصله پهٔ تا باندې نهٔ کوي نو هغه وخته پورې دوي کامل ايمان والا نهٔ دي، چې کوم کار کوې نو هغه قرآن او حديث مبارکه کښې اوګوره! چې دا کار دَ قرآن او سنت سره برابر دے او کهٔ برابر نهٔ دے؟

(1) [سورة النساء: 65].

**دَ رسول الله ﷺ تابعداري**

الله رب العزة فرمائي: ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ﴾.(1)

"دَ الله او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ تابعداري اوکړئ او دَ خاوندانو دَ آمر ستاسو نه، کچرې ستاسو په يَو مسئله کښې څۀ اختلاف راغلے نو دغه مسئله دَ الله تعالى کتاب او دَ نبي ﷺ سنتو ته واپس کړئ".

**دَ ميمون بن مهران رحمه الله قول**

"چې دَ الله تعالى پيغمبر ﷺ ته خو به ئې هغه وخت واپس کوله چې دَ الله پيغمبر ﷺ ژوندے وو، اوس پيغمبر کريم ﷺ وفات شوے دے نو اوس چې فيصله واپس کوئ دَ الله تعالى کتاب قرآنِ کريم ته به ئې واپس کوئ او سنت دَ نبي ﷺ ته به ئې واپس کوئ".

چې زۀ دا کار کوم نو دَ دې ثبوت پۀ احاديث مبارکو کښې شته دے، زۀ دا کار کوم دَ دې ثبوت پۀ قرآنِ کريم کښې شته يا نشته، دا آسانه طريقه ده خپل عمل پۀ قرآن او سنت باندې اوتله.

**مفسر ابن کثير ليکلي دي**

دَ سورة النور پۀ آيت درې شپيتۀ (٦٣) باندې ئې ليکلي دي، دا ما چې کوم آيت لوستلے وو: ﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ پۀ دې آيت باندې "تفسير ابن کثير" کښې مفسر ابن کثير ليکلي دي، وائي: "قرآن او احاديث مبارکه دَ نبي ﷺ دا يَو تول دے دَ اعمالو دپاره".

پکار دے چې هر مسلمان خپل عمل دَ الله تعالى پۀ کتاب او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پۀ سنتو باندې اوتلي، چې اوکوري! چې آيا زما دا عمل دَ قرآن او سنت سره برابر دے او کۀ نۀ دے برابر، کۀ برابر دے خو ډيره ښۀ خبره ده او کۀ نۀ دے برابر نو بيا هغه عمل صحيح نۀ دے؛ ځکه حديث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ، فَهُوَ رَدٌّ».(2)

"چا چې زمونږ پۀ دين کښې يَو داسې کار اوکړو چې هغه پۀ دين کښې نۀ وي نو هغه رد دے (پۀ دې ثواب نۀ ملاويږي)".

**دَ سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه حالت**

سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه دَ بيت الله شريف نه طواف کولو، ډير صحابه کرام رضي الله عنهم راجمع دي،

(1) [سورة النساء: 59].
(2) أخرجه البخاري في كتاب الصلح، باب إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود، برقم: (2697).

سیدنا عمر ﷺ چې کله دَ حجرِ اسود خواته راغلے، نو حجرِ اسود ئې ښکل کړو... او قاعده هم دا ده: "چې کله حجرِ اسود ته رااورسیدې نو حجرِ اسود ښکل کړه کهٔ دَ ښکلَولو ځائے وي، او کهٔ دَ ښکلَولو ځائے نهٔ وي نو لاس ورته اوچت کړه، سلام اوکړه بس دا هم کافي ده"، سیدنا عمر ﷺ دَ بیت الله نه طواف کوي، کله چې دَ حجرِ اسود خواته راغلے نو حجرِ اسود ئې ښکل کړو او بیا دغه ځائے کښې اودریدو او بیان کوي: «إِنِّي أَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ، لاَ تَضُرُّ وَلاَ تَنْفَعُ، وَلَوْلاَ أَنِّي رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ».[1]

سیدنا عمر ﷺ هغې حجرِ اسود ته وائي: "یقینًا چې ما ته پته ده تهٔ یَو کاڼړے ئې، تهٔ نهٔ چالره فائده ورکولے شې او نهٔ چا لره نقصان ورکوَلے شې؛ خو زهٔ دې ځکه ښکلَومه چې زما پیغمبر ما لیدلے وو چې تهٔ ئې ښکولولې (ستا پهٔ ښکولو کښې نور څهٔ فائده نشته دے)".

دَ صحابه کرام ﷺ داسې کار وو او نن خلق دَ قبر خاورې راخلي او پهٔ ځان پورې ئې راکاږي او وائي: پهٔ دې کښې فائده ده، هغه اوبهٔ راوړي او وائي: پهٔ دې کښې شفاء ده، عجیبه ایمان دے دَ دې خلقو، سیدنا عمر ﷺ خو هغه جنتي کاڼړے یادَوي چې تهٔ چا لره فائده او نقصان نشې رسولے، نفع او نقصان ورکولو والا الله تعالی دے، او بیا سوچ اوکړه چې هغه څومره قیمتي کاڼړے دے هغه دَ جنت کاڼړے دے او دا دَ دنیا کاڼړي دي، هغه کاڼړے دَ بیت الله پهٔ دیوال کښې لګیدلے دے او هغه دَ محمد رسول الله ﷺ پهٔ لاسونو لګیدلے دے، څومره دَ برکت کاڼړے دے او بیا هم عمر ﷺ فرمائي: «لاَ تَضُرُّ وَلاَ تَنْفَعُ» نهٔ نقصان ورکولے شې او نهٔ نفع ورکولے شې، خو کهٔ ما خپل پیغمبر ﷺ نهٔ وے لیدلے ما به چرته نهٔ وې ښکل کړې.

او زمونږ دَ دور جاهلان دا اوبهٔ چې تولې یَو شان اوبهٔ دي خو چې دَ قبرِ خوا کښې کوم کوهے دے، او دَ هغې نه اوبهٔ راوړي ولې هغې کښې شفاء ده، او کله وائي: "چې دَ فلانکي قبر کاڼړي چې پهٔ ځان راښکې نو بالکل به ښهٔ شې، دَ فلانکي قبر خاوره چې دې راوړه او پهٔ ځان دې راښکله، تهٔ به تهیک تاک شې"، دا خو دَ شرک خبرې دي.

(1) أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب ما ذكر في الحجر الأسود، برقم: (1597)، واللفظ له. ومسلم في كتاب الحج، باب استحباب تقبيل الحجر الأسود في الطواف، برقم: (1270).

## قرآني عقيده

قرآنِ کريم کښې الله رب العزة فرمائي:

﴿وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَادَّ لِفَضْلِهِ﴾.(1)

"کچرته الله تعالی درته معمولي غوندې تکليف اورَسوي نو دَ هغې لرې کولو والا دَ الله تعالی نه علاوه بل څوک نشته دے، او کچرته الله تعالی درته څۀ خير رسَوي نو دَ الله د خير او فضل څوک واپس کوونکے نشته".

نو کۀ تکليف درته الله اورَسوي، هيڅ څوک دې بيا نشي خلاصولے.

قرآنِ کريم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ﴾.(2)

"ورته اووايه اے محبوبه! کچرته الله تعالی دې کونړ کړي، نو څوک دے دَ کنړو ذمه وار؟ کچرې الله تعالی دې ړوند کړي نو څوک دے دَ ړندو ذمه وار؟ کچرې الله تعالی دې ليونے کړي نو څوک دے دَ ليوَنو ذمه وار؟"، ورته وايه: الله تعالی وائي: "الله چې دې کونړ کړي نو يَو بابا دې هم نشي روغولے، او الله تعالی وائي: "چې زۀ دې روغ کړم نو يَو بابا دې هم بيا نشي بيمارولے"، نو داسې عقيده ځان له جوړه کړئ.

## دَ انس بن مالک ﷛ حالت

دا هغه صحابي دے چې لس کاله ئې دَ نبي ﷺ خدمت کړے دے، دے معصوم بچے وو چې مور راوستے وو، او مور ئې نبي ﷺ ته اوفرمائيل: "چې دَ الله رسوله ﷺ! تاله څوک پۀ تحفه کښې څۀ پيش کوي او څوک څۀ پيش کوي، زما نور څۀ نشته، زما صرف دا يَو ځوي دے، دا واخله او دے به ستا خدمت کوي"، هغه انس ﷛ چې کله به هغه دودئ خوَړه او پۀ تلکارئ کښې به کدو راغلے نو هغه به وريسې کوتې کرځولې، دَ بل ذَ مخې نه به ئې راغستو او هغه به ئې خوَړو.

يَو سړے ترې نه تپوس کوي: "اے انس ﷛! ولې تۀ دَ دې کدو سره دومره مينه کوې؟"، هغه وائي: "زما کدو خوښ نۀ دے خو ځکه مې خوښ دے چې زما دَ پيغمبر محمد مصطفی ﷺ خوښ

(1) [سورة يونس: 107].
(2) [سورة الأنعام: 46].

ور"، دَ صحابه کرامو ﷺ دَ نبي ﷺ سره دومره مينه وه او داسې دَ نبي ﷺ پهٔ نقشِ قدم باندې روان وو، وائي: "کدو مې خوښ نهٔ دے خو ځکه مې خوښ دے چې زما دَ پيغمبر ﷺ ورسره مينه وه، او کچرته دَ هغه نهٔ وے خوښ نو ما به نهٔ خوړو"، دا دَ صحابه کرام ﷺ حال دے، غم ښادي خو لرې خبره وه چې دَ نبي ﷺ پهٔ عامو عاداتو کښې به کومه خبره وه، صحابه کرام ﷺ به هغې پسې هم روان وو، او نن چې مونږ سوچ اوکړو نو زمونږ او ستاسو دين ټول دَ نبي ﷺ دَ طريقو نه خلاف دے.

**دَ سيدنا ابوالدرداء ﷺ ژړل**

سيدنا ابو الدرداء ﷺ کور ته راغلے او ژړل ئې، بي بي ترې نه تپوس کوي: "مَا يُبْكِيكَ؟"، "ولې ژاړې؟" هغه ورته اوويئيل: "هغه مونځ چې دَ نبي کريم ﷺ پهٔ زمانه کښې پهٔ جمع سره کيدو اوس هم هغه کيږي، يَو هغه مونځ باقي پاتې دے نورې ټولې طريقې دَ نبي ﷺ خلقو پرېښودلې دي او بدلې کړې ئې دي، نو زهٔ ځکه ژاړم چې دَ نبي ﷺ ټولې طريقې ختمې شوې دي".

نو کهٔ پهٔ دې دور کښې يَو سړے سوچ اوکړي نو حقيقت دا دے: چې ټولې طريقې دَ نبي ﷺ بدلې شوې دي.

نو عزتمندو! سوچ پکار دے چې زمونږ هر کار پهٔ قرآن او سنت باندې اوتلو، کهٔ هغه دَ قرآن سره برابر دے خو ډيره ښهٔ خبره ده او کهٔ هغه دَ حديث سره برابر دے نو ډيره ښهٔ خبره ده او کهٔ هغه دَ قرآن او سنت سره برابر نهٔ دے نو هغې ته بدعت وائي، چې هغې نه ځان اوساتو؛ ځکه چې بدعات ډير زيات اوکړي خو دَ ماشي دَ وزر هومره کار پرې هم ستا نهٔ کيږي نو څهٔ دپاره ئې کوې؟ هغه عمل چې پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ دے کهٔ هغه ډير لږ ولې نهٔ دے خو هغه ستا دپاره ډير شے دے؛ ځکه دَ الله تعالى پهٔ دربار عاليه کښې ډير عمل نهٔ قبليږي کوم عمل چې پهٔ طريقه دَ پيغمبر ﷺ نهٔ وي، او لږ عمل هم قبليږي خو چې پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ وي.

**دَ بدعتي عمل نهٔ قبليږي**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يَقْبَلُ اللهُ لِصَاحِبِ بِدْعَةٍ صَوْمًا، وَلَا صَلَاةً، وَلَا صَدَقَةً، وَلَا حَجًّا، وَلَا عُمْرَةً، وَلَا جِهَادًا، وَلَا صَرْفًا، وَلَا عَدْلًا، يَخْرُجُ مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا تَخْرُجُ الشَّعْرَةُ مِنَ الْعَجِينِ».(1)

"کوم سړے چې دَ نبي ﷺ دَ طريقې نه خلاف عمل کوي او دَ پيغمبر ﷺ پهٔ طريقه کښې دَ

(1) أخرجه ابن ماجة في افتتاح الكتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم، باب اجتناب البدع والجدل، برقم: (49).

ځان نه بدعات وردننه کوي دَ دغې سړي الله تعالی نهٔ روژه قبلَوي، نهٔ ئې مونځ قبلَوي، نهٔ ئې زکوٰة قبلَوي، نهٔ ئې حج قبلَوي، نهٔ ئې عُمره قبلَوي، نهٔ ئې جهاد قبلَوي، نهٔ ئې فرض قبلَوي او نهٔ ئې نفل عبادت قبليږي او دے دَ اسلام نه داسې اوځي لکه چې دَ اُوړو نه وېښته وېستلے شي".

خلق وائي: "يره جي! تاسو بيان کښې ردّ بدعات ډير کوئ، دا څهٔ وجه ده؟ نورې مسئلې بيان کړئ، دا پريږدئ"، ورته وايه: دَ بدعاتو دَ ضرر نه خو تاسو نهٔ يئ خبر، چې بدعات څومره نقصاني څيز دے، کوم سړے چې پهٔ دين کښې دَ ځان نه بدعات وردننه کوي نو نهٔ ئې فرض مونځ قبليږي، نهٔ ئې نفل مونځ قبليږي، يَو عبادت ئې هم نهٔ قبليږي او دَ اسلام نه داسې اوځي لکه چې څنګه دَ اُوړو نه ويختهٔ را اوباسلے کيږي.

نبي ﷺ فرمائي: "کوم سړے چې پهٔ دين کښې دَ ځان نه طريقې وردننه کوي او هغې ته ثواب وائي نو هغه دَ ايمان نه داسې پاکيږي لکه چې څنګه دَ اُوړو نه ويښتهٔ وېستلے کيږي"، بدعت دومره ناکاره بيماري ده.

او ډير خلق به پهٔ بدعاتو کښې مبتلا وي او کچرې تهٔ ورته دَ هغې رد کوې، نو وائي: "پنځ پيريانو له بله مسئله نهٔ ورځي، صرف شرک دے او بدعت دے"، زهٔ وايم: "دا آساني مسئلې خو هر څوک کوي...".

**مثال**

ډاکټر ته چې ورشي او سړے بيمار وي، نو دَ هغه به زُکام هم وي، تبه به ئې هم وي خو چې کومه مهلکه بيماري ده او مريض ته دَ هغې نه زيات نقصان رسيږي نو ړومبے دَ هغې علاج کوي، دا نهٔ وائي: "چې ستا زُکام دے اول به درته دَ زُکام علاج اوکړم او بيا به درته دَ سرخُکي علاج اوکړم، نو بيا به درته روستو آپريشن کوم"، نا، نا! بلکه مريض لره چې دَ کوم مرض نه زيات تکليف دے نو اول دَ هغې علاج پکار دے، دَ يَو سړي عقيده دَ شرک ده او تهٔ ورته وائې: "چې دَ مونځ دومره ثواب دے... او چې دا عمل دې اوکړو نو دومره ثواب دے... او دَ مسواک دومره ثواب دے، او دَ نفلي روژې دومره ثواب دے او دَ فرضې دومره ثواب دے"، نو خبره صحيح ده چې دَ دې ثواب شته دے خو دَ هغهٔ چې عقيده خرابه ده، نو کهٔ تهٔ هغه ته ډير ثوابونه ذکر کړې او هغهٔ شپه او ورځ لګيا دے، دَ هغه چې عبادت نهٔ قبليږي نو څهٔ فائده اوشوه؟

یَو سرے بدعات کوي نو تهٔ مخکښې دَ بدعاتو رد اوکړه، مخکښې دَ بدعاتو نه دَ هغه عمل صفا کړه نو کهٔ بیا لږ عمل کوي نو هغه عمل به قبلیږي، او کهٔ نه دَ هغه پهٔ عمل کښې بدعات دي نو کهٔ تهٔ ورته ډیر فضائل بیان کړې او ډیر ئې نیکو طرف ته راولې نو دَ هغه عمل دَ الله تعالی پهٔ دربار کښې نهٔ قبلیږي، نو هسې ئې څهٔ له ستړے کوې؟ مخکښې اصلاح دَ عقیدې پکار ده، مخکښې دَ بدعاتو نه ځان ساتل پکار دي نو بیا عمل کوه، نو کهٔ لږ عمل ولې نهٔ دے خو الله به درله پرې ډیر اجر درکوي.

**دَ سیدة عائشه ﷺ روایت**

عائشه ﷺ دَ نبي ﷺ بي بي وه، هغه دَ نبي ﷺ نه نقل کوي، چې نبي ﷺ فرمائي:

«مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْ أَعَانَ عَلَى هَدْمِ الْإِسْلَامِ».[1]

"چا چې دَ بدعتي عزت اوکړو، دَ هغه مرسته ئې اوکړه، دَ هغه ملګرتوب ئې اوکړو دې سړي دَ هغه سره پهٔ ورانولو دَ اسلام کښې امداد اوکړو(دا سړے پهٔ ګناه کښې دَ هغه سره یَو برابر دے)".

اګر چې دے اسلام نهٔ ورانوي، دے خو ئې پهٔ ښهٔ نیت کوي، خو چې کلهٔ تهٔ دَ بدعتي عزت کوې نو دَ دهٔ دَ عزت دَ وجې نه به هغه نور هم مضبوطیږي او هغه به نور هم بدعات خوَروي؛ ځکه دَ دهٔ هم دَ هغه سره پهٔ ګناه کښې برابر حصه ده، کهٔ هغه هر څوک دے کهٔ هغه مشر دے، کهٔ هغه کشر دے، کهٔ هغه عالم دے، کهٔ هغه امي دے خو چې بدعات کوي نو تهٔ ئې ملګرتوب مهٔ کوه، تهٔ ئې خلاف اوکړه، دا ستا ښکه ایمان دے!

**دَ مروان خطبه وئیل**

دَ صحابه کرامو ﷺ ایمان خو دا دے چې مروان دَ اختر پهٔ ورځ دَ مونځ نه مخکښې خطبه وئیله، او قانون دا دے او دَ نبي ﷺ طریقه دا ده: "چې دَ جُمعې خطبه به دَ جُمعې نه مخکښې وائي او دَ اختر خطبه به دَ اختر دَ مونځ نه وروستو وائي"، نو مروان به دَ اختر خطبه دَ مونځ نه مخکښې وئیله، او دا مخکښې به ئې ځکه وئیله؛ چې هغه به بعضې صحابه کرامو ﷺ پسې ردې بدې وئیلې نو روستو به بیا دَ هغه خطبه چا نهٔ اوریده نو دَ دې دپاره به ئې دَ مونځ نه مخکښې وئیله چې مونځ له هسې هم خلق راځي نو کهٔ نهٔ ئې اوري نو هم به ئې اوري؛ ځکه چې دَ مونځ پهٔ انتظار کښې به وي، نو دغسې یَو ورځ

(1) أخرجه البيهقي في "شعب الإيمان" في مباعدة الكفار والمفسدين والغلظة عليهم، برقم: (9018).

ئې خطبه وئیله، سیدنا ابو سعید الخدري ﷺ وائي: دَ اختر په ورځ مروان منبر ته رااوتلو، دَ اختر خطبه ئې وئیله، شروع ئې اوکړه په خطبې مخکښې دَ مونځ نه، نو یَو تن ورته راپاسیدَو، ورته وائي:

"يَا مَرْوَانُ، خَالَفْتَ السُّنَّةَ".[1]

"مروانه! تا دَ سنتو خلاف اوکړو (او زهٔ تا پسې مونځ نهٔ کوم)"، (دَ "ترمذي شریف" پهٔ روایت کښې دي: مروان ورته وائي: "هغه طریقې اوس خلقو پریخودلي دي، هغه طریقې اوس څوک نهٔ کوي")، هغه ترې روان شو، ابوسعید الخدري ﷺ اووئیل: "دا څوک دے؟"، خلقو ورته اووئیل: "دا فلانے ځوي دَ فلاني دے"، نو ابو سعید الخدري اووئیل: "هر چې دے دے نو دهٔ خپله ذمه واري پوره کړه"، نو دے روان شو او وائي: زهٔ دهٔ پسې مونځ نهٔ کوم، یَو ادنی صحابي ﷺ چې دَ هغه دَ بادشاه او خلیفه پهٔ مینځ کښې څهٔ حیثیت وو چې داسې خبره ئې کوله خو خپله غاړه ئې خو آزاده کړه، هغه ته وائي: "دا دَ نبي ﷺ طریقه نهٔ ده، تا دَ نبي ﷺ دَ سنتو خلاف کړے دے زهٔ تا پسې مونځ نهٔ کوم".

**دَ سیدنا عبد الله بن عمر ﷺ حالت**

سیدنا عبد الله بن عمر ﷺ پهٔ سترګو ړوند شوے وو، یَو سړي دَ لاس نه نیولے وو او جومات ته ئې راوستو، چې جومات ته کله رادننه شو نو دَ جمعې وخت وو، یَو سړي آواز اوکړو: "ایماندارو! راځئ جَمع تیاره ده"، دا خومره معمولي خبره ده وائي: "ایماندارو! راځئ جَمع تیاره ده"، عبد الله بن عمر ﷺ غصه شو او چې چا راوستلے وو هغه ته وائي: "شابه! ما دَ لاس نه اونیسه بهر مې کړه، زهٔ پهٔ دې جومات کښې مونځ نهٔ کوم؛ ځکه پهٔ دې کښې دا آواز ولې اوشو چې "ایماندارو! جَمع تیاره ده"؟ آذان وئیلے شوے دے نو بیا آواز کولو ته څهٔ ضرورت دے؟ دا آواز دَ نبي ﷺ پهٔ زمانه کښې نهٔ وو شوے او دا خلق ئې کوي دا بدعت دے او زهٔ دَ بدعتیانو پهٔ جومات کښې مونځ نهٔ کوم".

اګر چې امام ئې بدعتي نهٔ دے، یَو کس دا آواز اوکړو: "ایماندارو! جَمع تیاره ده" عبد الله بن عمر ﷺ دَ هغې پهٔ وجه ټول جومات کښې مونځ نهٔ کوي وائي: "دا دَ بدعتیانو جومات دے"، کهٔ نو، وس دې نهٔ کیږي نو پخپل ځان خو دې وس کیږي کنه، چې یَو ځائے کښې بدعات کیږي نو هغې ته مهٔ ورځه، هغه ځائے کښې مهٔ شریک کیږه.

(1) أخرجه أبو داود في تفريع أبواب الجمعة، باب الخطبة يوم الجمعة، برقم: (1140).

## پۀ ګناه چهپ پاتیکیدل

رسول الله ﷺ فرمائي: "کله چې يَو قوم کښې ګناه کيږي، او هغه قوم پۀ دې باندې قادر دے چې دَ دغې ګناه مخ نيوے اوکړي او هغوي دَ دغې ګناه مخ نيوے نۀ کوي نو چې کله پۀ هغه قوم باندې عذاب راځي نو بيا به پۀ ټولو باندې يَو شان راځي، پۀ ګناه کارو به راځي نو دا روغ خلق به هم ورسره تباه کيږي"، نو دا مۀ وايه: "چې څوک څۀ کوي نو کوي به، زمونږ مونځ هر چا پسې کيږي او مونږ خو ټول منو او دا ټول زمونږ دَ سر ګُلونه دي"، تۀ خپل عمل اوکوره او دَ خلقو عمل اوکوره چې دَ چا عمل دَ قرآن او سنت سره برابر دے نو دَ هغې خلقو ملګرے شه کنه او هغوي سره ځان ملګرے کړه کنه، او چې دَ چا عمل دَ قرآن او سنت نه خلاف دے چې هغې خلقو سره ملګرے نشې.

### دَ فضيل بن عياض رحمه الله اول قول

فضيل بن عياض رحمه الله هغه مشهور صوفي او هغه مشهور عالم وو چې مسجد نبوي ﷺ کښې به ناست وو او خلقو لره به ئې دَ احاديث درس ورکولو، هغه فرمائي:

"مَنْ جَلَسَ إِلىٰ صَاحِبِ بِدْعَةٍ فَاحْذَرُوْهُ".[1]

"چې څوک دَ بدعتي سړي سره ناسته پاسته کوي نو هغه نه ځان بچ کړئ".

دَ بدعتي سره مۀ کښېنئ، يعني څوک چې بدعتي سره ناسته پاسته کوي نو هغۀ نه هم ځان ساتئ، او "تفسير قرطبي" کښې وائي: دۀ ته به پوهه او حکمت ورنۀ کړے شي.

### دَ فضيل بن عياض رحمه الله دويم قول

"مَنْ أَحَبَّ صَاحِبَ بِدْعَةٍ أَحْبَطَ اللهُ عَمَلَهُ وَأَخْرَجَ نُورَ الْإِسْلَامِ مِنْ قَلْبِهِ".[2]

"څوک چې بدعتي سره مينه او محبت ساتي الله به دَ هغه عمل برباد کړي او دَ اسلام رڼړا به دَ هغۀ دَ زړۀ نه اوباسي".

### دَ فضيل بن عياض رحمه الله دريم قول

"إِذَا رَأَيْتَ مُبْتَدِعًا فِي طَرِيْقٍ فَخُذْ طَرِيْقًا آخَرَ".[3]

(1) انظر: تفسير "القرطبي" (7/13)، و"ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (7).
(2) انظر: تفسير "القرطبي" (7/13)، و"ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (7).
(3) انظر: "ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (7).

"چې کله يَو بدعتي سړے درته پۀ لاره باندې درغلے نو دغه لاره پرېږده، پۀ بله لار باندې لاړ شه". مخامخ ورله مۀ راځه؛ ځکه بدعات ډېره ناکاره بيماري ده، تا ته به ترې نه مرض اولګي، نۀ به دغه بدعاتو کښې مبتلاء شې.

## دَ علامه ابن سيرين ؒ حالت

دَخَلَ رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ الْهَوَاءِ عَلٰى ابْنِ سِيْرِيْنَ فَقَالَ: "يَا أَبَابَكْرٍ! نُحَدِّثُكَ بِحَدِيْثٍ"، فَقَالَ: "لَا"، قَالَ: "فَنَقْرَأُ عَلَيْكَ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللهِ"، قَالَ: "لَا تَقُوْمَانِ عَلَيَّ أَوْ لَأَقُوْمَنَّ"، قَالَ: "فَخَرَجَا، فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: "يَا أَبَابَكْرٍ! وَمَا كَانَ عَلَيْكَ أَنْ يَقْرَءَ عَلَيْكَ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللهِ؟"، قَالَ: "إِنِّيْ خَشِيْتُ أَنْ يَقْرَءَ عَلَيَّ آيَةً فَيُحَرِّفَانِهَا، فَيَقِرُّ فِيْ قَلْبِيْ".[1]

علامه ابن سيرين ؒ پۀ تعبير دَ خوبونو کښې ډير ماهر انسان وو او يَو ډير جيد عالم تېر شوے دے، پۀ تابعينو کښې دے او پۀ خير القرون کښې دے، "دۀ ته دوه (۲) کسان راغلل ورته وائي: غوږ کېږدوه، زۀ درته دَ نبي ﷺ يَو حديث وايم، علامه ابن سيرين ؒ ورته وائي: نا! ماته به تۀ دَ نبي ﷺ احاديث مبارکه نۀ وائې، بيا ورته هغه وائي: څه خير دے دَ الله دَ کتاب نه به درته يَو آيت اولولم، ابن سيرين ؒ ورته وائي: نا، دَ الله دَ کتاب نه آيت به هم راته نۀ وائې، او ورته وائي: يا زما دَ خوا نه تاسو ځئ يا به درنه زۀ پاځم، دا ځائے به درته پرېږدم، هغه خلق روان شول، يَو شاګرد ابن سيرين ؒ ته وائي: اے ابن سيرينه! دا دومره سختي دې ولې اوکړه؟ خو پرهيزګاري به دې وو چې يَو حديث ئې ستا مخکښې بيان کړے وو، چې صحيح وو او کۀ غلط وو، يَو آيت دَ قرآن کريم به ئې ستا وړاندې وئيلے وے، هغه ورته اووئيل: دا بدعتيان وو او کچرې دوي يَو آيت وئيلے وے او هغې کښې ئې دَ ځان نه يَو تکے وردننه کړے وے، نو هسې نه چې هغه زما پۀ زړۀ باندې ښۀ لګيدلے وے نو زۀ به هم پۀ بدعاتو کښې مبتلاء شوے وے".

علماؤ خو دَ بدعاتو نه دومره ځان ساتلو چې هغه دَ بدعتي سړي دَ قرآنِ کريم آيت هم نۀ اوري او دَ دې زمانې خلق هغه خو ورسره تول قرآن ختموي.

## دَ سيدنا عبد الله بن عمر رضی الله عنه حالت

دا جليل القدر صحابي دے: "أَنَّ ابْنَ عُمَرَ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: إِنَّ فُلَانًا يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ، فَقَالَ لَهُ:

(1) انظر: "ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (9).

إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّهُ قَدْ أَحْدَثَ، فَإِنْ كَانَ قَدْ أَحْدَثَ فَلاَ تُقْرِئْهُ مِنِّي السَّلاَمَ".(1)

"يقينًا ابن عمر ﷺ ته يو كس راغلے او ورته وائې: چې فلانکي سړے تا له سلام راليږلے دے، عبد الله بن عمر ﷺ ورته اوونيل: زۀ خبر شوے يم چې هغه په دين کښې بدعات کوي، کچرې هغه په رشتيا باندې بدعات کړي وي نو زما سلام به هغه ته نۀ وائې (او کچرې هغه بدعات نۀ وي کړي او صحيح سړے وي نو بيا ورته زما سلام يوسه)".

نۀ دَ علماؤ اقوال اوګوره! چې تا ته پته اولګي نو دے وائي: "نور ډير ګناهونه کبيرې، قتلونه کبيرې، نور ګناهونه کبيرې دَ هغې رد څوک نۀ کوي، او دَ بدعاتو او دَ شرک رد کوي"، نو ګوره! کۀ څوک قتل کوي نو ګناه هم ورته وائي، کۀ مسلمان ئې اووژلو نو ګناه ورته وائي، زنا ئې اوکړه نو ګناه ورته وائي، شراب ئې اوڅکل نو ګناه ورته وائي، کۀ هره يوه ګناه ئې اوکړه خو ګناه ورته وائي، او بدعتي چې بدعات کوي نو هغه ورته دَ سره نه هډو ګناه نۀ وائي، بلکه اُلټه ورته هغه ثواب وائي، نو کومه يوه ګناه لويه شوه؟ يو سړے ګناه کوي خو ګناه ورته وائي او يو سړے ګناه کوي خو دَ سره ورته هډو ګناه نۀ وائي نو په هغې خو سړے کفر له رسيږي، ولې چې ګناه هم کوي او ثواب ورته هم وائي.

**دَ شيخ عبد القادر جيلاني ﷫ قول**

دَ دې وجې نه شيخ عبد القادر جيلاني ﷫ ذکر کوي: "چې بدعتي سړي له الله تعالى دَ توبې توفيق نۀ ورکوي، ځکه دے چې دَ دنيا نه ځي نو دَ دۀ خو دا خيال دے چې ما ډير ښۀ عمل کړے دے او ډير زيات خوشحاله دے توبه هم اونۀ باسي، دَ دنيا نه دَ بدعاتو سره لاړشي".

نو عزتمندو! بدعات ډيره ناکاره بيماري ده، بدعات به په څۀ ختميږي؟ نو بدعات به په قرآن او حديث باندې ختميږي، چې زمونږ عمل دَ قرآن او سنت سره برابر شي، مونږ خپل عمل په قرآن او سنت باندې اوتلو، چې دَ قرآن او سنت سره برابر وي نو ډيره ښه خبره ده او کۀ دَ دې سره برابر نۀ وي نو کۀ هغه هر څومره ښۀ عمل دے نو هغه بيا دَ قبليدو والا نۀ دے.

يو روايت کښې راځي، پيغمبر ﷺ فرمائي: "کوم سړے چې په دين کښې دَ ځان نه بدعات رادنه کړي، نو دَ هغې بدعاتو په وجه به ترې الله تعالى سنت طريقه اوچتوي"، دا نن چې څومره بدعات عام دي او دَ پيغمبر ﷺ طريقې په مونږ کښې نشته دَ هغې وجه دا ده چې مونږ بدعات

(1) أخرجه الترمذي في أبواب القدر، باب، برقم: (2152)، وانظر: "ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (8).

شروع کړل، دَ نبي ﷺ طريقې زمونږ نه اوچتې شوې دي، څومره پورې چې خلق پهٔ بدعاتو کښې مبتلا وي، دَ نبي ﷺ هغه طريقه ورته واپس نهٔ راځي.

ما چې کوم آيت لوستلے وو پهٔ هغې کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾.(1)

"او دې يَرېږي هغه کسان کوم کسان چې دَ الله دَ دين او دَ نبي ﷺ دَ شريعت نه خلاف کوي دَ دې نه چې اوبه رسيږي دوي ته فتنه...".

**دَ فتنې څهٔ مطلب دے؟**

يَو معنى خو دا ده حافظ ابن کثير ذکر ﷫ کړې ده: "دنيا کښې به ورته فتنه اورَسيږي هغه فتنه دا ده: چې يا خو به کفر کښې واقع شي يا به پهٔ منافقت کښې واقع شي او يا به پهٔ بدعاتو کښې واقع شي".

**پهٔ دريو طريقو دَ نبي ﷺ خبره نهٔ منل**

څکه دَ نبي ﷺ خبره پهٔ دريو طريقو باندې خلق نهٔ مني:

(۱) يَو خو کافر دے، چې هغه ئې نهٔ مني، هغه خو بالکل انکار کوي.

(۲) دويم منافق دے، چې هغه ئې مني خو هغهٔ هغه خبره مني چې کومه خبره کښې خير او فائده وي دَ دهٔ، او پهٔ کومه خبره کښې چې دَ منافق نقصان دے نو هغه بيا نهٔ مني.

(۳) دريم دَ نبي ﷺ خبره هغه سړے نهٔ مني چې هغه بدعات کوي او هغه چې بدعات کوي نو پهٔ ښهٔ خيال ئې کوي حالانکه دَ نبي ﷺ دَ طريقې نه خلاف کوي.

نو فتنه دا ده: چې يا به بدعتي شي يا به کافر شي او يا به منافق شي.

**دَ فتنې دويمه معنى**

مفسر ابن کثير دويمه معنى دَ فتنې کړې ده: "چې فتنه دا ده: چې دا سړے به پهٔ قحط کښې واقع شي، پهٔ دې سړي باندې به الله تعالى ډير تکليفونه او مصيبتونه راولي".

او کهٔ پهٔ دنيا کښې نهٔ وي نو ﴿أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ "يا به ورته پهٔ آخرت کښې دردناک عذاب اورَسيږي"، آخرت کښې به الله تعالى لويه سزا ورکړي.

(1) [سورة النور: 63].

دَ دې نه لویه دردناکه سزا به څهٔ وي؟ چې دَ نبي ﷺ دَ حوضِ کوثر اوبهٔ به پرې بندې شي، هغه اوبهٔ به نشي ورکولے او جهنم طرف ته به روان شي، او نبي ﷺ به ورته بخپله باندې خبرې کوي، چې چا پهٔ دین کښې بدعات کړي دي فرشتې به دے جهنم له روان کړي، او حوض ته به ئې نهٔ پریږدي.

نبي ﷺ فرمائي: «فَأَقُولُ: سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَيَّرَ بَعْدِي».[1]

"زهٔ به دَ قیامت پهٔ ورځ باندې وایم: چې تباه دې شي، تباه دې شي هغه خلق چې زما نه بعد ئې دین کښې نوې طریقې وردننه کړې وې".

نو میدان محشر کښې به ورته نبي ﷺ خبرې کوي، پهٔ میدانِ محشر کښې به ئې دَ نبي ﷺ شفاعت نهٔ نصیب کیږي، دَ دې نه لویه سزا بله شته؟ الله رب العزة دې زمونږ او ستاسو اعمال دَ نبي ﷺ دَ سنتو مطابق اوکرځوي او الله تعالی دې زمونږ اعمال دَ بدعاتو نه خالي کړي (آمین).

**دوه بیمارئ**

زما عزتمندو! دې دوَو بیمارو ته ډیر سوچ کوئ، کهٔ پهٔ بل عمل کښې دې کمے دے الله تعالی به دې معاف کړي خو چې یَو دې پهٔ عقیده کښې شرک دے نو دا داسې خطرناکه بیماري ده، چې دا بیمارې درکښې راغله نو الله تعالی دې چرې هم نهٔ معاف کوي: ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾.[2]

"یقینًا الله بخښنه نهٔ کوي دَ دې خبرې چې شرک اوکړے شي هغه سره او بخښنه کوي دَ هغه ګناهونو چې علاوه دَ دې نه دې هغه چا ته چې خوښه ئې شي".

کهٔ معمولي غونډې شرک دې پهٔ عقیده کښې دے نو جنت له نشې تللے، جنت پهٔ تا باندې حرام دے، آیت کریمه دے: ﴿إِنَّهُ مَنْ يُشْرِكْ بِاللهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ﴾.[3]

"چا چې دَ الله تعالی سره شرک اوکړو نو جنت پهٔ دې سړي حرام دے او ځائے دَ دهٔ جهنم دے".

(1) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب في الحوض، برقم: (6584).
(2) [سورة النساء: 48، 116].
(3) [سورة المائدة: 72].

نو زیات خیال دَ خپلې عقیدې کوئ، چې دَ الله تعالی سره دَ الله پهٔ ذات کښې، دَ الله پهٔ صفاتو کښې هیڅ څوک شریک نهٔ کړې، نهٔ کته، نهٔ انسان، نهٔ ملائک، نهٔ پیغمبران او نهٔ بل څوک، ځکه چې عقیده دَ شرک وي نو انسان دَ عذاب نه نهٔ بچ کیږي.

(۲) دویمه بیماري دا ده: چې اعمال دې پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ نهٔ وي کړي، کهٔ هغه غم وي، کهٔ هغه ښادي وي، کهٔ هغه بل کار وي، کهٔ هغه دوکانداري وي، کهٔ هغه تجارت دے چې هغه هم پهٔ طریقه دَ پیغمبر ﷺ باندې وي، الله رب العزة دې اول ما له پهٔ دې خبرو دَ عمل کولو توفیق رانصیب کړي او بیا دې تاسو له دَ عمل کولو توفیق در نصیب کړي (آمین).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ

(سورة الحجرات: 1)

# موضوع

# عيد ميلاد النبي

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# عید میلاد النبي

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾.(1)

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ، فَهُوَ رَدٌّ».(2)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړوا ما ستاسو مخکښې دَ قرآنِ کريم نه دَ سورة الحجرات يَو آيتِ مبارکه اولوستو، او دَ احاديثو دَ رسول الله ﷺ نه ما ستاسو مخکښې يَو حديثِ مبارکه عرض کړو.

**مومنانو ته خطاب**

ما چې کوم آيت اولوستلو پهٔ دې کښې الله تعالی مومنانو ته خطاب کوي، چې: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾.

"اے مومنانو! مهٔ وړاندې کيږئ دَ الله او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ حکم نه او دَ الله تعالی نه اويَريږئ، يقينًا الله اوريدونکے او پوهه ذات دے".

علماء کرام ذکر کوي: "چې دَ الله تعالی دَ کتاب او دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ سنتو خلاف مهٔ

(1) [سورة الحجرات: 1].

(2) أخرجه البخاري في كتاب الصلح، باب إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود، برقم: (2697).

کوئ، څهٔ چې الله تعالی وئیلي دي هم هغه شان اوکړئ او څهٔ چې دَ الله پیغمبر ﷺ وئیلي دي نو هم هغه شان اوکړئ، دَ ځان نه طریقې مهٔ جوړوئ، مخالفت دَ الله او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ مهٔ کوئ، دَ الله نه اویَریږئ، یقینًا الله تعالی پوهه ذات دے او ستاسو دَ اعمالو نه خبردار ذات دے"، مطلب دا دے: چې پهٔ دین او اسلام کښې به مونږ او تاسو متابعت دَ الله دَ کتاب او دَ سنتو دَ پیغمبر ﷺ کوو، دَ ځان نه به نوې نوې طریقې نهٔ ایجاد کوو، کچرې مونږ او تاسو دَ ځان نه نوې نوې طریقې جوړې کړې نو یاد ساتئ! پهٔ هغې به مونږ او تاسو ګناهګاران کرځو، مونږ ته به پهٔ هغې عذاب میلاویږي او مونږ ته به هیڅ اجر نهٔ میلاویږي.

بدعت ډیره لویه ګناه ده، او یَو بدعت راروان دے مقصود مې دَ هغې یاد دهاني ده دې خلقو ته، الحمد لله ثم الحمد لله زمونږ پهٔ کلي او علاقه کښې خو خلق دَ دغه بدعت نه محفوظ دي، خو لیکن پهٔ لویُو لویُو ښارونو کښې، پهٔ بعضې علاقو کښې دَ هغې بدعت ډیر لوئي ترویج کیږي، او هغه بدعت خلق پهٔ ډیر زور او شور سره اداء کوي، چې هغې بدعت ته "عید میلاد النبي ﷺ" وئیلے شي.

**عید میلاد النبي ﷺ**

دَ عید میلاد النبي ﷺ معنی ده: دَ نبي ﷺ پهٔ پیدائش باندې خوشحالي مناؤل، دا طریقه بالکل بدعت دے، پهٔ شریعت دَ رسول الله ﷺ کښې دَ دې هیڅ څهٔ ثبوت نشته دے، افسوس دے نن پهٔ حال دَ مسلمانانو باندې! چې یَو طرف ته خو ئې دومره مینه ده دَ الله دَ پیغمبر ﷺ سره، چې دَ الله دَ پیغمبر ﷺ پهٔ پیدا ئش خوشحالي مناوهي، دَ الله دَ پیغمبر ﷺ پهٔ پیدائش لوئي لوئي عرسونه او محفلونه کوي او بل طرف ته دَ نبي ﷺ دَ مشن او طریقې مخالفت کوي، بل طرف ته دَ نبي ﷺ دَ طریقې نه ځان نهٔ خبرَوي چې زما دَ پیغمبر ﷺ طریقه څنګه ده؟ عید میلاد النبي ﷺ لوئي بدعت دے چې دا یَو سرے مناوهي، او ان شاء الله لږ وخت بعد زهٔ دَ هغې وضاحت کوم، خو مخکښې نه زهٔ ستاسو ذهن کښې دا خبره اچوم چې دا بدعت څهٔ ته وائي؟ او دا څهٔ شے دے؟ او دَ دې نه ځان ساتل پکار دي او کهٔ نه؟؛ ځکه ډیر خلق پهٔ لویُو لویُو بدعاتو کښې مبتلاء دي، څوک یَو بدعت کښې او څوک بل بدعت کښې لیکن دَ دې خبرې څهٔ خیال نهٔ کوي چې آیا دا بدعت څنګه شے دے؟ پهٔ دې باندې عذاب میلاویږي یا ثواب؟

## دَ بدعت مذمت

بدعت دَ شرک نه بعد لويه ګناه ده، او ياد ساتئ! علماء کرامو ذکر کړي دي، علامه ابن جوزي رحمه الله ليکلي دي پهٔ "تلبيس ابليس" کښې، وائي: "شيطان پهٔ بله ګناه دومره نهٔ خوشحاليږي خومره چې پهٔ بدعت باندې خوشحاليږي".

## وجه څهٔ ده؟

وجه دا ده: کهٔ يَو سړے هر څومره لويه ګناه اوکړي نو دے خو ئې ګناه ګڼړي، نو کله خو به دے دَ دغې ګناه نه توبه اوباسي کنه، ليکن بدعتي انسان هغه به ګناه هم کوي او اُلټه به هغې ګناه ته ښهٔ کار هم وائي، چې ګناه ئې اوکړه نو يَوه ګناه شوه او چې ګناه ته ښهٔ وائي نو دا بله ګناه شوه او تر مرګه پورې هغه پهٔ دې ګناه پاتې شي او توبه ترې نه اونهٔ باسي، نو پهٔ بدعت باندې شيطان ډير خوشحاليږي؛ ځکه شيطان وائي: "زهٔ دا خلق پهٔ ګناه کښې مبتلاء کړم نو چې کله دوي ګناه اوکړي نو بيا دَ دې نه دوي توبه اوباسي نو الله تعالی ئې معاف کړي..."، او چې توبه خوک اوباسي نو واقعي ده الله ئې معاف کوي لکه حديث مبارکه کښې راځي: «التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لاَ ذَنْبَ لَهُ».(1)

"دَ ګناه نه توبه ايستونکے داسې دے لکه چې دهٔ هډو دَ سره ګناه کړي نهٔ وي".

نو کله چې يَو سړے بدعات اوکړي او دے هغې ته ثواب اووائي او دَ خير کار ورته اووائي نو دے به پهٔ هغې باندې کلک وي ترڅو چې دے مړ شي خو توبه نهٔ اوباسي، نو شيطان ډير خوشحاليږي.

## شيخ القرآن محمد طاهر رحمه الله ليکلي دي

"چې دَ فاسق هغه جرم او ګناه دَ هغې نه دَ مبتدع هغه ګناه ډيره اوچته ده؛ ځکه کچرې فاسق ګناه کوي نو هغه خو نورو خلقو له دعوت نهٔ ورکوي، مبتدع او بدعتي انسان به ګناه هم کوي او علی الإعلان به خلقو له دعوت هم ورکوي او خلقو کښې هغه عام کول غواړي نو بدعت دَ فسق او فجور نه زياته ګناه ده".

## دَ ابو ادريس خولاني رحمه الله قول

شيخ القرآن محمد طاهر رحمه الله پهٔ "اصول السنة" کښې دَ محمد بن وضاح پهٔ حواله باندې دَ ابو ادريس خولاني رحمه الله قول نقل کوي: "أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: لأَنْ أَسْمَعَ بِنَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ بِنَارٍ وَتَحْتَرِقُ أَحَبُّ إِلَيَّ

(1) أخرجه ابن ماجة في كتاب الزهد، باب ذكر التوبة، برقم: (4250).

مِنْ بِدْعَةٍ لَيْسَ لَهَا مُغَيِّرٌ".[1]

"وائي: چې زۀ دا آواز واورم چې پۀ جومات کښې اُور لګيدلے دے او جومات سوزيږي نو پۀ دې دومره نۀ خفه کيږم لکه څنګه چې پۀ دې خبره باندې خفه کيږم چې پۀ جومات کښې بدعات کيږي او څوک ئې نۀ بندَوي".

**وجه څۀ ده؟**

علماء کرام ذکر کوي: وجه دا ده: "چې کچرې جومات اوسوَزيدو نو بيا به ئې جوړ کړي، کۀ بيا اوسوَزيدو نو بيا به ئې جوړ کړي صرف ظاهري نقصان اوشو، او مبتدع هغه به بدعات عام کوي او هغه بدعات دَ خلقو زړونو کښې راچوي نو دَ خلقو دَ زړونو نه هغه بدعات بيا پۀ کرانه باندې اوځي"، نو بدعت ډيره لويه ګناه ده.

**بدعت څۀ ته وائي؟**

بدعت هر هغه کار ته وائي: چې نۀ الله وئيلي وي او نۀ دَ الله رسول ﷺ وئيلي وي او نۀ صحابه کرامو ﷺ هغه کار کړے وي، ليکن خلق دَ ځان نه يَوه طريقه جوړه کړي او هغه دين کښې وردننه کړي، هغې ته بدعت وئيلے کيږي. دا ډيره لويه ګناه ده.

**دَ فضيل بن عياض ﷫ قول**

"مَنْ جَلَسَ إِلٰى صَاحِبِ بِدْعَةٍ فَاحْذَرُوْهُ".[2]

"چې څوک دَ بدعتي سړي سره ناسته پاسته کوي نو هغه نه ځان بچ کړئ"؛ ځکه هغه به دې بدعاتو ته مائل کړي، چې دَ هغۀ پۀ تا باندې څۀ اثر اونۀ شي.

او "تفسير قرطبي" کښې وائي: څوک چې بدعتي سره کيناستو نو دۀ ته به پوهه او حکمت ورنۀ کړے شي، او هغه خو لا دومره پورې ليکلي دي: "إِذَا رَأَيْتَ مُبْتَدِعًا فِيْ طَرِيْقٍ فَخُذْ طَرِيْقًا آخَرَ".[3]

"چې کله يَو بدعتي سړے درته پۀ لاره باندې درغلے نو دغه لاره پريږده، پۀ بله لار باندې لاړشه".

مخامخ ورله هم مۀ ورځه؛ هسې نه چې دَ هغه نه پۀ تا باندې دَ بدعاتو اثر اونشي؛ ځکه بدعات ډيره ناکاره بيماري ده، تا ته به ترې نه مرض اولګي، تۀ به دغه بدعاتو کښې مبتلاء شې.

(1) انظر: "أصول السنة" لشيخ القرآن محمد طاهر (37).
(2) انظر: تفسير "القرطبي" (7/13)، و"ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (7).
(3) انظر: "ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (7).

### دَ علامه ابن سیرین ﷺ سره دَ دوو کسانو راتلل

دَخَلَ رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ الْهَوَاءِ عَلَى ابْنِ سِيْرِيْنَ فَقَالَ: "يَا أَبَابَكْرٍ! نُحَدِّثُكَ بِحَدِيْثٍ"، فَقَالَ: "لَا"، قَالَ: "فَنَقْرَأُ عَلَيْكَ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللهِ"، قَالَ: "لَا تَقُوْمَانِ عَلَيَّ أَوْ لَأَقُوْمَنَّ"، قَالَ: "فَخَرَجَا، فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: "يَا أَبَابَكْرٍ! وَمَا كَانَ عَلَيْكَ أَنْ يَقْرَءَ عَلَيْكَ آيَةً مِنْ كِتَابِ اللهِ؟"، قَالَ: "إِنِّيْ خَشِيْتُ أَنْ يَقْرَءَ عَلَيَّ آيَةً فَيُحَرِّفَانِهَا، فَيَقِرُّ فِيْ قَلْبِيْ".[1]

"دهٔ ته دوه کسان راغلل ورته وائي: غوړ کیږدوه، زهٔ درته دَ نبي ﷺ یَو دوه احادیثه وایم، علامه ابن سیرین ﷺ ورته وائي: نا، ماته به تهٔ دَ نبي ﷺ احادیث مبارکه نهٔ وائي، بیا ورته هغه وائي: څه خیر دے دَ الله دَ کتاب نه به درته یَو آیت اولوَلم، ابن سیرین ﷺ ورته وائي: نا، دَ الله دَ کتاب ه آیت به هم راته نهٔ وائي، او ورته وائي: یا زما دَ خوا نه تاسو ځئ یا به درنه زهٔ پاځم، دا ځائے به درته پریږدم، هغه خلق روان شول، یَو شاګرد ابن سیرین ﷺ ته وائي: اے ابن سیرین! دا دومره سختي دې ولې اوکړه؟ خو پرېخودي به دې وو چې یَو حدیث ئې ستا مخکښې بیان کړے وو، چې صحیح ووا او کهٔ غلط وو، یَو آیت دَ قرآن کریم به ئې ستا وړاندې وئیلے وے، هغه ورته اووئیل: دا بدعتیان وو او کچرې دوي یَو آیت وئیلے وے او هغې کښې ئې دَ ځان نه یَو تکے وردننه کړے وے، نو هسې نه چې هغه زما پهٔ زړهٔ باندې ښهٔ لګیدلے وے نو زهٔ به هم پهٔ بدعاتو کښې مبتلاء شوے وے".

نو بدعت ډیره عظیمه ګناه ده پکار دا ده چې دَ مبتدعینو نه هم ځان اوساتئ او دَ بدعاتو نه هم ځان اوساتئ، هر عمل چې دَ الله پهٔ دربار کښې قبلیږي نو هله قبلیږي چې دَ الله تعالی دَ رضاء دپاره وي او چې پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ باندې وي، کچرې دَ الله تعالی دَ رضاء دپاره نهٔ وي او پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ باندې نهٔ وي نو هغه عمل دَ الله پهٔ دربار کښې نهٔ قبلیږي.

### دَ عید میلاد النبي ﷺ مناوول

عید میلاد النبي ﷺ نهٔ نبي ﷺ مناؤ کړے دے، درې شپیتهٔ (٦٣) کاله زندګي دَ نبي ﷺ وه، پهٔ دې درې شپیتهٔ کاله کښې چرته یَو ورځ هم نبي ﷺ صحابه کرام ﷺ نهٔ دي راجمع کړي: "چې راځئ! نن زما دَ پیدائش هغه ورځ راغلې ده، زما دَ پیدائش پهٔ هغه ورځ باندې خوشحالي مناؤو"،

(1) انظر: "ضياء النور" لشيخ القرآن محمد طاهر (9).

نو دا چرته دَ الله پیغمبر ﷺ نهٔ دے کړے، کچرته دا دين وو نو اول به نبي ﷺ مناؤ کړے وو، دارنګې صحابه کرامو ﷺ نهٔ دے مناؤ کړے، کچرې عيد ميلاد النبي ﷺ دين وے نو پکار ده چې صحابه کرامو ﷺ مناؤ کړے وے، او چې کوم شے صحابوٴ ﷺ نهٔ دے کړے، دَ الله پيغمبر ﷺ نهٔ دے کړے او ائمه مجتهدينو نهٔ دے کړے نو پوهه شه چې هغه بدعت دے.

**دَاهل السنت والجماعت تعريف**

دَ دې وجې نه حافظ ابن کثير ﷫ دَ "سورة الأحقاف" پهٔ تفسير کښې ليکلي: "وَأَمَّا أَهْلُ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ فَيَقُولُونَ فِي كُلِّ فِعْلٍ وَقَوْلٍ لَمْ يَثْبُتْ عَنِ الصَّحَابَةِ: هُوَ بِدْعَةٌ؛ لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ خَيْرًا لسبقونا إليه، لأنهم لَمْ يَتْرُكُوا خَصْلَةً مِنْ خِصَالِ الْخَيْرِ إِلَّا وَقَدْ بَادَرُوا إِلَيْهَا".[1] "هر چې اهل السنة والجماعة دي نو هغوي وائي پهٔ هر يَو کار او وينا کښې چې هغه دَ صحابه کرامو ﷺ نه نهٔ وي ثابت نو هغه بدعت دے؛ ځکه چې کچرته دا قول او فعل خير وے نو خامخه دوي به زمونږ نه وړاندې والے کړے وو دغې طرف ته؛ ځکه چې دې صحابه کرامو ﷺ هيڅ يَو کار دَ خير دَ کارونو نه پرېخودلے نهٔ دے مګر هغوي هغه خير کار طرف ته منډه وهلې ده"،

نو حافظ ابن کثير ﷫ تعريف دَ اهل السنة والجماعة اوکړو...، نن خو افسوس دا دے چې هر سړے ځان پهٔ اهل السنت والجماعت کښې دننه کوي، وائي: زهٔ اهل السنت والجماعت يم، هر سړے وائي: زهٔ پهٔ دغه ډله کښې يم...، لکه نن هم ډېر خلق دا دعوٰی کوي، وائي: "مونږ ديوبنديان يُو"، ليکن ياد ساتئ! دَ تمام علماء ديوبند کتابونه اوکورئ! تولو ليکلي: چې عيد ميلاد النبي ﷺ بد ترين بدعت دے، پهٔ دولسم (۱۲) ربيع الاول باندې خوشحالي مناوول، دَ نبي ﷺ پهٔ پيدائش باندې خوشحالي مناوول صرف پهٔ باره (۱۲) ربيعُ الأوَّل باندې دا لوئي بدعت دے، افسوس دا دے چې پهٔ ځان باندې نوم دَ ديوبنديانو لګوي او کار پهٔ طريقه دَ بريليانو کوي! نو هر سړے ځان ته اهل السنة والجماعة وائي، ليکن ياد ساتئ! چې ترهغې پورې دَ دوي دعوٰی نهٔ صحيح کيږي تر څو پورې چې دوي دَ اهل السنت والجماعت پهٔ لار روان شوي نهٔ دي، دَ اهل السنة والجماعت باره کښې علماء دا خبره کوي: "کوم کار چې دَ صحابه کرامو ﷺ نه نهٔ دے ثابت هغه کار بدعت دے"، هغه دين نهٔ دے، ولې؟ دا ځکه کچرته دغه کار غوره وے او ښهٔ کار وے نو زمونږ نه

(1) انظر: "تفسير ابن كثير" تحت آية سورة الأحقاف: (10)، (279/7).

مخکښې به صحابه کرامو ﷺ کړې وې؛ ځکه چې زمونږ دومره مينه دَ دين سره نشته دے څومره چې دَ صحابه کرامو ﷺ مينه وه، مونږ کښې دومره تقوی نشته څومره تقوی چې پهٔ صحابه کرامو ﷺ کښې وه.

**زمونږ نه دَ الله رب العزة مطالبه**

زمونږ او ستاسو نه الله رب العزة مطالبه کوي، الله تعالی فرمائي: ﴿فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا﴾.(1)

"کچرته دې روستو خلقو داسې ايمان راوړو لکه څنګه ايمان چې صحابه کرامو ﷺ راوړے وو نو دوي پهٔ سمه لار روان شول"، يعني دَ صحابه کرامو ﷺ ايمان زمونږ او ستاسو دَ ايمان دپاره معيار دے، الله وائي: "خپل ايمان داسې جوړ کړئ لکه څنګه چې دَ ايمان صحابه کرامو ﷺ دے نو بس تهٔ کامل هدايت والا ئې"، دَ صحابه کرامو ﷺ نه مخکښې کيږه مهٔ.

نو اوس چې صحابه کرامو ﷺ عيد ميلاد النبي ﷺ مناؤو کړے نهٔ دے نو تهٔ ئې ولې مناوهې؟ کچرې دا غوره وے نو زمونږ نه مخکښې نبي ﷺ به کړے وے، صحابه کرامو ﷺ به کړے وے؛ ځکه صحابهٔ ﷺ خو يَو دَ خير کار نهٔ دے پرېخودلے، دَ يَو بل نه ئې مخکښې هغې ته ځان رسولے دے، يَو سنت هم چرته دَ نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ نهٔ دے پرېخودلے، صحابؤ ﷺ خو يَوه طريقه دَ الله دَ پيغمبر نهٔ ده پريخودلې، نو کچرته دا څيز صحيح وے صحابه کرامو ﷺ به کړے وے.

**دَ عبد الله بن مسعود ﷺ قول**

دَ عبد الله بن مسعود ﷺ قول پهٔ کتاب "الاعتصام" کښې امام شاطبي ؒ ليکلے دے: "اتَّبِعُوا آثَارَنَا وَلَا تَبْتَدِعُوا؛ فَقَدْ كُفِيتُمْ".(2)

"اے خلقو مونږ پسې راشئ، زمونږ پهٔ نقش قدم باندې راروان شئ او دَ ځان نه بدعات مهٔ جوړوئ؛ ځکه دا پهٔ مونږ پسې اقتداء کول دا به ستاسو دپاره کافي شي".

**دَ حذيفه ﷺ قول**

"كُلُّ عِبَادَةٍ لَمْ يَتَعَبَّدْهَا أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَا تَعَبَّدُوهَا فَإِنَّ الْأَوَّلَ لَمْ يَدَعْ

(1) [سورة البقرة: 137].

(2) انظر: "الاعتصام" للشاطبي، فصل الأدلة من النقل على ذم البدع، فصل ما جاء عن السلف الصالح في ذم البدع وأهلها: (107/1).

لِلآخِرِ مَقَالاً، فَاتَّقُوا اللهَ يَا مَعْشَرَ الْقُرَّاءِ، وَخُذُوا بِطَرِيقِ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ".[1]

"کوم عبادت چې دَ الله دَ پیغمبر ﷺ صحابو ﷺ نهٔ دے کړے نو هغه عبادت تاسو مهٔ کوئ؛ ځکه ړومبنو دَ روستنو دپاره څهٔ دَ خبرې راؤ نهٔ دے پرېخودے، دَ الله نه اویرېږئ اے دَ قاریانو ډلې! او اونیسئ لار دَ هغه چا چې مخکښې ستاسو نه دي".

یَو مختصره غونډې خبره کوم مونږ له دین دَ الله دَ طرف نه جبرئیل علیه السلام راوړے دے، جناب رسول الله ﷺ ته ئې راوړے دے، او بیا جناب رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته دین ښودلے دے، او صحابه کرامو ﷺ بیا روستو خلقو ته دین ښودلے دے نو چې یَو څیز الله تعالیٰ نهٔ دے وئیلے، جبرئیل امین علیه السلام محمد ﷺ ته نهٔ دے وئیلے، محمد ﷺ مصطفی صحابه کرامو ﷺ ته نهٔ دے وئیلے او بیا صحابه کرامو ﷺ روستنو خلقو ته نهٔ دے وئیلے نو هغه دَ کوم ځائے نه دین کیدے شي؟ دین خو هغه دے چې کوم الله تعالیٰ وئیلے دے او دَ الله رسول ﷺ وئیلے دے.

**دَامام شافعي رحمه الله قول**

"صحیح دین خو هغه دے کوم چې الله تعالیٰ وئیلے دے، پیغمبر وئیلے دے او صحابه کرامو ﷺ وئیلے دے"، چې هغوي دَ لوئې بصیرت والا خاوندان وو، چې دا روستو خلق ئې دَ ځان نه جوړوي نو دا به څهٔ دین وي؟

یاد ساتئ! ثواب پهٔ اتباع باندې میلاوېږي پهٔ ابتداع او بدعت باندې نهٔ میلاوېږي، پهٔ بدعت عذاب میلاوېږي.

**دَابن الحاج رحمه الله قول**

ابن الحاج پهٔ "المدخل" کښې لیکلي دي: "نَحْنُ مُتَّبِعُونَ لاَ مُبْتَدِعُونَ فَحَيْثُ وَقَفَ سَلَفُنَا وَقَفْنَا".[2]

"مونږ تابعداري کوونکي یُو، بدعتیان نهٔ یُو نو کوم ځائے کښې چې زمونږ سلف اودرېدلي (توقف کړے) نو مونږ به هم هلته کښې توقف کوو، اودرېږو به"، نو مطلب دا شو چې سوبږ دَ الله او دَ الله دَ رسول ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ نه مخکښې نهٔ ځو بس کوم ځائے کښې چې هغوي څهٔ کار کړے وي نو مونږ به هم هغه کار کوو او چې کوم ځائے کښې هغوي توقف کړے وي نو مونږ

(1) انظر: "الاعتصام" للشاطبي، أمثلة توضح الوجه العملي في المصالح المرسلة، الأمور المعتبرة في المصالح المرسلة: (230/2)

(2) انظر: "المدخل" لابن الحاج،: (262/3).

به هم هلته کښې اودرېږو او توقف به کوو، ځکه خو الله تعالی فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾.(1)

"اے مومنانو! مهٔ وړاندې کیږئ دَ الله او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ حکم نه او دَ الله تعالی نه اوېرېږئ، یقینًا الله اوریدونکے او پوهه ذات دے".

**مثال**

دَ الله پیغمبر ﷺ زمونږ مقتداء دے، دَ الله پیغمبر ﷺ زمونږ او ستاسو امام دے، مونږ او تاسو دَ الله دَ پیغمبر ﷺ مقتدیان یُو، جمع ولاړه ده، امام چې کله "الله أکبر" اوکړي نو مقتدیان هم "الله أکبر" کوي، امام چې کله رکوع ته لاړشي نو مقتدیان هم رکوع ته ځي، امام چې کلهٔ سجدې ته ځي نو مقتدیان هم سجدې ته ځي، څنګه حرکت چې امام کوي نو دغسې حرکت مقتدیان هم ورپسې کوي، خو کچرته داسې حالت راشي چې امام ولاړ دے او مقتدي سجدې ته لاړو نو مونځ کیږي؟ امام پهٔ سجده باندې پروت دے او مقتدي ولاړ دے نو مونځ نهٔ کیږي؛ ځکه مونږ او تاسو له حکم دے چې دَ خپل امام تابعداري به کوئ، کله چې امام رکوع ته لاړو تهٔ به هم رکوع ته ځې، کله چې امام سجدې ته لاړلو نو تهٔ به هم سجدې ته ځې نو دغه شان مونږ او تاسو به دَ اتباع دَ محمد ﷺ کوو؛ ځکه الله تعالی وائي: "اے ایمان والو! مهٔ مخکښې کیږئ دَ الله او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ نه"، قرآن یَو حکم نهٔ دے کړے نو تهٔ څنګه هغه کار کوې؟ دَ الله پیغمبر ﷺ نهٔ دي وئیلي نو تهٔ څنګه هغه کار کوې؟ صحابه کرامو ﷺ نهٔ دي وئیلي نو تهٔ ولې هغه کار کوې؟

**دَامام نه مخکښې کیدل**

حدیث واورئ! رسول الله ﷺ فرمائي: "کوم مقتدي چې داسې دے چې دَ خپل امام تابعدار نهٔ دے، دَ خپل امام تابعداري نهٔ کوئ لکه دا بعضې تلوارکن وي امام لا ولاړ دے او دے دَ امام نه مخکښې روان دے، امام پهٔ سجده باندې پروت دے او دے دَ امام نه مخکښې سر اوچتوي دَ الله پیغمبر ﷺ فرمائي: دا سړے دې دَ دې حرکت نه ځان منع کړي داسې کار دې نهٔ کوي، کنې کیدے شي چې الله تعالی دَ دې انسان دَ سر نه دَ خر سر جوړ کړي"، دا دَ نبي ﷺ فرمان دے، نو چې دَ یَو مقتدي دَ سر نه دَ خر سر جوړیږي تش پهٔ مخالفت دَ امام دَ مونځ باندې نو سوچ پکار دے، او یاد ساتئ! چې دَ هغې امام خلاف کول چې هغه امام الأنبیاء دے نو دَ هغه سړي به څهٔ حال وي؟ چې دَ هغهٔ پهٔ طریقه باندې یَو سړے نهٔ ځي او دَ ځان نه طریقه رائج کوي، او پهٔ هغې

(1) [سورة الحجرات: 1].

باندې روان دے نو دَ هغې خلقو به دَ قيامت پهٔ ورځ څهٔ حال وي؟

## دَ بدعتي سړي دَ حوضِ كوثر نه واپس كيدل

دَ دې وجې نه رسول الله ﷺ فرمائي: "دَ قيامت پهٔ ورځ به ما ته خلق راروان وي، زهٔ به خلقو ته دَ حوضِ كوثر اوبهٔ وركوم..."، الله رب العزة دَ حوضِ كوثر اوبهٔ پهٔ مونږ باندې اوڅكوي (آمين!)، ډيرې مزيدارې اوبهٔ دي، رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ شَرِبَ مِنْهَا فَلاَ يَظْمَأُ أَبَدًا».[1]

داسې اوبهٔ چې ميدان محشر كښې به نهايتې تكليف وي، نهايتې تنده به وي "چا چې دغه اوبهٔ دَ نبي ﷺ دَ لاسو مباركو نه اوڅښكلې نو تول ميدان محشر كښې به هغه ته تنده نهٔ لګيږي".

داسې مزيدارې اوبهٔ چې دَ الله پيغمبر ﷺ فرمائي: «أَبْيَضُ مِنَ اللَّبَنِ»[2] "دَ پيو نه به زياتې سپينې وي"، «وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ»[3] "دَ ګبين نه به زياتې خوږې وي"، او دومره ډير لوښي به وي لكه دَ آسمان ستورې.

نبي ﷺ فرمائي: زهٔ به خپلو امتيانو له اوبهٔ وركوم، زما طرف ته به يَوه ډله راروانه وي، زهٔ به ئې پيژنم چې دا زما امتيان دي، فرشتې به ئې زما دَ حوضِ كوثر نه اوشړي، زهٔ به اووايم: "دا زما ملګري دي، ماته ئې راپريږدئ! چې زهٔ ورته اوبهٔ وركړم، فرشتې به ما ته اووائي: چې تا ته پته نشته چې دوي ستا نه روستو دين كښې څهٔ نوي طريقې دننه كړې وې"، نو نبي ﷺ فرمائي: «فَأَقُولُ: سُحْقًا سُحْقًا لِمَنْ غَيَّرَ بَعْدِي».[4]

"زهٔ به اووايم: چې تباه دې شي، تباه دې شي هغه خلق چې زما نه بعد ئې دين كښې نوې طريقې ورددننه كړې وې".

نو چې يَو عمل انسان كوي نو پهٔ هغې به ثواب هله ميلاويږي چې دَ الله رضاء پكښې وي او دويم چې پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ باندې وي؛ دَ دې وجې نه مفسر ابن كثير ليكلي دي: "دَ عمل دَ قبليدو دپاره دوه شرطه دي: "وَلَا يَكُونُ الْعَمَلُ حَسَنًا حَتَّى يَكُونَ خَالِصًا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، عَلَى شَرِيعَةِ

(1) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب في الحوض، برقم: (6579)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الفضائل، باب إثبات حوض نبينا ﷺ وصفاته، برقم: (2300).
(2) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب في الحوض، برقم: (6579).
(3) أخرجه مسلم في كتاب الفضائل، باب إثبات حوض نبينا ﷺ وصفاته، برقم: (2300).
(4) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب في الحوض، برقم: (6584).

رَسُولِ اللهِ ﷺ، فَمَتَى فَقَدَ الْعَمَلُ وَاحِدًا مِنْ هَذَيْنَ الشَّرْطَيْنِ بَطَلَ وَحَبِطَ".[1]

"او عمل حسن نه کړئي ترڅو پورې چې دا خالص دَ الله دَ رضاء دپاره نهٔ وي شوے او پهٔ شريعت دَ نبي ﷺ نهٔ وي شوے، نو کله چې عمل ورک کړي يو دَ دې دوو (۲) شرطونو نه دا عمل باطل دے او برباد دے".

نو کهٔ يو عمل ډير هم دَ اخلاص نه ډک وي خو چې پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ باندې نهٔ وي نو نهٔ قبليږي. مطلب دا دے: چې عيد ميلاد النبي ﷺ دا دَ الله دَ پيغمبر ﷺ طريقه نهٔ ده نو پهٔ کومو ځاينو کښې چې خلق عيد ميلاد النبي ﷺ مناوهي ياد ساتئ! دا طريقه بالکل دَ شريعت خلاف ده.

علماؤ ذکر کړي دي: "چې دَ نبي ﷺ بيان کول، دَ هغوي صفات ذکر کول، دَ هغوي اخلاق ذکر کول او دَ هغوي دَ سيرت او صورت بيان دا هر وخت چې بيانوې نو ثواب پرې ميلاويږي، اوريدو کښې ئې هم ثواب او وئيلو کښې ئې هم ثواب خو ليکن يو وخت به نهٔ خاص کوې"، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ ولادت خبره، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ ماشوموالي زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ ځوانئ زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ بعثت او نبوت زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ دعوت دور، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ جهاد زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ قربانئ زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ ذکر او فکر زندګي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ عبادت، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ اخلاق، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ صورت او سيرت، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ زهد او تقوٰی، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ کيناستل او پاسيدل، تلل او راتلل، اودهٔ کيدل او دَ خوب نه بيداريدل، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ صلح او جنګ، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ غُصه، خفګان او خوشحالي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ معاملات چې دَ هغې بيان کوې، هغه اورې نو پهٔ هغې به تا ته اجر وثواب ميلاويږي، خو دا نهٔ ده چې صرف يو ورځ ئې اووائي او نور ټول کال چهټي ورکړې.

دَ دې وجې نه علماءِ کرامو ليکلي دي:

**مولانا سرفراز خان صفدر صاحب ؒ ليکلي دي**

وائي: "پهٔ دې کښې هيڅ شک نشته چې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ سره عشق او محبت او دَ الله پيغمبر ﷺ باندې ايمان راوړل دا بالکل عينِ ايمان دے..."، مينه به ورسره ساتې، محبت به ورسره ساتې، ايمان به پرې راوړې، بيا صفدر صاحب وائي: "آپ ﷺ کی ولادت سے لیکر وفات تک، زندگی کا ہر

(۱) انظر: "تفسير ابن الكثير" تحت آية (7) من سورة هود: (308/4).

شعبہ اور آپ ﷺ کے اقوال وافعال کو پیش کرنا باعثِ نزولِ رحمتِ خداوندی ہے"، "دَ الله دَ پیغمبر ﷺ دَ ولادت نه واخلې دَ پیغمبر ﷺ تر وفات پورې دَ الله دَ پیغمبر ﷺ هر يَو حالت او هر يَو قول او فعل چې پيش کوې نو هغه دَ نزول رحمت دپاره سبب او باعث دے"، پهٔ تا باندې به دَ الله تعالى رحمتونه تازليږي.

بيا وائي: "سال کے ہر مہینے میں..."، دَ کال پهٔ هره مياشت کښې، دَ مياشت پهٔ هره هفته کښې، دَ هرې هفتې پهٔ هره ورځ کښې، دَ ورځې پهٔ هره گهينټه کښې، دَ گهينټې پهٔ هر منټ کښې او دَ منټ پهٔ هر سيکند کښې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ ذکر کولو کښې هيڅ گناه نشته، هر وخت دَ الله دَ پيغمبر ﷺ صفت کوه، هر وخت دَ الله دَ پيغمبر ﷺ صورت او سيرت بيانوه بالکل ثواب درته پرې ميلاويږي، خو زمونږ خبره صرف پهٔ دې کښې ده: چې ټول کال عيد ميلاد النبي ﷺ نهٔ مناويږي، ټول کال دَ نبي ﷺ پهٔ صورت او سيرت باندې جلسې او جلوسونه نهٔ کيږي، خو چې کلهٔ بارهٔ ربيع الاول شروع شي نو خلق بيا وائي: "دا باره ربيع الاول دے، او مونږ پهٔ دې باندې خوشحالي مناؤو"، دا يَو ورځ خاص کول دا بدعت دے؛ ځکه دا کار نهٔ نبي ﷺ کړے دے، نهٔ صحابه کرامو ﷺ کړے دے، نهٔ تابعينو کړے دے، نهٔ تبع تابعينو کړے دے او نهٔ ائمه مجتهدينو کړے دے.

**دَعيد ميلاد النبي ﷺ ابتداء**

علماءِ کرامو ذکر کړي دي: چې عيد ميلاد النبي ﷺ دَ نبي ﷺ نه روستو شپږ سوو کالو پورې دا نهٔ وو، عيد ميلاد النبي ﷺ نهٔ مناويدو، نهٔ صحابي مناؤ کړے او نهٔ يَو تابعي مناؤ کړے دے، نهٔ يَو امام مناؤ کړے دے او نهٔ يَو فقيه او محدث مناؤ کړے دے او کله چې شپږ سوه (٦٠٠) کاله تير شول نو بيا يَو مُسرِف بادشاه وو، نهايتې فضول خرچه او ظالم بادشاه وو، هغه پهٔ شپږ سوه څلور (٦٠٤) هجرئ کښې دا مناؤول شروع کړل، دَ نبي ﷺ نه شپږ سوه کاله بعد دَ دې رواج شروع شوے وو، او دَ دغې بادشاه نوم "مظفّر الدين کوکري بن اِربَل" وو، المتوفى شپږ سوه ديرش (٦٣٠) ده، معنى پهٔ ٦٣٠ کښې وفات شوے دے، هغه دا بدعت شروع کړو، علماؤ ليکلي دي، ابن خلکان وائي:

**امام احمد بن محمد مصري مالکي ﷫ ليکلي دي**

"كَانَ مَلِكًا مُسْرِفًا يَأْمُرُ عُلَمَاءَ زَمَانِهِ أَنْ يَعْمَلُوْا بِاسْتِنْبَاطِهِمْ وَاجْتِهَادِهِ وَأَنْ لَّا يَتَّبِعُوْا لِمَذْهَبِ غَيْرِهِمْ حَتّٰى مَالَتْ إِلَيْهِ جَمَاعَةٌ مِّنَ الْعُلَمَاءِ".[1]

(1) انظر: "المنهاج الواضح" (162).

"دا ډیر مسرف او زیاتے کوونکے بادشاه وو، دَ خپلې زمانې علماء ته به ئې حکم کولو چې عمل به کوئ پخپل استنباط او اجتهاد باندې او دَ چا دَ مذهب تابعداري به نهٔ کوئ تردې پورې چې مائل شونهٔ ته یَو جماعت دَ علماؤ".

دا ډیر مسرف بادشاه وو، دَ خپلې زمانې مُلیان ئې راجمع کړل... دا یاد اوساتئ! پهٔ هر دور کښې او پهٔ هره زمانه کښې دوه قسمه علماء تیر شوي دي، یَو قسم هغهٔ خلق دي: چې هغوي خپل ځانونه پهٔ دین باندې ساتلي دي، دین ئې دَ خپل ځان تابع کړے دے، دین ئې دَ باشاهانو تابع کړے دے، خو چې څهٔ به بادشاهانو وئیل نو دوي به وئیل: "آو جي! دا هم پهٔ قرآن کښې راغلي دي، دا پهٔ حدیث کښې راغلي دي"، نو چې څهٔ به بادشاهانو وئیل نو دوي به دَ هغې دپاره دلائل کتل، لکه نن پهٔ دې دور کښې سوچ اوکړه چې حکومت یَوه خبره اوکړي او کوم تالي سټ مُلیان چې دې نو هغوي دَ هغې دپاره وجوهات کوري: "چې آو جي! فلانکي کتاب کښې راغلي دي"، نو همیشه دپاره داسې باطل پرست مُلیان راغلي دي، او بل طرف ته الله تعالی داسې علماء هم پیدا کړي دي، چې هغوي دَ الله دین نهٔ دے پریښودے.

**دَ امام مالک ﷺ حالت**

هغه امام مالک چې هغه له به ئې کوړه راخلاصوله، او پهٔ بازار کښې به ئې کرځولو او هغه به په آواز کولو: "مَنْ عَرَفَنِيْ فَقَدْ عَرَفَنِيْ، وَمَنْ لَمْ يَعْرِفْنِيْ فَإِنِّيْ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ".

"چې څوک ما پیژني نو هغه خو مې هسې هم پیژني، خو چې څوک مې نهٔ پیژني نو زهٔ مالک بن انس یم".

او بازار کښې به کرځیدو او بادشاه خلق مقرر کړي وو چې هغه له به ئې سزا ورکوله او هغه ته به ئې وئیل: "چې دا اووایه: چې پهٔ زوره طلاق واقع کیږي"، دا دومره ظالم بادشاه وو چې دَ چا ښځه به ئې خوښه شوه، هغه سړے به ئې رااوغوښتلو ورته به ئې وئیل: "چې شابه! دا طلاقه کړه چې زهٔ ئې پهٔ نکاح باندې واخلم"، پهٔ هغهٔ وخت کښې ډیرو مُلیانو فتوی ورکړه، چې دا جائز دي، امام مالک ﷺ به وئیل: "ناا دا نهٔ کیږي؛ ځکه ما وئیلي دي چې: طَلَاقُ الْمُكْرَهِ لَيْسَ بِشَيْءٍ"، "کوم سړي باندې چې زور اوشو او خلق پرې پهٔ زوره ښځه طلاقوي نو دا طلاق نهٔ واقع کیږي"، بادشاه به خلق راجمع کړل چې دهٔ ته سزا ورکوي، امام مالک ﷺ ته به ئې سزا ورکوله، او ورته به ئې دغه خبره کوله: "چې دا

اروایه: چې په زوره طلاق واقع کیږي او دا جائز دي"، امام مالک ؒ ئې قائل نهٔ کړو، دا یاد ساتئ! داسې علماء هم دي دنیا لیدلي دي چې دَ هغوي نه ئې غوَږې پریکړي دي، دغه شان په سپو به ئې دَ هغوي غوږې خوړلې لیکن حق ئې نهٔ دے پریښودے.

نو هغې مسرف بادشاهٔ درباریان مُلیان راجمع کړل او هغوي ته ئې اووئیل: "چې دَ دې دپاره څهٔ اوکړئ"، نو هغوي دَ دې عید میلاد النبي ﷺ بنیاد کیخودلو، او مستقل یَوه ډله ئې دې دپاره تیاره کړه چې دې له به ترویج ورکوي: چې آو جي! عید میلاد النبي ﷺ ډیر ښهٔ کار دے، بیا ئې دا عمل شروع کړو، دَ شپږ سوه څلور (٦٠٤) هجري نه دا عید میلاد النبي ﷺ شروع شوے دے...

**نن زمونږ په ملک او معاشره افسوس پکار دے!**

نن اوګوره! نو صحیح طریقه دَ ملک نه اوځي او حکومت هم دې عید میلاد النبي ﷺ ته ترویج ورکوي، او دا مناوئ، افسوس پکار دے چې کومې اسلامي طریقې وي دَ هغې دپاره یَو ورځ هم چُهټي اونهٔ کړه، کچرته دَ شیعه ګانو ماتم راشي او هغوي خپل ځان وهي، حالانکه دا طریقه بالکل دَ شریعت خلاف ده، نبي ﷺ منع کړې ده، چې تاسو به خپل غم نهٔ تازه کوئ، شیعه ګان هر کال خپل غم تازه کوي او یَواځې شیعه ګان نه بلکه سونیان هم ورسره غم تازه کوي، چې کله محرم راشي نو سونیان هم لګیا وي شربتونه تقسیمَوي او خوراکونه ورکوي، هغوي هم ګانې بجانې اوریدل پریږدي، حکومت هم پوره چهټي ورکړې ده وائي: "محرم دے"، ریډیو باندې هم توله ورځ او شپه ګانې بجانې نهٔ وي، صرف نعتونه پرې غږیږي، مونږ وایُو: "صحیح خبره ده ګانې بجانې اوریدل ښهٔ څیز نهٔ دے خو پکار دا ده چې حکومت ټول عمر دپاره په دې منکرات پابندئ اولګوي کنه، چې په ټي وي او ریډیو به ګانې بجانې نهٔ راځي او کهٔ ټول عمر پابندئ نهٔ لګوي نو دا درې ورځې صرف ولې پابندئ لګوئ"، دا خو دَ شیعه ګانو سره مشابهت دے او حدیث مبارکه کښې راځي: «مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ».(1)

"چا چې دَ کوم قوم سره ځان مشابهه کړو نو دے هم دَ هغوي نه دے"، نو دا دَ هغوي ملګرے دے قیامت کښې به هم دَ هغوي سره پاسي.

نو هغې بادشاه علماء راجمع کړل او هغوي دَ دې ایجاد اوکړو، په سن ٦٠٤ هجرئ کښې دَ دې

(1) أخرجه أبو داود في كتاب اللباس، باب في لبس الشهرة، برقم: (4031).

ایجاد شوے دے، دَ دهٔ حال ابن حجر عسقلاني ذکر کوي:

**حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله ليکلي دي**

دا بادشاه چې وو نو: "وكَانَ ظَاهِرِيُّ الْمَذْهَبِ، كَثِيْرَ الْوَقِيْعَةِ فِيْ الْأَئِمَّةِ وَفِيْ السَّلَفِ مِنَ الْعُلَمَاءِ، خَبِيْثَ اللِّسَانِ، أَحْمَقَ، شَدِيْدَ الْكِبْرِ، قَلِيْلَ النَّظَرِ فِيْ أُمُوْرِ الدِّيْنِ، مُتَهَاوِنًا".(1)

"دے ظاهري المذهب وو، دا داسې بادشاه وو چې نهايته ګستاخ وو، دَ ائمه کرامو په باره کښې ډيرې خرابې وينا والا وو، او په علماؤ محکښېنو کښې دے ډير پليتې ژبې والا وو، او دے ډير کم عقل او سخت متکبره وو او په امورو دَ دين کښې دے په هيڅ نهٔ پوهيدو، او په ديني کارونو کښې ډير سست بادشاه وو".

ليکن دا کار ئې شروع کړو، په دې به ئې ډيرې زياتې خرچې کولې، لکه اوګورها دَ دې دَ خرچې باره کښې په "دول الإسلام" کښې ليکلي دي:

"كَانَ يُنفِقُ كلَّ سَنَةٍ عَلى مَولِد النبي ﷺ لنَحوِ ثلاثِ مِائَةِ أَلفٍ".

"په هغه زمانه کښې يعني په ٦٠٤ هجرئ کښې به هغوي په عيد ميلاد النبي ﷺ باندې درې لاکهه روپئ خرچه کوله".

دَ مسلمانانو خزانې ئې تباه کړې، دَ مسلمانانو په پيسو به ئې عيد ميلاد النبي ﷺ کولو، هغه وخت کښې ئې پزې درې لاکهه روپئ خرچه کوله، اوس هم په دې باندې خرچې کيږي، دَ عوامو مسلمانانو مال ته تيلے وهي.

دا ياد اوساتئ! په دې باندې خرچې کول، دا بالکل بے بنياده دي، عيد ميلاد النبي ﷺ هيڅا نهٔ دے مناؤ کړے په دې تير شوو شپږ سوو کالو کښې، دوي اعتراض کښې وائي: "يَره جي! دا خو ابولهب مناؤ کړے وو؟".

**دَ ابولهب عيد ميلاد النبي ﷺ مناؤول**

آو! عيد ميلاد النبي ﷺ يَو کس مناؤ کړے وو، چې دَ هغهٔ نوم ابولهب وو، او دَ نبي ﷺ ترهٔ وو، هغه ابولهب چې ټول عمر دَ الله دَ پيغمبر ﷺ مخالف وو، علماء ذکر کوي: "چې ابولهب ته خبر شو چې نبي ﷺ پيدا شوے دے؛ ځکه دَ نبي ﷺ پلار وفات شوے وو، او هغه دَ نبي ﷺ دَ

(1) انظر: "لسان الميزان" لابن حجر العسقلاني: (296/4).

پيدائش نه مخکښې وفات وو، نو چې نبي ﷺ پيدا کيدو نو پلار ئې مړ وو، نو چې نبي ﷺ پيدا شو او ابولهب ته پته اولګيده نو دَ دهٔ يَوه وينځه وه هغه ئې پهٔ خوشحالئ کښې آزاده کړه"، خو دې ورته هيڅ فائده ورنهٔ کړه چې ايمان پکښې نهٔ وو، الله رب العزة وائي: ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ * مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ﴾.[1]

"هلاک دې شي دواړه لاسونه دَ ابولهب او تباه شو، هيڅ فائده ورنهٔ کړه هغه ته مال دَ هغهٔ او نهٔ اولاد".

نهٔ مال دَ اللهِ دَ عذاب نه بچ کړو او نهٔ اولاد دَ الله دَ عذاب نه دے بچ کړو، نو صرف دغې ابولهب دَ نبي ﷺ پهٔ پيدائش باندې عيد مناؤ کړے وو، وينځه ئې آزاده کړې وه، يعني ابو لهب مستقل عيد ميلاد النبي ﷺ هر کال نهٔ دے مناؤ کړے، صرف ابتداء کښې چې خبر شو دَ پيدائش نه نو وينځه ئې آزاده کړې، دَ هغې نه هم عيد ميلاد النبي ﷺ دَ بدعتيانو نهٔ ثابتيږي؛ ځکه چې هغه خو صرف زيري کښې آزاده کړې وه، زيرے جدا څيز دے او عيد ميلاد النبي ﷺ جدا څيز دے.

نور هيڅ چا هم دا کار نهٔ دے کړے، دَ دې وجې نه علماء کرامو ذکر کړي، چې دا عيد ميلاد النبي ﷺ ډير لوئي بدعت دے، لکه اوګوره! پهٔ "المدخل" کښې ابن الحاج رحمه الله ليکلي دي:

**ابن الحاج رحمه الله ليکلي دي**

"وَمِنْ جُمْلَةِ مَا أَحْدَثُوهُ مِنَ الْبِدَعِ مَعَ اعْتِقَادِهِمْ أَنَّ ذَلِكَ مِنْ أَكْبَرِ الْعِبَادَاتِ وَإِظْهَارِ الشَّعَائِرِ مَا يَفْعَلُونَهُ فِي شَهْرِ رَبِيعِ الْأَوَّلِ مِنْ مَوْلِدٍ وَقَدْ احْتَوَى عَلَى بِدَعٍ وَمُحَرَّمَاتٍ جُمْلَةٍ. فَمِنْ ذَلِكَ اسْتِعْمَالُهُمْ الْمَغَانِي".[2]

"دَ هغې نورو بدعاتو نه يَو بدعات دا هم دے، چې دې خلقو دَ ځان نه ايجاد کړے دے او دَ دوي پهٔ خيال کښې دا دَ تمامو عباداتو نه لوئي عبادت دے، او پهٔ دې کښې اظهار دَ شعائرو دَ اسلام دے، دا هغه بدعت دے چې دوي ئې دَ ربيع الاول پهٔ مياشت کښې کوي پهٔ پيدائش دَ پيغمبر ﷺ باندې، پهٔ داسې حال کښې چې دا پهٔ ډيرو بدعاتو او محرماتو باندې مشتمل دے، لکه بعضې دَ دې نه استعمال دَ دوي دے اسبابو دَ ګانو بجانو لره، تنګ تکور...".

---

(1) [سورة المسد].

(2) انظر: "المدخل" لابن الحاج (2/2).

نو دغه محرمات او مفاسد وبدعات چې دے ذکر کړي نو بیا وائي: کۀ دا محرمات پۀ دې میلاد شریف کښې وي هم نه، خو بیا هم دا بدعت دے؛ ځکه چې: "أَنَّ ذٰلِكَ زِيَادَةٌ فِي الدِّينِ وَلَيْسَ مِنْ عَمَلِ السَّلَفِ الْمَاضِينَ وَاتِّبَاعُ السَّلَفِ أَوْلَى بَلْ أَوْجَبُ مِنْ أَنْ يَزِيدَ نِيَّةً مُخَالِفَةً لِمَا كَانُوا عَلَيْهِ لِأَنَّهُمْ أَشَدُّ النَّاسِ اتِّبَاعًا لِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ ﷺ وَتَعْظِيمًا لَهُ وَلِسُنَّتِهِ ﷺ".[1]

"دا زیادت دے پۀ دین کښې او بل دا چې دا دَ مخکښې پخوا تیر شوو سلفو طریقه کار هم نۀ دے، نو چې سلفو نۀ دے کړے او اتباع دَ سلفو اولی او بهتره ده بلکه دَ هغوي اتباع او تابعداري واجبه ده دَ دې نه چې یَو تن دې زیاتې نیت کوي داسې نیت چې مخالفت کوي پۀ هغې سره دَ سلفو؛ ځکه چې دغه سلف ډیر سخت وو پۀ تابعدارئ دَ سنتو دَ نبي ﷺ او دَ نبي ﷺ ئې ډیر تعظیم کولو او دَ سنت دَ نبي ﷺ به ئې ډیر تعظیم کولو (نو هغوي ړسې روانیدل پکار دي، چې هغوي دا کار نۀ دے کړے نو مونږ ئې څۀ دپاره کوو؟)".

**علامه عبد الرحمن المغربي ؒ لیکلي دي**

دَ دۀ فتاوٰی ده، هغې کښې وائي: "إِنَّ عَمَلَ الْمَوْلِدِ بِدْعَةٌ؛ لِأَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَلَا الْخُلَفَاءُ وَلَا الْأَئِمَّةُ".

"عید میلاد النبي ﷺ مناوول بدعت دے؛ ځکه دَ دې حکم نۀ نبي ﷺ کړے او نۀ خلفاؤ او نۀ ائمه کرامو".

**علامهِ احمد بن محمد المصري ؒ لیکلي دي**

"قَدِ اتَّفَقَ عُلَمَاءُ مَذَاهِبِ الْأَرْبَعَةِ بِذَمِّ هٰذَا الْعَمَلِ".

"دَ خلورو وارو مذهبونو علماؤ اتفاق دے پۀ بد والي دَ دې کار(دَ عید میلاد النبي ﷺ باندې)".

علماء دیوبند هم لیکلي دي، چې عید میلاد النبي ﷺ بدعت دے، دَ دې نه ځان ساتل پکار دي:

**مولانا اشرف علي تها نوي ؒ لیکلي دي**

وائي: "دا بدعت دے"، دا دَ علماء دیوبند لوئي شخصیت تیر شوے دے.

**مولانا رشید احمد گنگوهي ؒ لیکلي دي**

وائي: "دا بدعت دے"، لوئي لوئي علماؤ لیکلي دي: چې دا بدعت دے او دَ دې نه ځان ساتل

(1) انظر: "المدخل" لابن الحاج (10/2).

پکار دي، نن افسوس دے پۀ حال دَ هغه چا باندې چې ځان ته ديوبنديان وائي او بيا هم هغوي عيد ميلاد النبي ﷺ مناؤوئ.

**مولانا محمد يوسف لدهيانوي رحمه الله ليکلي دي**

چې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پۀ پيدائش کښې خو اختلاف دے، دغه شان کفايت المفتي هم ليکلي دي، پۀ مياشت دَ ربيع الاول خو اتفاق دے چې پيغمبر ﷺ پۀ ربيع الاول کښې پيدا شوے دے او ورځ ئې هم معلومه ده چې دَ کل پۀ ورځ پيدا شوے دے، خو دَ تاريخ پته ئې نۀ لګي چې دَ ربيع الاول پۀ کوم تاريخ پيدا شوے دے؟ نو دې باره کښې ډير غټ اختلاف راغلے دے، څوک وائي: "دَ الله پيغمبر ﷺ پۀ دريم (۳) ربيع الاول پيدا شوے دے"، څوک وائي: "پيغمبر ﷺ پۀ دولسم (۱۲) ربيع الاول پيدا شوے دے"، څوک وائي: "پيغمبر ﷺ پۀ دويم (۲) ربيع الاول پيدا شوے دے"، څوک وائي: "پيغمبر ﷺ پۀ اتم (۸) ربيع الاول پيدا شوے دے"، څوک وائي: "پيغمبر ﷺ پۀ نهم (۹) ربيع الاول پيدا شوے دے".

**مفتي کفايت الله رحمه الله ليکلي دي**

دا دَ علماء ديوبند لوئي عالم دے، دے خپل کتاب کښې ليکي: "دَ صحت پۀ لحاظ سره دا قول صحيح دے چې نبي ﷺ پۀ نهم (۹) ربيع الاول پيدا شوے دے او دَ باره (۱۲) ربيع الاول قول صحيح نۀ دے، اګر چې دا دَ باره ربيع الاول قول پۀ عوامو کښې مشهور دے".[1]

**دَ نبي ﷺ وفات**

نبي ﷺ کله وفات شوے دے؟ نو مولانا يوسف لدهيانوي رحمه الله پۀ "*اختلاف امت اور صراط مستقيم*" کښې ليکلي دي: "وفات دَ نبي ﷺ پۀ باره ربيع الاول باندې شوے دے"، نو اوس سوچ اوکړۀ: پيدائش کښې اختلاف وو، دَ صحيح قول مطابق نهم ربيع الاول وو، او دَ وفات باره کښې دَ نبي ﷺ صحيح قول دا دے چې نبي ﷺ پۀ باره ربيع الاول وفات دے، نو تپوس کول غواړي دَ بريليانو نه او دَ هغې ديوبنديانو نه چې ځان ته نسبت دَ ديوبند کوي او عيد ميلاد النبي مناوئ: "چې علماء ديوبند خو دا نۀ دے مناؤ کړے او تۀ ئې مناوهې، نو دا تپوس درنه کوم چې دا تۀ پۀ کومه خوشحالئ مناوهې؟ دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پۀ پيدائش او کۀ دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پۀ وفات باندې دا مناوهې؟"، پۀ باره ربيع الاول باندې خو نبي ﷺ وفات شوے دے، خو معلوميږي دا چې تۀ

(1) انظر: "کفايت المفتي" (165/1).

خوشحاله ئې پهٔ دې باندې، چې شکر دے دَ الله پیغمبر ﷺ دَ دنیا نه تلے دے (العیاذ بالله!)، ځکه پهٔ باره ربیع الاول تهٔ عید میلاد النبي مناوهې!.

عید میلاد النبي مناؤول پهٔ دین کښې نشته دے، کچرې وے نو دَ الله پیغمبر ﷺ به مناؤ کړے وے او کچرې وے علماؤ به وئیلے وے، بالکل چې دا مناؤ نهٔ کړئ او پهٔ دې کښې دَ نورو خلقو سره شرکت هم اونهٔ کړئ.

الحمد لله! زمونږ علاقې خو دَ دې خبرو نه خالي دي، خو کهٔ ښاریو کښې چا عید میلاد النبي مناؤ کړے وي نو آئنده دپاره دې دَ دې دَ مناؤولو نه توبه اوباسي، ډیر مُلیان چې هغوي پهٔ دې نزدې علاقو کښې دَ دې دپاره کانفرنس جوړ کړي، دَ عید میلاد النبي نوم ئې وو، مخکښې دا ډیر شے وو خو عوام خبر نهٔ وو، دا عوام چې کوم مولود شریف یادَوي، دَ دې نه خبر یۍ چې دا مولود شریف څهٔ ته وائي؟ هسې راجمع کیدلو ته خو اجتماع وائي، پخوا به نور اجتماعات نهٔ وو پهٔ عید میلاد النبي به هر ځائے کښې اجتماع وه، نو هغې له ئې مولود شریف نوم کیخودو، نن خو عوام مولود شریف نهٔ کوي، عید میلاد النبي خو نهٔ مناووئ خو چې کوم ځائے کښې جومات کښې بیان کیږي وائي: "مولود شریف دے"، نا نا! بلکه اجتماع تهٔ استعمالول پکار دي، نن اجتماع ده، خو دا دوي چې به مولود شریف وئیلو نو دا به ئې عید میلاد النبي مناؤولو.

دا عید میلاد النبي بدعت دے، نور کتابونه خو پریږدوه، دَ اکوړه خټک دَ مدرسې فتاوی ده، "فتاوی حقانیه" چې کوم خلق اختلاف کوي نو هغوي وائي: "دَ اکوړي نه به فتوی رااوغواړو"، ورته وایه: دَ اکوړي نه فتوی رااوغواړه! او تپوس اوکړه: "چې عید میلاد النبي مناؤول جائز دي؟"، پهٔ "فتاوی حقانیه" کښې ئې ډیر تفصیل کړے دے، چې: "عید میلاد النبي اشد ترین بدعت دے"، الله تعالی دې مونږ او تاسو دَ بدعاتو نه پهٔ آمان کړي (آمین!).

یاد ساتئ! هغه عمل چې الله تعالی نهٔ دے وئیلے او چې دَ الله پیغمبر ﷺ نهٔ دے وئیلے او نهٔ دَ الله پیغمبر کړے، نو کهٔ هغهٔ ډیر ښهٔ عمل ولې نهٔ وي خو هغه عمل دَ الله تعالی پهٔ دربار کښې نهٔ قبلیږي، بلکه اُلټه مونږ او تاسو ته پهٔ هغې باندې ګناه میلاویږي، نو عوام نهٔ پوهیږي کله کله وائي: "دې کښې څهٔ ګناه ده؟ خیر دے کوي دې کنه"، ورته وایه: تا نه زهٔ تپوس کوم: مونځ دے، علماء ذکر کوي چې دَ مازیګر نه پس نفل مونځ نهٔ کیږي، او دَ سحر مونځ نه روستو دَ نمر ختو پورې مونځ نهٔ کیږي؛ ځکه دَ الله تعالی پیغمبر ﷺ منع کړې ده، چې مونږ او تاسو نفل کوو نو پهٔ مونځ خو ثواب میلاویږي، کهٔ دا مونږ پهٔ دغه مکروهه وخت کښې کوو نو ګناه ګاریږو به کنه؟ نو

پهٔ دغه وخت کښې نفل کولو باندې به ګناه ګار کيږي؛ ځکه نفل کول ثواب دے، خو دلته کښې پرې اُلته ګناه ميلاويږي؛ وجه دا ده: چې دلته کښې دَ الله دَ پيغمبر ﷺ مخالفت راځي.

## پهٔ عيدګاه کښې نفل کول

دغه وجه ده؛ چې يَو حديث مبارکه کښې راځي: "يو سړي دَ اختر ورځ عيدګاه ته راغلے او دَ اختر دَ مونځ نه مخکښې ئې نفل کول سيدنا علي ﷺ هغه دَ مخ نه رااونيولو او ورته وائي: کښينه! نفل مهٔ کوه، هغه ورته وائي: زهٔ مونځ کوم، پهٔ مونځ به هم ماله الله عذاب راکوي؟ (څومره عجيبه خبره ئې کړې ده، وائي: زهٔ مونځ کوم نو پهٔ مونځ به ما له الله تعالی سزا راکوي)، نو علي ﷺ ورته اووئيل: دا مونځ نهٔ دے؛ ځکه کهٔ دا مونځ وے نو ستا نه مخکښې به دَ الله پيغمبر ﷺ کړے وے، تا له الله پهٔ مونځ سزا نهٔ درکوي بلکه الله تعالی تا لره سزا پهٔ مخالفت دَ خپل پيغمبر ﷺ درکوي".

## دَ سعيد بن مسيب ؒ واقعه

دغه شان واقعه دَ سعيد بن مسيب ؒ هم راځي: "يَو ځل يَو سړي دَ مازيګرې مونځ نه روستو دوه رکعته نفل کول، هغه منع کولو، چې دَ مازيګر مونځ نه روستو به نفل نهٔ کوې، هغه ورته وائي: زهٔ به مونځ هم کوم او الله تعالی به پرې ما له سزا هم راکوي؟ هغه ورته وائي: الله تعالی پهٔ مونځ سزا نهٔ درکوي، خو تا لره به سزا پهٔ خلاف دَ پيغمبر ﷺ درګوي چې تا ولې زما دَ پيغمبر ﷺ خلاف کړے وو؟".

نو ياد ساتئ! دَ خلقو دَ "ها" سره خپله "ها" مهٔ ميلاوهئ، کوم شے چې پهٔ دين کښې وي هغه کوئ، کوم شے چې پهٔ دين کښې نهٔ وي نو هغه مهٔ کوئ، او کوم سړے چې صفا خبره کوي دَ الله تعالی دَ رضاء دپاره دَ هغهٔ تائيد خو کوئ کنه! پهٔ دې عوامو کښې دا غضب دے چې تهٔ به ځان له زړهٔ سترے کړې، کهينته، دوه کهينته بيان به اوکړې، خو چې دوي کله دَ جومات نه بهر شي نو دوي بيا پهٔ هغې خپلو بدعاتو کښې مبتلا شي، نو بيا دا علماء دَ څهٔ دپاره لګيا دي؟ چې علماء درته وائي: "دا شے جائز دے"، هغهٔ کوئ، او چې وائي: "دا شے ناجائز دے"، نو دَ هغې نه ځان ساتئ، هغه مهٔ کوئ؛ ځکه دَ دين دَ کار عوامو ته پته نشته دے، علماؤ ته دَ دې علم او پوهه ده.

الله رب العزة دې تر مرګه پورې مونږ پهٔ سنتو دَ نبي ﷺ باندې ټينګ کړي، الله رب العزة دې زمونږ نه تر مرګه پورې دَ خپل دين خدمت واخلي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم اللہ الرحمن الرحیم

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا

(سورة المائدة: 3)

# موضوع

# عُرس

**بتاریخ: 2005-12-30**

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامہ عبد الحق ربّانی حفظہ اللہ

# عُرس

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾.(1)

وقال الله تبارك وتعالى في مقام آخر: ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾.(2)

وقال النبي ﷺ: «لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ: الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، وَمَسْجِدِ الرَّسُولِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَسْجِدِ الْأَقْصَى».(3)

قابلِ قدر حاضرينو، عزت مندو مسلمانانو رونړوا تيره جُمعه دَ بعضې بدعاتو بيان شوے وو، چې بعضې خلق ذکر بالجهر کوي، هغه هم يَو بدعت وو، بعضې خلق نور بدعات کوي، دَ هغې دپاره اجتماعات کوي، په هغې کښې خلق په ځان باندې وجد راولي، دَ هغې ردّ شوے وو.

## دَهغې بدعاتو نه يَو بل بدعت

اوس بعضې خلق دَ ذکر سره نور بدعات هم کوي، چې هغې ته په نن دور کښې "عُرس"

(1) [سورة المائدة: 3].

(2) [سورة النساء: 115].

(3) أخرجه البخاري في كتاب فضل الصلاة في مسجد مكة والمدينة، باب فضل الصلاة في مسجد مكة والمدينة، برقم: (1189)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الحج، باب لا تشد الرحال إلا إلى ثلثة مساجد، برقم: (1397).

وائي، دا هم يَو عظيم الشان بدعت دے او پۀ دې ملک کښې کيږي او ډير خلق هغې ته دَ ثواب پۀ نيت باندې ځان حاضروي او ډير خلق پۀ هغې باندې ډېر غټ غټ تاوانونه کوي، ډيرې غټې پوسټرې چهاپ کيږي او ډير لوئې لوئې خرچې پکښې کيږي، او هغې ته "عُرس مبارک" وائي.

**عرس څۀ ته وائي؟**

عرس وائي څۀ ته؟ او دا عُرس شرعًا څنګه دے؟ جائز دے کۀ نا جائز دے؟ نو اصل مسئله دا ده: چې دَ نيکانو بنديانو سره صحبت کول او هغوي سره محبت کول دَ الله دَ رضاء دپاره، حقيقت دا دے: چې دَ لوئې اجر او ثواب باعث دے؛ دَ ايمانِ کامل نخښه دا ده: "اَلْحُبُّ فِي اللهِ، وَالْبُغْضُ فِي اللهِ".

"مينه چې چا سره کوې نو دَ الله تعالى دَ رضاء دپاره او بغض چې چا سره کوې نو دا هم دَ الله تعالى دَ رضاء دپاره".

دا دَ ايمانِ کامل نخښه ده، اوس دا چې دا محبت به څنګه کوي؟ نو دَ هغې طريقه پۀ شريعت کښې شته کنه، ايصال ثواب کوې، دَ هغې پۀ روح باندې هغوي ته څۀ خيز بخښې، دَ هغې طريقې شريعت کښې شته کنه، نفلي خيرات کوه، نفلي عبادت کوه او تلاوت کوه بغير دَ ايامو دَ تخصيص نه او هغوي ته ئې ثواب بخښه.

**دَ احنافو مسلک**

دَ احنافو علماؤ دا مسلک دے: "چې دَ ژوندي انسان ثواب چې هر څوک دے چې مړي ته ئې بخښي نو هغۀ ته رسيږي"، نو چې تۀ دَ هغه پۀ نوم باندې خيرات کوې، دَ نوم مطلب دا چې ثواب دَ دې خيرات دَ هغه پۀ نوم بخښې نو هغه ته اجر ميلاويږي، تخصيص دَ ايامو (ورځې خاص کول)، تخصيص دَ اوقاتو (وخت خاص کول)، يا تخصيص دَ مکان (ځائے خاص کول) دَ دې ثبوت پۀ شريعت کښې نشته دے، چې پۀ کومو ورځو کښې خيرات کوي، کوم وخت کښې ئې کوې او پۀ کوم ځائے کښې ئې چې کوې نو جائز دے خو چې دَ شريعت مطابق وي، اجر ئې مرده ته ميلاويږي، او دارنګې دَ هغوي دپاره دعاګانې کول دَ دې ثواب هم هغوي ته رسي.

**پۀ دې کال کښې يَو ځل راجمع کيدل**

اوس پاتې شوه دا خبره چې دَ لرې لرې ځائے نه راتلل او دَ يَو نيک سړي پۀ قبر راجمع کيدل او

دې ته ثواب وئيل او وائي: "چې مونږ دَ هغه په روح دا اجتماع کوو چې هغه ته ئې ثواب اورَسي"، او دغه قبر خوا کښې بيا دَ هغهٔ دپاره دعاءګاني کول دَ دې شريعت کښې څهٔ ثبوت دے؟

**مسئله دَ شدُّ الرحال**

دا ياد ساتئ! پهٔ شريعت کښې داسې مقبرو ته راجمع کيدل يا دَ يَو سړي قبر ته راجمع کيدل پهٔ يَو خاص ورځ باندې او پهٔ يَو خاص هيئت سره دا پهٔ شريعت کښې نشته، بلکه دا بدعت دے او ګمراهي ده؛ ځکه صحيح حديث کښې راځي، نبي ﷺ فرمائي: «لاَ تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاَثَةِ مَسَاجِدَ: مَسْجِدِ الحَرَامِ، وَمَسْجِدِ الأَقْصَى، وَمَسْجِدِي هَذَا».(1)

"نبي ﷺ فرمائي: چې بغير دَ دې دريو جوماتونو نه نورو جوماتونو ته دَ خير او برکت او دَ ثواب پهٔ نيت باندې تلل مهٔ کوئ: يَو مسجد حرام، دويم مسجد الاقصٰی او دريم زما دا جومات (چې مسجد نبوي ورته وئيلے کيږي)".

نو دَ دې دريو جوماتونو نه نورو ځايونو ته دَ خير او برکت او دَ ثواب پهٔ نيت تلل، دَ هغې زيارت کول دا پهٔ شريعت کښې نشته دے، بلکه دا بدعت دے، علماءِ کرام مختلف دي، بعضې وائي: نورو ځايونو ته هم دَ ثواب پهٔ نيت باندې تلے شي او زيارت ئې دَ ثواب پهٔ نيت کولے شي، خو ليکن دَ اکثرو علماؤ رائے دا ده، محقّقين علماءِ کرام ذکر کوي: "چې دَ ثواب پهٔ نيت باندې دَ دې دريو ځايونو نه ما سيوا بل ځائے له به نهٔ ځې".

بعضې خلق وائي: "دا خو دَ جومات سره خاص دي، چې جومات ته ځې نو دا درې جوماتونو کښې ثواب ډير دے او دا نور جوماتونه پهٔ ثواب کښې ټول يَو برابر دي"، خو دا خبره صحيح نهٔ ده؛ ځکه حديث مبارکه کښې راځي.

**واقعه دَ ابوهريره ﷺ دَ کوه طور**

"حضرت ابوهريره ﷺ يَو پيره کوهِ طور ته تلے وو؛ دې غرض دپاره تلے وو، چې لاړ شمه او هلته يَو دوه رکعته نفل اوکړم؛ ځکه دا مبارک ځائے دے، الله تعالی پهٔ قرآنِ کريم کښې دَ "طور" بيان کوي: ﴿وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ* وَطُورِ سِينِينَ﴾،(2) يا لکه ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾،(1) هغه ځائے چې

(1) أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب صوم يوم النحر، برقم: (1995)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الحج، باب لا تشد الرحال إلا إلى ثلثة مساجد، برقم: (1397).

(2) [سورة التين: 2].

موسی علیه السلام ته پکښې الله تعالی وحي کړې وه، هغه مبارک ځائے دے، دَ هغې برکت والے دَ قرآن او سنت نه ثابت دے، لیکن ابوهریره رضی الله عنه تلے وو، هغهٔ ځائے کښې ئې دوه رکعته نفل اوکړل او واپس راغلے، یَو صحابي دے ابوبصرة الغفاري رضی الله عنه دے ورسره میلاو شو، ورته وائي: ابوهریره! چرته تلے وې؟ دے ورته وائي: تلے ووم کوهِ طور ته او دوه رکعته نفل مې اوکړل او واپس راغلم، ابوبصرة رضی الله عنه ورته وائي: کچرې.تهٔ دَ دې نه مخکښې ما سره میلاؤ شوے وے او تا ماته وئیلے وے چې زهٔ طور ته ځم نو تهٔ به زما نه هډو تلے نهٔ وې، او ورته وائي: دا ځکه چې: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ: «لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ: الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، وَالْمَسْجِدِ الْأَقْصَى، وَمَسْجِدِي».(2)

"ما دَ نبي ﷺ نه اوریدلي دي: چې تاسو دَ سفر پهٔ خیال باندي مهٔ ځئ، خپل سامان دَ سفر دپاره مهٔ تړئ سیوا دَ دریو ځایونو نه (سفر چې دَ ثواب دپاره کوي نو دریو ځایونو ته لاړشه) یَو مسجدِ نبوي، دویم مسجد اقصی او دریم مسجد حرام".

**نور جائز سفرونه**

نو دَ دې دریو جوماتونونه ما سیوا دَ خیر او برکت دپاره بل ځائے ته سفر نشته دے، ها علماء ذکر کوي: "یَو سفر شته دے، چې دَ تجارت دپاره سفر کوې نو دا جائز دے"؛ دلته نه سعودي ته ځې، دوبئ ته ځې یا امریکې ته ځې هر خوا چې ځې نو چې ناجائز کار پکښې نهٔ کوې نو دا سفر جائز دے، یا سفر کول دَ علم دپاره دي، یَو کلے پریږدې او بل ځائے ته ځې دَ علم دپاره؛ ځکه هلته کښې لوئي لوئي علماء موجود دي، لوئي لوئي مدارس موجود دي، هلته کښې خلق علم حاصلوي، نو هلته کښې دَ علم حاصلولو دپاره لاړشه، نو سفر دَ تجارت دپاره او سفر دَ علم دَ حصول دپاره او نورو دنیاوي اغراضو دپاره سفر جائز دے خو دَ دې دپاره سفر کول چې فلانکي ځائے ته ځم ماته به ثواب میلاو شي نو دَ ثواب پهٔ نیت سفر کول دَ دې دریو ځایونو نه سیوا جائز نهٔ دي؛ ځکه کوهِ طور مبارک ځائے دے خو ابوبصره رضی الله عنه ابوهریره رضی الله عنه ته وائي: "کهٔ زهٔ خبر وے نو تهٔ به رانه تلے نهٔ وې".

**شاه ولي الله دهلوي رحمه الله لیکلي دي**

پهٔ دې وجې شاه ولي الله دهلوي رحمه الله پهٔ "حجة الله البالغه" کښې لیکلي دي، دا شاه ولي الله

(1) [سورة البقرة: 63].

(2) أخرجه أحمد في "مسنده" في الملحق المستدرك من مسند الأنصار بقية خامس عشر الأنصار، حديث أبي بصرة الغفاري، برقم: (27230).

دهلوي ﷫ هغه شخصیت دے، چې دَ تمام علماءِ هند استاذ دے، دَ دې ټولو علماؤ سند پهٔ هغه راجع کیږي، څومره محدثین چې دي نو دَ هغوي پهٔ اساتذؤ کښې شاه ولي الله دهلوي ﷫ خامخه وي، نو شاه ولي الله دهلوي ﷫ دَ دې «لاَ تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاَثَةِ مَسَاجِدَ...»[1] حدیث باره کښې فرمائي: "كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَقْصِدُوْنَ مَوَاضِعَ مُعَظَّمَةٍ بِزَعْمِهِمْ يَزُوْرُوْنَهَا، وَيَتَبَرَّكُوْنَ بِهَا، وَفِيْهِ مِنَ التَّحْرِيْفِ وَالْفَسَادِ مَا لاَ يَخْفَى، فَسَدَّ النَّبِيُّ ﷺ الْفَسَادَ لِئَلاَّ يَلْتَحِقَ غَيْرُ الشَّعَائِرِ بِالشَّعَائِرِ، وَلِئَلاَّ يَصِيْرَ ذَرِيعَةً لِعِبَادَةِ غَيْرِ اللهِ، وَالْحَقُّ عِنْدِيْ أَنَّ الْقَبْرَ وَمَحَلَّ عِبَادَةِ وَلِيٍّ مِّنْ أَوْلِيَاءِ اللهِ وَالطُّوْرَ كُلُّ ذٰلِكَ سَوَاءٌ فِي النَّهْيِ وَاللهُ أَعْلَمُ".[2]

"جاهلیت والا خلق چې وو نو هغوي به عظیم، اوچت او دَ لوئي، لوئي ځایونو دپاره سفر کولو کوم چې به دَ هغوي زمانه کښې وو، پهٔ دې خیال باندې چې دَ دې ملاقات کوو او دوي به تبرُّک حاصلوو دَ هغې نه، او پهٔ دې کښې دومره تحریف او فساد دے چې هغه پهٔ یَو عقلمند انسان باندې پټ نهٔ دے نو نبي ﷺ دغه فساد او دغه خبره بنده کړه (چې دَ دې درېو ځایونو نه علاوه به نورو ځایونو ته دَ تبرک او دَ ثواب پهٔ نیت به نهٔ ځي)؛ دې دپاره چې دَ الله دَ دین مراکز او شعائر دَ نورو ځایونو سره یَو ځائے نشي، او دې دپاره چې دې نورو ځایونو ته تلل دا دَ عبادت دَ غیر الله ذریعه جوړه نشي (څکه بیا به خلق دَ غیر الله عبادت شروع کړي، او بیا آخر کښې ډیره خُکلې او قیمتي خبره کوي)، او زما پهٔ نزد حقه خبره دا ده (دا شاه ولي الله ﷫ فرمائي): چې قبر او دَ یَو نیک انسان دَ الله تعالی دَ اولیاؤ نه، دَ هغه دَ عبادت ځائے (چې هغه کوم ځائے کښې عبادت کړے وو) او کوهِ طور دا ټول برابر دي پهٔ حکم دَ منع کښې برابر دي (نو قبر له به پهٔ دې نیت نهٔ ځي چې هلته کښې ثواب راته میلاویږي، یا دَ یَو ولي دَ عبادت ځائے شو یا کوهِ طور شو نو پهٔ دې نیت به ورله نهٔ ځي؛ څکه دا ټول پهٔ منع کښې برابر یَو شان دي)".

نو علماء ذکر کوي: "چې دَ لرې لرې ځائے نه سفر کول پهٔ نیت دَ ثواب بغیر دَ دې درېو ځایونو نه نشته دے"، لیکن نن اوګوره! نو دَ څومره لرې لرې نه به دَ عرس دپاره راروان وي

(1) أخرجه البخاري في كتاب الصوم، باب صوم يوم النحر، برقم: (1995)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الحج، باب لا تشد الرحال إلا إلى ثلثة مساجد، برقم: (1397).

(2) انظر: "حجة الله البالغة" للشاه ولي الله الدهلوي: (408/1).

او ګاډي به ئې پکښې بوکنګ کړي وي، او هغې له به ځان رسَوي نو دا مال هم بے ځایه لګیږي او دا وخت هم بے ځایه استعمالیږي بلکه ګناه اوشوه او ثواب ئې اونشو؛ ځکه: «لاَ تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاَثَةِ مَسَاجِدَ...».

**دَ علامه شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله قول**

شیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله پهٔ "اقتضاء الصراط المستقیم" کښې لیکلي دي: "وَأَمَّا السَّفَرُ لِزِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَبِدْعَةٌ مَّمْنُوْعَةٌ لِّمَا جَاءَ فِيْ الْحَدِيْثِ: «لاَ تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاَثَةِ مَسَاجِدَ...»".[1]

"هر چې سفر کول دي دَ قبرونو دَ زیارت دپاره نو بدعت منع کړے شوے دے؛ دَ وجې دَ هغه حدیث نه چې نبي ﷺ فرمائي: «لاَ تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاَثَةِ مَسَاجِدَ...»".

**کوم زیارة القبور چې جائز دے دَ هغې بیان**

نو دا مخکښې چې بیان اوشو دا هغه بدعت دے چې نبي ﷺ دَ هغې نه منع کړې ده؛ ځکه نبي ﷺ فرمائیلي دي: "چې دَ دې درېو جوماتونو نه علاوه به بل ځائے ته سفر نهٔ کوې..."، اوس باتي شوه دا خبره چې حدیث پاک کښې خو دا راځي، چې نبي ﷺ فرمائیلي وو: «كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ، فَزُورُوهَا؛ فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا، وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ»،[2] "اے زما صحابؤ! تاسو ما دَ قبرونو دَ زیارت نه منع کړي وئ اوس دَ قبرونو زیارت ته ځئ، دَ قبرونو ملاقات کوئ؛ ځکه دَ دې پهٔ وجه دَ دنیا سره محبت کمیږي او آخرت سرې ته یادیږي"، چې سړے ورشي او دغې قبر ته اوګوري، او دَ قبر والا حال اوګوري، نو دَ هغهٔ زړهٔ کښې دا راشي چې دغسې حال پهٔ ما باندې هم راروان دے، نو دَ دغې قبرونو دَ ملاقات اجازت شته دے.

**میله پهٔ قبر باندې جوړول منع دي**

خو دا کوم قبرونه یادَوي، نو هغه قبرونه یادَوي چې تهٔ پهٔ کوم کلي کښې اوسیږې او خوا کښې مقبره ده، دا نهٔ چې کني تهٔ به دلته نه کاکا صاحب له ځې هلته به درته عبرت حاصلیږي او دلته دَ کلي مقبره کښې به درته عبرت نهٔ حاصلیږي، تهٔ به یَو بل ځائے ته ځې او پهٔ قبر باندې به میله کوې نو عبرت به درته حاصلیږي او بل ځائے به نهٔ حاصلیږي، دا یَو قبر خاص کول او هغې له تلل دا منع دي.

(1) انظر: "اقتضاء الصراط المستقیم" (158).
(2) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، باب ماجاء في زيارة القبور، برقم: (1571).

نبي ﷺ به بڅپله کله کله جنت البقيع ته تلو، دَ مور قبر له څه، دَ پلار قبر له څه، دَ عامو مسلمانانو پهٔ مقبرې باندې تيرېدې هغوي دپاره دعاګانې غواړه او ځان له مرګ مخې ته کوه، خو دا نشته چې يَو قبر خاص کړه چې دغې خوا ته تلل ډير زيات ثواب دے، او نورو کښې دومره ثواب نشته دے، نو دا پهٔ يَو خاص قبر راجمع کيدل نشته، چې ګڼي تهٔ پهٔ قبرونو راجمع کيږه او اجتماعات کوه.

بهر حال مقصد مې دا دے: چې دا عرس کول څنګه دي؟ نو حديث کښې خو راځي، نبي ﷺ فرمائي: «وَلَا تَجْعَلُوا قَبْرِي عِيدًا».(1)

"اے زما صحابوٴ! زما دَ قبر نه ميله ګاه مهٔ جوړوئ".

زما پهٔ قبر باندې ميلې مهٔ کوئ، زما پهٔ قبر باندې مهٔ راغونډيږئ، نو چې دَ پيغمبر ﷺ پهٔ قبر باندې ميلې کول منع دي نو دَ الله پيغمبر ﷺ نه بِل څوک اوچت کيدے شي، چې دَ هغهٔ پهٔ قبر دې ميله ثواب وي؟

**عيد څهٔ ته وائي؟**

دَ دې "عيد" علماء دوه معاني ذکر کوي:

(۱) دَ دې يَو مطلب علماء دا ذکر کوي: طيبي ؒ ذکر کوي: "لَا تَجْتَمِعُوْا لِلزِّيَارَةِ اجْتِمَاعَكُمْ لِلْعِيْدِ".(2)

او هم داسې عبارت ملّا علي القاري صاحب ؒ پهٔ "مرقاة المفاتيح" شرح دَ مشکاة کښې ليکلے دے،(3) او دارنګې هم دا عبارت مبارک پوري ؒ هم راوړے دے، نو دَ عيد معنی طيبي ؒ ذکر کوي: "زما پهٔ قبر باندې داسې مهٔ راجمع کيږئ، لکه څنګه چې تاسو دَ اختر پهٔ ورځ راجمع کيږئ"، داسې اجتماعات زما پهٔ قبر باندې مهٔ کوئ.

(۲) دويم مطلب دا ذکر کوي: "چې هر وخت زما دَ قبر ملاقات کوئ، دا مهٔ کوئ چې لکه دَ اختر پهٔ شان يَو ورځ راځئ او بيا نهٔ راځئ"؛ ځکه چې اختر کال کښې يَو پيره راځي، وروکے اختر هم يَو ورځ راځي پهٔ ټول کال کښې او لوئي اختر هم پهٔ ټول کال کښې يَو ورځ راځي، نو داسې به نهٔ

(1) أخرجه أبوداود في كتاب المناسك، باب زيارة القبور، برقم: (2042).

(2) انظر: "شرح المشكاة للطيبي المسمى بـ (الكاشف عن حقائق السنن)": (1043/3).

(3) انظر: "مرقات المصابيح" لملا علي قاري: (744/2).

کوئ چې کال کښې به یَو ورځ مقرر کړئ او دغه یَو ورځ باندې اجتماع کوئ او دغه یَو ورځ باندې زما قبر له راځئ دَ زیارت دپاره او بیا نۀ راځئ، لکه نن چې عرس والا خلق کوي، پۀ کال کښې یَو ورځ عرس کوي او بیا چهټي وي بیا پۀ تواِ. کال کښې هم دَ مقبرې پۀ خوا نۀ ورځي، بیا ئې صرف یَو کس ساتلے وي چې تۀ پکښې جارو وهه نور بے غمه یه، کال بعد به بیا راغونديږي، نو دا پۀ شریعت کښې نشته دے؛ ځکه نبي ﷺ خو بڅپل قبر دَ راغونډیدو باندې منع کړې ده، نو دَ بل چا پۀ قبر دَ راغونډیدو به څنګه اجازت میلاؤ شي؟ او بیا دَ بعضې جاهلانو خو دا کار وي چې وائي: "دا لوئي ولي دے، دا لوئي بزرګ دے او راشه دَ هغه سرې نه امداد اوغواړه، دَ هغه نه حاجت اوغواړه!"، نو بیا راشي او دَ هغه نه حاجتونه غواړي، یا دَ بعضې خلقو دا عقیده وي: "چې دغه ځائے مبارک دے؛ ځکه دا دَ یَو ولي درګاه ده، نو دَ دغې ولي پۀ درګاه کښې دعاګانې ښې قبليږي"، نو هلته به ځان دپاره سؤال اوکړي!، وائي: دَ ولي نه سؤال مۀ کوه، ځان له بڅپله سؤال کوه کنه! دَ الله نه غواړه، نو لږ سوچ پکار دے.

**دَ شاه ولي الله رحمه الله قول**

"كُلُّ مَنْ ذَهَبَ إِلٰى بَلْدَةِ أَجْمِيرَ، أَوْ إِلٰى قَبْرِ سَالَارَ مَسْعُوْدِ غَازِيْ لِأَجْلِ حَاجَةٍ يَطْلُبُهَا ثَمَّ فَقَدْ أَثِمَ إِثْمًا كَبِيرًا مِّنَ الْقَتْلِ وَالزِّنَا".(1)

"څوک چې اجمیر شریف ته لاړ و یا دَ سالار مسعود غازي قبر له لاړ و؛ دَ دې دپاره چې هلته څۀ حاجات اوغواړي نو دې سړي دومره لویه ګناه اوکړه چې دَ قتل او زِنا نه ئې زیاته لویه ګناه اوکړه".

ولې؟ ځکه چې دَ الله تعالی دربار ئې پریښودو او دے دَ یَو انسان دربار ته لاړ و چې دلته به ښې دعاګانې قبليږي.

**دَ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله قول**

"مَنْ ظَنَّ أَنَّ الدُّعَاءَ أَوْ الصَّلَاةَ عِنْدَ قُبُورِهِمْ أَفْضَلُ مِنْهُ فِي الْمَسَاجِدِ وَالْبُيُوتِ فَهَذَا ضَلَالٌ وَشِرْكٌ وَبِدْعَةٌ بِاتِّفَاقِ أَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ".(2)

"دَ چا چې دا ګمان وي چې زما دعاء پۀ مقبرې کښې ښۀ قبليږي دَ دعاء غوښتلو دَ دۀ نه

(1) انظر: "التفهيمات الإلهية".

(2) انظر: "مجموع الفتاوى" لابن تيمية، في سورة الإخلاص، باب حكم زيارة قبور الأنبياء والصالحين، (471/17).

پهٔ جومات کښې یا پهٔ کور کښې نو دا گمراهي او شرک او بدعت دے پهٔ اتفاق دَ ټولو ائمه دَ مسلمانانو سره"؛ ځکه جومات دَ الله تعالی کور دے او هغه دَ یو ولي قبر دے.

نو دا به نهٔ وائي: "چې هلته زما دعاء ښهٔ قبلیږي"، مطلب دا دے: چې مقبره کښې راجمع کیدل یا دَ یوَ ولي پهٔ دربار راجمع کیدل او پهٔ هغې کښې اجتماع کول او پهٔ هغې کښې عرس کول دَ دې هیڅ څهٔ ثبوت پهٔ شریعت کښې نشته.

**دَ شاه ولي الله رحمه الله دویم قول**

قَالَ ﷺ: «لَا تَجْعَلُوْا زِيَارَةَ قَبْرِيْ عِيْدًا».

"مهٔ کرځوئ! تاسو زیارت دَ قبر زما میله گاه".

نو شاه ولي الله رحمه الله وائي: "أَقُوْلُ: هٰذَا إِشَارَةٌ إِلَى سَدِّ مَدْخَلِ التَّحْرِيْفِ كَمَا فَعَلَ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى بِقُبُوْرِ أَنْبِيَائِهِمْ، وَجَعَلُوْهَا عِيْدًا وَّمُوْسَمًا بِمَنْزِلَةِ الْحَجِّ".(1)

"زهٔ شاه ولي الله دَ دې حدیث باره کښې وایم: چې دا حدیث «لَا تَجْعَلُوْا زِيَارَةَ قَبْرِيْ عِيْدًا» (چې نبي ﷺ دا خبره ولې کړې چې زما دَ قبر نه میله مهٔ جوړوئ؟)؛ دا ئې دَ دې دپاره کړې وه چې دې کښې اشاره ده: چې دَ تحریف دا لار بنده شي پهٔ دې امت کښې؛ هسې نه چې روستو دور کښې داسې خلق پیدا شي لکه دَ یهودو او نصارئ پهٔ شان چې هغوي دَ خپلو انبیاؤ دَ قبرونو نه میله گانې جوړې کړې وې، او دَ هغې نه به ئې طوافونه کول او دَ هغې نه به ئې حاجتونه غوښتل او هغه ئې میله گاه کرځولې وې، او دَ هغې دپاره ئې یو خاص وخت مقرر کړے وو لکه دَ حج دپاره چې وخت مقرر وي، او څنګه چې دَ حج دپاره ټول خلق راجمع کیږي، نو دغه شان به هغوي هم پهٔ کال کښې یو پیره دَ خپلو انبیاؤ پهٔ قبرونو راجمع کیدل، نو نبي ﷺ دَ دې نه منع اوکړه چې زما دَ قبر نه به میلې نهٔ جوړوئ".

**دَ شاه ولي الله رحمه الله دریم قول**

"وَمِن أَعْظَمِ البِدَعِ ما اخْتَرَعُوْا فِي أَمْرِ القُبورِ وَاتَّخَذُوْها عِيْدًا".(2)

"دَ بدعاتو نه لوئي بدعت ذا دے: چې دې خلقو دَ ځان نه ایجاد (جوړ) کړے دے دَ

(1) انظر: "حجة الله البالغة" للشاه ولي الله الدهلوي: (120/2).

(2) انظر: "التفهيمات الإلهية" (64/2).

قبرونو باره کښې چې پهٔ هغې باندې میلې کوي".

زهٔ وایم کهٔ چرې دا عُرس دین وے نو دَ یو ولي پهٔ قبر باندې به ډیر ثواب وو او کهٔ دَ یو نبي پهٔ قبر باندې به ډیر ثواب وو؟ کهٔ دَ دنیا تمام اولیاء راجمع کړې، دَ دنیا تمام نیکان راجمع کړې دَ یو هغه صحابي مقام ته نشي رسیدلے چې دَ هغهٔ یو سیکنډ دَ نبي ﷺ سره تیر شوے دے، یو لږ وخت والا صحابي دے چې صرف نبي ﷺ ئې لیدلے دے او بیا وفات شوے دے دَ هغې صحابي مقام او مرتبې ته نشي رسیدلے، نبي ﷺ فرمائي: "کهٔ چرې یو انسان دَ احد دَ غر برابر سرهٔ زر خرچ کړي دَ الله پهٔ لار کښې زما صحابي چې یو موټے وریشې خرچ کړي دي دَ هغې مقابله نشي کولے".

**دَ صحابه کرامو ﷺ مقام**

دَ صحابه کرامو ﷺ ډیر لوئي مقام وو، نبي ﷺ فرمائیلي وو: «إِنَّمَا أَصْحَابِي كَالنُّجُومِ، فَبِأَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمُ اهْتَدَيْتُمْ».(1)

"زما دَ صحابه کرامو ﷺ مثال پشان دَ ستورو دے نو کوم یو پسې چې روان یئ نو پهٔ سمه لار به روان شئ".

دا مقام دَ بل چا دپاره نشته دے، کهٔ تمام اولیاء راجمع شي، دَ یو صحابي ﷺ مقام او مرتبې ته نشي رسیدلے، چرته به تاسو نهٔ وي اوریدلي: چې نن فلانکي ځائے کښې دَ فلانکي صحابي پهٔ قبر باندې عُرس دے، او نن فلانکي ځائے کښې دَ فلانکي صحابي پهٔ قبر باندې میله ده، پهٔ جنت البقیع کښې بے شماره صحابه کرام ﷺ دفن دي، چرته به تاسو دا نهٔ وي اوریدلي چې نن پهٔ سعودي عرب کښې دَ صحابه کرامو ﷺ پهٔ قبر باندې میله ده، کهٔ دا دین وو نو پکار دے چې دَ صحابه کرامو ﷺ پهٔ قبر باندې شوے وے، او کهٔ تمام صحابه کرام ﷺ راجمع کړې دَ یو پیغمبر ﷺ مقابله نشي کولے او بیا خاص کر دَ جناب محمد رسول الله ﷺ مقابله به څنګه اوکړي؟ کهٔ چرې دا عرس دین وے نو پکار دے چې رومبے عرس دَ نبي ﷺ پهٔ قبر باندې کیدو، حالانکه کهٔ څوک هلته تلي وي او چا دَ بیت الله حج کړے وي یا هغې عادي اوقاتو کښې هلته تلے وي، کله چې مسجد نبوي ته ځي دَ نبي ﷺ قبر خواته ځي، نو چې لږ هم

(1) أخرجه أبو بكر محمد بن الحسين بن عبد الله الآجُرِّيُّ البغدادي في "الشريعة"، برقم: (1166).

هغې طرف ته نزدې کیږي نو هغه ځائے کښې عرب شُرطې والا (پولیس) ولاړ وي، او هغوي ئې وهي او ورته وائي: "روستو شه! شرک مهٔ کوه"، دَ الله دَ پیغمبر ﷺ قبر ته روستو کول کوي، نو بل څوک دے چې دَ هغهٔ دَ قبر نه زیارتونه کول، دَ هغهٔ نه حاجتونه غوښتل دا به جائز شي؟ بالکل دَ دې ثبوت پهٔ شریعت کښې نشته دے، بلکه دا خلقو دَ ځان نه ایجاد کړے دے او دا ډیر نقصاني شے دے، پهٔ دې کښې ډیر نقصانات دي.

**شیخ القرآن مولانا محمد طاهر رحمه الله لیکلي دي**

چې عید میلاد النبي والا عید میلاد النبي مناؤوئ یا دغسې مبتدعین پهٔ کال کښې خپلو نیکانو بندګانو پهٔ قبرونو باندې عرس مناؤوئ نو دَ هغې وجه ئې لیکلې ده چې دا ولې ممنوع ده؟ او پهٔ هغې کښې چې کوم منکرات دي، نو هغه وائي: پهٔ دې کښې یَو څو وجوهات دي چې دا ناروا دي: "لَمْ يُنْقَلْ عَنِ الشَّارِعِ وَلَا مِنَ الصَّحَابَةِ وَلَوْ كَانَ خَيْرًا لَّسَبَقُوْنَا إِلَيْهِ".[1]

"دا کار نهٔ دَ نبي ﷺ نه نقل دے، نهٔ دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم نه نقل دے، او نهٔ دَ تابعینو نه نقل دے او کهٔ چرې دا ښهٔ کار وے نو زمونږ نه مخکښې به هغوي کړے وے".

نو کهٔ چرې عید میلاد النبي ښهٔ کار وے یا عرس ښهٔ کار وے نو پکار دے چې نبي ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم کړے وے، کوم کار چې نبي ﷺ نهٔ دے کړے او کوم کار چې صحابه کرامو رضي الله عنهم نهٔ دے کړے نو هغه څنګه دین کیدے شي؟ چې دا هغه وخت دین نهٔ وو نو نن دا څنګه دین کیدے شي؟؛ څکه نبي ﷺ دَ دنیا نه هله تلے دے چې دین مکمل شوے دے.

**دَ الله رب العزة اعلان**

الله رب العزة اعلان کړے دے: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾،[2] "نن ورځې یعني نن وخت ما ستاسو دپاره دین مکمل کړو، او خپل نعمتونه مې پهٔ تاسو باندې پوره کړل او ستاسو دپاره ما دین اسلام دین غوره کړے دے"، دا هغه آیت دے چې دَ دې نه روستو بیا نوره وحې پهٔ نبي ﷺ باندې نهٔ ده راغلې، پهٔ آیتونو کښې آخري آیت دا دے، نو مسلمانانو رونړو! دین مکمل دے، پوره دے، مثال: یَو جام دنے چې هغې کښې تا اوبهٔ

(1) انظر: "ضیاء النور" لشیخ القرآن محمد طاهر، برقم: (219).
(2) [سورة المائدة: 3].

اچولي دي، هغه جام دې ډک کړے دے اوس بل انسان راځي او په هغې کښې نورې اوبهٔ اچوي نو هغه نورې اوبهٔ به ښکته توئیږي او کهٔ نا؟، نو دین بالکل پوره دے په دې کښې زیادت ته بالکل ضرورت نشته دے، نهٔ په دې دین کښې څهٔ نقصان شته او نهٔ پکښې څهٔ زیادت شته دے، او کوم زیادت او نقصان چې پکښې خلق کوي نو دې له هیڅ اعتبار نشته دے.

**پهٔ دین کښې نوے کار پیدا کول**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ، فَهُوَ رَدٌّ».[1]

"چا چې زمونږ پهٔ دین کښې دَ ځان نه یَو طریقه وردننه کړه چې پهٔ دین کښې نهٔ وه (او هغې ته دین وائي)، نو دغه دین نهٔ دے بلکه بے دیني ده".

دا یاد اوساتئ! چې دَ هر څهٔ دپاره څهٔ اصول او قوانین شته، او هر څهٔ پهٔ هغې خپلو اصولو او قوانینو باندې چلیږي، کهٔ چرې دَ دې اصولو نه یَو اصل یا یَو قانون خراب شي نو هغه شے بیا کامل نشي پاتې کیدے، مثال پهٔ طور باندې ګاډے دے، یَو سړے ګاډے چلوي او دَ دې نه فائده اغستل غواړي، نو دهٔ دپاره چې کوم هدایات دي دَ هغې خلقو دَ طرف نه چې هغه دَ دې ګاډي ماهرین دي نو دے به پهٔ دغه هدایاتو چلیږي، او کهٔ دے دَ دغه هدایاتو نه خلاف کوي نو دے بیا فائده نشي اغستے، مثلاً یَو سړے دے او هغه وائي: "چې دا اوبهٔ او تیل خو به یَو شان رنګ لري راشه تهٔ دې ګاډي کښې اوبهٔ واچوه او تیل ترې نه لرې کړه"، نو ګاډے به لاړ شي؟ دې سره به ګاډے اُلټه نقصان اوکړي، او کهٔ چرې یَو سړے وائي: "چې ګاډي والا کوم اصول ذکر کړي دي زهٔ دَ هغې اصولو نه خلاف کوم"، نو دا سړے به ځان تباه کړي، نو دَغسې دَ هر څهٔ دپاره څهٔ اصول شته، دَ زمینداریٔ دپاره هم اصول شته دے، کهٔ چرې یَو سړے زمینداره کوي نو مخکښې نه نورو زمیندارانو له ګوري، چې زما نه مخکښې نور خلق زمینداره کوي نو چې هغوي ئې پهٔ کومه طریقه کوي؟ مثلاً دَ اوبو لګولو ضرورت دے، نو هغه وخت کښې اوبهٔ لګول غواړي او دَ کرلو وخت کښې کرل غواړي او دَ ریبلو وخت کښې ریبل غواړي، نو دغه شان دین دَ الله تعالی هم دے، الله تعالی یَو قانون رالیږلے دے، الله یَو کتاب رالیږلے دَ ضابطه حیات دپاره، دغه رنګې سنت دَ نبي ﷺ ئې رالیږلي دي، نو کهٔ تهٔ پهٔ دین اسلام باندې چلیدل

(1) أخرجه البخاري في كتاب الصلح، باب إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود، برقم: (2697).

غواړې نو هله به ته کامیاب ئې چې ته پهٔ دغه قانون باندې روان ئې، کهٔ چرې تا دا قانون پرېخودو نو ستا دا قیمتي دین به ناکام شي، نو دین بالکل مکمل دے، او دا دین به پهٔ هغه طریقه باندې کوئ چې پهٔ کومه طریقه نبي ﷺ کړے دے.

**دَامام مالک رحمه الله قول**

"مَنِ ابْتَدَعَ فِي الْإِسْلَامِ بِدْعَةً يَرَاهَا حَسَنَةً، زَعَمَ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَانَ الرِّسَالَةَ؛ لِأَنَّ اللهَ يَقُولُ: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ (المائدة: ٣)، فَمَا لَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ دِينًا، فَلَا يَكُونُ الْيَوْمَ دِينًا".[1]

"هغه څوک چې پهٔ دین اسلام کښې دَ ځان نه نوي طریقې وردننه کړي او دا ښهٔ کار هم ګنړي (حال دا دے چې هغه الله نهٔ دِه وئیلې او نهٔ دَ الله رسول وئیلې ده او دهٔ دَ ځان نه جوړه کړي ده) نو یقینًا دَ دې سړي دا خیال او ګمان دے چې محمد عربي ﷺ پهٔ رسالت کښې خیانت کړے دے (نعوذ بالله!؛ ځکه دا اهم کار، دا ضروري کار نبي ﷺ نهٔ دے بیان کړے نو دا پهٔ هغه باندې دَ خیانت الزام لګول شول)، او حالانکه الله تعالی قرآنِ کریم کښې فرمائي: نن ورځې ما ستاسو دپاره ستاسو دین مکمل کړے دے... نو چې هغه ورځ یَو څیز دین نهٔ وو نو نن به هم هغه څیز دین نشي کیدے".

**دا عُرس کول پهٔ څو وجوهاتو باندې ناروا دے**

نو دا عرس کول دَ دې آیت خلاف دي؛ ځکه دا پهٔ څو وجوهاتو ناروا دے:

(١) وجه دا: چې عرس کول نهٔ الله وئیلي دي او نهٔ دَ الله پیغمبر ﷺ وئیلي دي، او نهٔ دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم نه دَ دې باره کښې څهٔ نقل شته.

(٢) دویمه دا: چې دوي دې ته دین وائي، او کوم کار چې نبي ﷺ هغې ته دین نهٔ وي وئیلے نو هغه دین نهٔ دے، بلکه هغه اُلټه بے دیني ده.

(٣) دریمه دا: چې دوي پهٔ دې کښې اجتماع کوي، راجمع کیدل کوي، دَ دوي مقصد دَ دنیا حصول دے، اوس دَ دنیا حصول څنګه دے؟ دَ لرې لرې ځائے نه خلق راغلے دے دَغسې زیارت دپاره پهٔ هغې باندې دَ اجتماع دپاره څوک پیسې غورځوي، څوک شکرانې پیش کوي او څوک نذرانې پیش کوي نو دغه خلق پهٔ هغې باندې دنیا راغونډوي، او قرآنِ کریم کښې الله تعالی فرمائي:

(1) انظر: "الاعتصام" للشاطبي، الباب الثاني في ذم البدع وسوء منقلب أصحابها، الأدلة من النظر على ذم البدع: (65/1).

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ﴾.(1)

• "اے ایمان والا! یقینًا ډیر دَ مُلیانو نه او ډیر دَ پیرانو نه خامخه خوري مالونه دَ خلقو پهٔ غلطه طریقه باندې او خلق بندوي دَ لارې دَ الله تعالی نه".

**دَ یهودو مُلیانو کار**

ډیر خلق دَ خلقو مالونه پهٔ غلطه طریقه باندې خوري، لکه دَ یهودو مُلیانو به وئیل:

﴿لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ﴾.(2)

"دا امیان خلق دي دَ دوي پهٔ مال خوړو کښې زمونږ دپاره څهٔ گناه نشته".

نو عرس چې کوي نو دَ هغوي مقصد دا دے: چې پهٔ هغې باندې ځان له مال اوګټي، پهٔ هغې باندې دَ ځان دپاره جائیداد اوګټي، حالانکه خبر نهٔ دي، کوم سړے چې خپل مال راوړي او پهٔ دغه قبر باندې ئې اوغوَرځوي نو دې سړي گناه کبیره او شرک اوکړو.

**شامي لیکلي دي**

"وَاعْلَمْ أَنَّ النَّذْرَ الَّذِي يَقَعُ لِلْأَمْوَاتِ مِنْ أَكْثَرِ الْعَوَامِّ وَمَا يُؤْخَذُ مِنَ الدَّرَاهِمِ وَالشَّمْعِ وَالزَّيْتِ وَنَحْوِهَا إِلَى ضَرَائِحِ الْأَوْلِيَاءِ الْكِرَامِ تَقَرُّبًا إِلَيْهِمْ فَهُوَ بِالْإِجْمَاعِ بَاطِلٌ وَحَرَامٌ".(3)

"پوهه شه هغه چې کوم عوام خلق نذر پیش کوي، منخته پیش کوي شمعې اوړي، ممبتۍ اوړي، تیل اوړي، کهٔ اشرفۍ اوړي او کهٔ نور خیزونه اوړي، هر څهٔ چې ئې یَوړو دَ ولي قبر ته نو دغه شے دَ تمامو علماؤ پهٔ نزد باندې حرام او پلیت دے"، نو دغه خلق مردارو ته ناست دي.

(٤) څلورم دا: دا څیز څکه گناه دے؛ چې دَ دغې خلقو مقصد پهٔ خپل مال باندې فخر کول، مشرت حاصلول او شهرت کول دي او دا خو دَ دنیا دارو خلقو کار دے.

(٥) پنځم دا: چې پهٔ دې کښې ډیر خلاف شرع کارونه کیږي، یَو خو پکښې دا کار کیږي: چې نابالغه هلکان پهٔ هغې کښې نعتونه وائي، دغه شان زنانه راځي او پهٔ هغې کښې کډوډ کرځي، دا ټول دَ شریعت خلاف کار دے،

---

(1) [سورة التوبة: 34].

(2) [سورة آل عمران: 75].

(3) انظر: "رد المحتار على الدر المختار" لابن عابدين، محمد أمين بن عمر بن عبد العزيز عابدين الدمشقي الحنفي: (439/2).

(٦) شپږم دا: چې پهٔ دې کښې خلق ضعيفې او کمزورې قيصې کوي، کوم مُليان چې هغې له راغلي وي نو هغوي چې کله واقعات ذکر کوي، نو وائي: "ما هغه بله شپه دا پير صاحب پهٔ خوب کښې ليدلے وو او فلانکي يَو کال مخکښې پهٔ خوب کښې ليدلے وو..."، حالانکه دَ ټولو علماؤ پهٔ دې مسئله باندې اتفاق دے چې پهٔ خوب باندې بالکل مسئله نهٔ ثابتيږي، خوب پهٔ دين کښې دليل نهٔ دے، پهٔ خوب کښې خو سړے ډيرې خبرې وينې، خو دا شريعت کښې دليل نهٔ دے.

**دَ شريعت دلائل**

دلائل دَ شريعت څلور دي، (١) يَو: دَ الله رالېږلے شوے کتاب "قرآنِ کريم" چې يَو مسئله تهٔ ګورې چې دا جائز ده او کهٔ نا؟ نو دَ ټولو نه اول به دَ الله تعالی دَ کتاب نه تپوس کوې.

(٢) دويم: "سنت دَ محمد رسول الله ﷺ"، چې تهٔ يَو مسئله ګورې چې دا جائز ده او کهٔ دا ناجائز ده؟ نو دَ محمد رسول الله ﷺ پهٔ سنتو مبارکو کښې به ئې ګورې.

(٣) دريم: "اجماع دَ صحابه کرامو ﷺ"، تمام صحابه کرام ﷺ چې پهٔ يَو څيز باندې راجمع شوي وي نو هغه زمونږ دپاره دليل دے؛ ځکه نبي ﷺ فرمائي: "چې زما صحابه کرام ﷺ الله تعالی پهٔ يَو ګمراهئ باندې نهٔ راجمع کوي".

(٤) څلورم: "قياس دَ مجتهدينو"، چې مجتهد اجتهاد کړے دے پهٔ صحيح طريقې سره نو شريعت کښې هغه دليل دے.

نو شريعت کښې دَ دې څلورو دلائلو نه علاوه بل دليل پهٔ شريعت کښې نشته دے، نو خوب خو يَو دليل هم نهٔ دے، نو دې به خوبونه بيانوي او بيا به دوي قيصې ټهځان نه هم ذکر کوي، چې دهٔ داسې کړي وو او دهٔ داسې کړي وو، او دا قيصې ذکر کول دا دَ دوي بله بے ديني ده.

(٧) اووم دا: چې پهٔ دې عرس کښې طعامونه تياريږي، نو دا اسراف دے او بل دا چې پهٔ هغې کښې قناديل رازوړند وي او پهٔ هغې ډيوې او چراغ ګان بل شو، حالانکه دا دَ اسلام طريقه نهٔ ده، زهٔ به روستو وضاحت اوکړم چې دا ډيوې بلول دا دَ چا چا کار دے؟ دا بلپونه بلول پهٔ قبرونو باندې دا دَ چا کار وو؟ دا خو دَ يهودو او نصارٰی کار وو.

**ابن الحاج ﷫ ليکلي دي**

"چې مقبره خو پريږدوه چې جومات کښې دَ ختم پهٔ دوران کښې بعضې خلق دا مرچکې

غونډې راوړي، دا بلېونه راوړي، ډېره ګل کاري په جومات کښې کوي دا بدعت دے او دا په شريعت کښې نشته، بلکه دا مشابهتِ دَ يهوديانو سره دے، او پوهه خلق دا کارونه کوي".(۱)

بهر حال دا عرس کول دَ دې په شريعت کښې هيڅ ثبوت نشته، پکار دے چې دا عرسونه ختم شي.

**شاه عبدالعزيز رحمه الله ليکلي دي**

دَ دهٔ کتاب دے "فتاوٰی عزيزي" او دا کتاب ئې په فارسئ کښې ليکلے دے، او دے په علماء ديوبند کښې مشهور عالم دے، دَ علماء ديوبند په استاذانو کښې دے، دَ دهٔ نه چا تپوس اوکړو: *"برائے زيارتِ قبور روز معين نمودن يا روزِ عرس ايشاں که معين است رفتن درست است يا نه؟"*.

"دَ زيارت دَ قبرونو دپاره يَو ورځ متعين کول (چې فلانکي ورځ باندې به ځَم هغې نه روستو او مخکښې ورځ باندې نهٔ ځَم، بلکه دغه وَرځ معيَّنه کښې ثواب ګنړل) او دغه شان دَ عرس دپاره ورځ متعين کول دا څنګه دي؟، دا جائز دي کهٔ نا جائز دي؟".

جواب: *"برائے زيارتِ قبور روز معين نمودن بدعت است، واصل زيارت جائز است، و تعيين وقت در سلف نه بود، واين بدعت ازاں قبيل است که اصلش جائز است و خصوصيتِ وقت بدعت"*.

"دَ قبرونو زيارت دپاره ورځ مقرر کول دا بدعت دي، اَصل زيارت دَ قبر جائز دے، خو يَو خاص قبر ئې نهٔ دے ياد کړے"، چې دَ خپل کلي په مقبره باندې تيرېږي نو دې ته ګوره، او کهٔ نه دې ته نهٔ ګورې او تهٔ لرې لرې مقبرو له ځان رسَوې نو دا بدعت دے، نو زيارت دَ قبر جائز دے ليکن تعيين دَ وقت په سلفو کښې نهٔ وو، صحابه کرامو ﷺ کښې، ائمه کرامو کښې، تابعينو کښې دا شے نهٔ وو، چې کني هغوي به يَو خاص ورځ مقرر کړې وه، او هغوي به په هغې ورځ باندې راجمع کيدل) "، *"واين بدعت ازاں قبيل است که اصلش جائز است و خصوصيتِ وقت بدعت"*، "دا بدعت دَ هغې قبيلې نه دے چې زيارت دَ قبرونو خو جائز دے (ځکه خو تاله به بعضې خلق وائي: ګوره! دَ قبرونو زيارت نهٔ مني، ورنه وايه: تهٔ دَ قبرونو زيارت څهٔ ته وائې؟ زيارت وائې: ملاقات ته، نو دَ قبر ملاقات له ځه، احاديث کښې نبي ﷺ دې ته ترغيب ورکړے دے)، نو اِصل دَ قبر زيارت له تلل خو جائز دي، ليکن دا وخت مقرر کول، چې فلانکي وخت کښې ډير ثواب دے دا په

(۱) انظر: "المدخل" لابن الحاج:

شریعت کښې نشته، دغه بدعت دے".

بیا وائي: "مانند مصافحه بعد العصر که در ملک توران وغیره رائج است". "پشان دَ لاس میلاوَولو دَ مازیګر دَ مونځ نه روستو لکه توران علاقه کښې دا رواج دے".

دَ توران په علاقه کښې چې کله دَ مازیګر مونځ خلق اوکړي نو به هسې یَو بل سره لاس یَو بل سره لاس نهٔ میلاوؤ خو چې جمع اوشي نو یَو بل سره پهٔ لاس میلاوولو شروع اوکړي، نو شاه صاحب وائي: دا شے پهٔ شریعت کښې نشته دے، نو ولې؟ ځکه چې دَ الله پیغمبر ﷺ خو هر وخت دَ مصافحې ترغیب ورکړے دے: نبي ﷺ فرمائي: "چې کله دوه مسلمانان دَ یَو بل سره دَ زړهٔ پهٔ مینه او محبت لاس میلاو کړي نو دې دواړو لا دَ یَو بل لاس نهٔ وي پریخودے چې دَ دوي ګناهونه معاف شوي وي"، نو دومره ثواب دے پهٔ مصافحه کښې، خو لیکن دغه خاص وخت کښې (چې تا ورله خاص کړے دے) ئې ثواب نشته دے، چې توله ورځ لاس نهٔ میلاوے او صرف دغه وخت دې ورله خاص کړے دے، چې دَ مازیګر دَ مونځ نه روستو زهٔ لاس میلاووم دا پهٔ شریعت کښې نشته، دَ دې دپاره یَو خاص دلیل پکار دے او چې دلیل نشته نو بدعت او ګمراهي ده.

**یَو بل غلط عادت**

مخکښې هم ما تاسو ته وئیلي وو: چې دَ اختر پهٔ ورځ دَ کور نه روان شي هیڅ به نهٔ وي، یَو ځائے به روان وي خو چې څنګه دَ اختر مونځ اوکړي نو بیا یَو بل ته اونغلي او لاس میلاوئ او یَو بل ته غاړې ورکوي او وائي: "اختر دې مُبارک شه!"، او بل به ورته وائي: "ستا دې مُبارک شه!"، علماء کرام وائي: صرف مطلق (یواځې) مبارکي وئیل: چې "اختر دې مبارک شه"، دا جائز دي، خو دا غاړې میلاوؤل لازم ګنړل دا ګناه ده، لکه بعضې مشران وائي: ګوره! "فلانکي ماله دَ اختر مبارکئ له نهٔ دے راغلے"، کهٔ ډیر لرې وي خو مبارکئ له به ځان رارَسَوي، نو دَ دې هیڅ ثبوت پهٔ شریعت کښې نشته او کهٔ دې ته ثواب وائي نو بیا ګناه او بدعت دے، هاا کهٔ ثواب ورته نهٔ وائي نو بیا دا هسې یَو فضول رسم دے.

نو مقصد مې دا دے: چې شاه عبد العزیز ؒ ورته پهٔ جواب کښې وائي: "چې اصل دَ دې خیز جائز دے چې زیارت دَ قبر دے خو لیکن دَ دې دپاره دا وخت مقرر کول نشته، لکه چې پهٔ

دین کنبې دَ لاس میلاؤولو دپاره وخت مقرر نهٔ دے، دَ توران خلق دَ مازیگر دَ مونځ نه روستو لاس میلاؤوئ نو دا بدعت دے"، او بیا وړیسې شاه عبد العزیز رحمه الله فرمائي: "دغه شان دَ اولیاء کرامو دپاره دعاګانې غوښتل دین دے او ثواب دے لیکن دَ هغې دپاره پهٔ التزام سره یَو وخت مقرر کول، هغې کنبې راجمع کیدل، پهٔ هغې کنبې عرس کول دا پهٔ شریعت کنبې نشته".[1]

**قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله لیکلي دي**

دا هغه عالم دے چې لسو (۱۰) جلدو کنبې ئې "تفسیر مظهري" لیکلے دے، دَ علماء دیوبند استاذ تیر شوے دے، هغه لیکلي دي: "لَا يَجُوْزُ مَا يَفْعَلُهُ الْجُهَّالُ بِقُبُوْرِ الْأَوْلِيَاءِ وَالشُّهَدَاءِ مِنَ السُّجُوْدِ وَالطَّوَافِ حَوْلَهَا وَاتِّخَاذِ السُّرُجِ وَالْمَسَاجِدِ عَلَيْهَا وَمِنَ الْاِجْتِمَاعِ بَعْدَ الْحَوْلِ كَالْأَعْيَادِ وَيُسَمُّوْنَهٗ عُرْسًا".[2]

"نهٔ دي جائز هغه کارونه چې جاهلان خلق ئې کوي دَ اولیاء کرامو او دَ شهیدانو پهٔ قبرونو باندې (څهٔ کارونه کوي؟)، چې هغې له سجدې لکوي، دَ هغې نه کیر چاپیره طوافونه کوي، پهٔ هغې باندې ډیوې بَلوي او هغې باندې جوماتونه آبادَوي او پهٔ هغې باندې هر کال بعد اجتماع کوي لکه دَ اختر پشان او دغې اجتماع ته خلق عرس وائي".

نو دا جائز نهٔ دي، دا خو زمونږ خبرې نهٔ دي دا خو دَ علماء دیوبند خبرې دي، چې پهٔ قبرونو زیارتونه کول، پهٔ قبرونو میلې کول دَ دې ثبوت پهٔ شریعت کنبې نشته، بلکه دا ټول ناجائز کارونه دي.

**قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله لیکي**

*"قبورِ اولیاء بلند کردن و گنبد بر آں ساختن و عرس و امثالہا و چراغاں کردن ہمہ بدعت است، بعض از آں حرام است و بعض مکروہ است، پیغمبر خدا صلی اللہ علیہ وسلم بر شمع افروزاں نزد قبر و سجدہ کنندگان را لعنت گفتہ".*[3]

"دَ اولیاء کرامو قبرونه اوچتول، پهٔ هغې باندې ګمبتونه جوړول او دارنګې پهٔ هغې باندې عرس کول او پهٔ هغې باندې ډیوې او چراغان بلول دا ټول بدعت کارونه دي، بعضې دَ دې حرام دي او بعضې مکروه دي، دَ الله دَ پیغمبر ﷺ پهٔ قبر باندې شمع بلونکو او قبر ته سجده کوونکو باندې لعنت وئیلے دے".

---

(1) انظر: "فتاوی عزیزیه" لعبد العزیز رحمه الله: (89/1).

(2) انظر: "تفسیر المظهري" لمحمد ثناء الله رحمه الله: (ا ق65/2).

(3) انظر: "ارشاد الطالبین" لمحمد ثناؤ الله: (22).

نو مطلب دا چې مقبرو له تلل په هغې کښې په يَو قبر اجتماع کول، په هغې ډيوې بلول، په هغې شالونه غوړول، هغې ته سجدې کول، په هغې باندې عرس کول او په هغې باندې مرچکې رازوړندول دا ټول کارونه خلافِ شرع دي.

**شاه محمد اسحاق رحمه الله ليکلي دي**

*"مقرر ساختن روزِ عرس جائز نیست".*(1)

"دَ عرس دپاره ورځ خاص کول دا جائز نهٔ دي".

اوس بعضې خلق به وائي: "ولې جائز نهٔ دي؟ ښه خبره نهٔ ده چې ډير خلق راجمع شي او تلاوت اوکړي او ذکر اذکار اوکړي او په شريکه دغه مړي له دعاء اوکړي نو دا ښه نهٔ ده؟"، دا ياد ساتئ! علماء کرام ذکر کوي، مولانا سرفراز خان صفدر صاحب رحمه الله پخپل کتاب "راهِ سنت" کښې دَ شيخ علي المتقي الحنفي رحمه الله دَ هغهٔ کتاب دے "رساله رد بدعات" دَ هغې په حوالې سره ليکلي دي:

"اَلاِجْتِمَاعُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ لِلْمَيِّتِ بِالتَّخْصِيْصِ بِالْمَقْبَرَةِ أَوِ الْمَسْجِدِ أَوِ الْبَيْتِ بِدْعَةٌ مَذْمُوْمَةٌ".

"راجمع کيدل دَ قرآنِ کريم تلاوت دپاره په مړي باندې سبق لولې په تخصيص سره په مقبره کښې ئې لولې، په جومات کښې ئې لولې او يا ئې کور کښې لولې دا بدعتِ مذمومه دے".

دا شے په شريعت کښې چرته وو؟ اول خو دا تپوس کول پکار دي: چې دا راجمع کيدل جائز دي او کهٔ نا؟ چې څوک وائي: ما دَ څلورو کسانو ختم کښينولے دے، څوک وائي: ما دَ لسو کسانو ختم کښينولے دے او چا سيپارې راوړې دي او تقسيم کړي ئې دي، دا خو په دې خلقو کښې رواج وو، اوس ئې پريخودو، چې چا کره به مړے اوشو نو خامخه به هغه تلو او قاريان به ئې راوستل يا دَ کاوند ښځې به ئې راجمع کولې او هغوي ته به ئې وئيل: چې زمونږ دپاره ختم اوکړئ او په هغوي به ئې ډوډئ خوره، په هغوي به ئې چائے څښکله او پيسې به ئې ورله ورکولې، تمام علماء کرام ذکر کوي: چې دا ختم خو دَ دې دپاره شوے وو چې مړي له ثواب اوبخښي نو چې دهٔ دَ دې په بدله کښې چائے اوڅښکله او دهٔ ډوډئ اوخوره، دهٔ پيسې واخستې دَ دهٔ پخپله ثواب اونشو نو مړي ته به څهٔ اوبخښي؟ علماء کرامو دَ دې رد کړے دے، چې دَ دې رسمي ختمونو نه ځان ساتل پکار دي، ځکه

(1) انظر: "مسائل أربعين" لمحمد اسحق: (30).

چرته صحابه کرامو ﷺ داسې نهٔ وو کړي چې هغوي دَ ختمونو دپاره خلق راجمع کړي وي.

نو مقصد مې دا وو چې عرس دپاره دا دليل نيول چې خلق به راجمع شي او تلاوت به اوکړي، اجتماعي دعاء به دَ دې مړي دپاره اوکړي دَ دې هيڅ ثبوت پهٔ شريعت کښې نشته.

بل بدعت دا دے چې دوي وائي: دا بزرګان خلق دي او دوي له الله تعالی لوئي مقام ورکړے دے نو تهٔ څهٔ کوې؟ تهٔ هم ځان نر کړه کنه، دَ هغهٔ پشان عمل اوکړه ځان نه دَ هغهٔ غوندې بزرګ جوړ کړه، نو تهٔ څهٔ کوې تهٔ ايله دَ دهٔ هډوکي پهٔ خلقو خرخوې؟ دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه بل څوک لوئي بزرګ نشته، دَ صحابه کرامو ﷺ نه لوئي بزرګان نشته ليکن دَ الله دَ پيغمبر ﷺ قبر کچه دے او دَ صحابه کرامو ﷺ قبرونه کچه دي او دَ نورو اولياؤ قبرونه پخيږي.

زما عزتمندو، مسلمانانو! دا ياد اوساتئ! دَ قبر پخول دَ دې ثبوت پهٔ شريعت کښې نشته، او نبي ﷺ دَ قبرونو دَ پخولو نه منع کړې ده، نن خومره مزارونه دي کهٔ تاسو کتلي وي نو قبر به پوخ او دَ پاسه به پرې ګنبت جوړ وي، ذا تپوس کول غواړي: چې آيا دا ولې چې تا پهٔ دهٔ باندې ګنبت جوړ کړے دے، تا دَ دهٔ قبر پوخ کړے دے، دا تا جائز کار کړے دے، چې قبر دې پوخ کړے دے او کهٔ ناجائز کار دې کړے دے؟

**دَ سيدنا جابر ﷺ روايت**

جابر ﷺ وائي: چې نبي ﷺ فرمائيلي دي: «نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ، وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ».(1)

"نبي ﷺ منع کړې ده دَ قبر پخولو نه او پهٔ قبر باندې دَ ناستې نه او پهٔ قبر باندې دَ آبادۍ نه (چې پهٔ قبر به آبادے نهٔ کوې)".

نو دَ الله تعالی پيغمبر ﷺ وائي: قبر به نهٔ پخوئ او تا پوخ کړے دے، نبي ﷺ وائي: دَ قبر دپاسه آبادے ګنبت وغيره مهٔ جوړوئ او تا جوړ کړے دے، دَ الله پيغمبر ﷺ فرمائي: چې دَ قبر دَ پاسه ناسته مهٔ کوئ او تهٔ ورځ او شپه دَ هغې دپاسه ناسته کوې، نو ستا دا کارونه ټول دَ شريعت خلاف دي.

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب النهي عن تجصيص القبر والبناء عليه، برقم: (970).

اوس پاتې شوه دا خبره: چې بعضې جاهلان وائي: "دَ نبي ﷺ پهٔ قبر باندې ولې کنبت "کنبت خضراء" جوړ دے؟ او دَ هغې نه چې جنګله تاؤ ده؟"، نو سوچ اوکړئ رونړوا چې دا کنبت ئې کوم وخت جوړ کړے؟ او دا جنګله کوم وخت کنبې تاؤ شوې ده؟ مؤرّخين ذکر کوي: اووهٔ سوه (۷۰۰) کاله بعد دا جنګله دَ نبي ﷺ نه روستو جوړه شوې ده، نبي ﷺ خو نهٔ دي وئيلي: چې زما پهٔ قبر باندې جنګله جوړه کړئ، بلکه علماء کرامو دَ هغې رد کړے دے، چې دا جائز نهٔ دي، خو چې اوس جوړه شوې ده نو څوک ئې ورانه کړي؟ علماء کرام ذکر کوي: اووهٔ سوه کاله بعد دا جنګله يَو بادشاه جوړه کړې وه، صرف يَو جنګله ئې جوړه کړې وه، دَ هغهٔ نه روستو بيا پهٔ ۷۶۵ هجرئ کنبې يَو بل بادشاه راغلے وو، هغه دَ هغې نور هم وسعت اوکړو، او دَ هغې دپاسه ئې کنبت جوړ کړو، نو دا کار خو مسرفينو خلقو کړے دے، دا دليل به نهٔ نيسئ، نبي ﷺ پخپله منع کړې ده دَ قبر دَ پخيدو نه، نو دارنګې نبي ﷺ منع کړې ده دَ قبر باندې دَ ناستې نه او منع ئې کړې ده دَ آبادئ نه پهٔ قبر باندې، ليکن نن دَ اولياؤ قبرونه پاخهٔ دي، او بيا دَ هغې دپاسه کنبتونه هم جوړ دي او پهٔ هغې باندې پهٔ جدا طريقو باندې آبادئ هم جوړيږي! دا بالکل دَ شريعت خلاف دي، بلکه دا هسې فضول مال لګول دي.

علماء کرام ذکر کوي: "چې کوم يَو قبر پوخ شوے دے نو کهٔ چرې دا دَ يَو سړي پهٔ يَو خاص ځائے کنبې وي نو مکروه تحريمي دي چې هغه ځائے کنبې دهٔ قبر جوړ کړے او پوخ کړے ئې دے، او کهٔ چرې هغه پهٔ عامه مقبره کنبې مړے خخ دے او قبر ئې پوخ کړے دے نو دا حرام دے"، دَ مقبرې مقصد خو دا دے: چې مسلمان زمکه وقف کړې ده نو دَ دې مړو دَ خخولو دپاره ئې وقف کړې ده، نو چې تا قبر پوخ کړو نو سل کاله کنبې هم نهٔ خرابيږي اوس پهٔ هغې کنبې به بل مړے څنګه دفن کوې؟ څکه مسئله خو دا ده: چې کلهٔ مقبره ډکه شوه او سل کاله دَ مقبرې اوشو نو بيا پهٔ هغې کنبې دوباره مړے دفن کولے شي، هغه مقبره همواره کړه او هغې کنبې دوباره مړي دفن کوه، او چې کله پکښې دَ بل مړي هډوکي رااوتل نو هغه هډوکي به رااخلې او يَو کوټ کنبې به ئې کيږدې او مړے به ورسره قبر کنبې دفن کړې، نو دا دَ شريعت مسئله ده.

ليکن نن مقبرې ډکې دي ځائے پکښې نشته؛ څکه ټول قبرونه پاخهٔ دي، مقبرو کنبې

قبرونه پخول گناه ده؛ ځکه هغه حکمت ختمیږي کوم حکمت چې پیغمبر ﷺ وئیلے وو، نبي ﷺ خو وئیلي وو: "دَ قبرونو زیارت له ځئ! چې تاسو له آخرت یادیږي"، نن چې سړے مقبرې له ورشي نو بنکلې ورته یادیږي، داسې گنبتونه ئې پرې جوړ کړي وي، چې سړے هغې ته حیران شي، او په هغې باندې ئې داسې اشعار لیکلي وي چې مقبره به ختمه شي خو هغه اشعار به ختم نشي، نو آخرت به سړي ته څهٔ یاد شي؟ زهٔ یَو ورځ مقبره کښې روان ووم، قبرونو ته مې کتل، جدا جدا اشعار ئې پرې لیکلي وو، نو زهٔ دَ مقبرې بل سر ته اورسیدم خو شعرونه ختم نشو، سوچ مې کولو چې کهٔ بیا دپاره څوک مقبرو کښې گرځي نو قبر یادیدل خو لرې خبره ده، مرگ یادیدل خو لرې خبره ده صرف اشعارو ته به گوري او ځان له به شعرونه یادَوي، پهٔ قبر باندې ئې آیتونه لیکلي وي: ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ﴾،[1] تپوس اوکړه: چې آیا دا آیتونه پهٔ قبر باندې لیکل جائز دي؟ سپے او گیدړ راشي او خپه اوچته کړي او پهٔ دغې آیت باندې متیازې اوکړي، نو څومره بے عزتي دَ الله دَ کتاب اوشوه؟ دا ستا دَ وجې نه اوشوه، علماء کرامو خو تردې پورې لیکلي دي: "چې دَ جومات پهٔ دیوال به هم دَ قرآنِ کریم آیت نهٔ لیکې؛ دا دَ قرآنِ کریم دَ آیت بے عزتي او بے حرمتي ده"، قرآنِ کریم دَ دې دپاره نهٔ دے راغلے، چې تهٔ ئې پهٔ دیوالونو لیکه، قرآنِ کریم دَ دې دپاره نهٔ دے راغلے چې تهٔ ئې پهٔ قبرونو باندې لیکه، داسې قبرونه مې لیدلي دي چې دَ قبرونو گیر چاپیره ئې آية الکرسي لیکلي ده، نبي ﷺ خو منع کړې ده چې پهٔ قبر باندې به لیکل نهٔ کوئ، هاا دَ یَو وجې نه لیکل جائز دي، چې یَو سړے وائي: زما نه دَ خپل پلار او دَ مور قبر غلطیږي، نو صرف دومره کولے شې چې دَ قبر پهٔ هغې خزه باندې دې صرف دَ هغهٔ نوم اولیکي، او دے خو ورله شناختي کارډ جوړَوي، پهٔ قبر به اولیکي: تاریخ پیدائش دا... وو، تاریخ وفات دا... وو، ورځ دا... وه، او کال دا... وو، دومره پته خو سړے پهٔ شناختي کارډ کښې هم نهٔ لیکي، نن مونږ دین ختم کړے دے، خو دَ ځان نه مو یَو دین جوړ کړے دے، دا قبر پخول گناه ده، پهٔ قبر باندې لیکل کول گناه ده او پهٔ قبر باندې گنبت جوړول گناه ده، دا ټول خلافِ شرع کارونه دي.

علماء کرام ذکر کوي: "چې پکار دا دي: چې چا دَ خپل رشته دار قبر پوخ کړے وي نو

(1) [سورة الرحمن: 26].

"یَجِب هدمُها" دَ هغې ورانول واجب دي".

**دَ سیدنا علي ﷺ لیږل**

نبي ﷺ دَ خپل ترۀ ځوي سیدنا علي ﷺ لیږلے وو: "چې لاړشه او کوم ځائے چې تا ته یَو تصویر ښکاره کیږي (چې هغۀ دَ جاندار څیز تصویر دے) نو هغه وران کړه او کوم ځائے چې یَو قبر اوچت شوے دے نو هغه ختم کړه او هموار ئې کړه (دَ نورو قبرونو سره ئې برابر کړه)"،[1]
علماء کرام لیکلي دي: "چې دَ یَو لیشت نه سیوا قبر به نۀ اوچتوئ"، قبر به یَو لیشت جوړوئ، مربَّع او څلور کوټه قبر به نۀ جوړوئ لکه دا بعضې خلق تختې راوړي نو چې کله تختې راوړي نو بیا وائي: "یره جي! ما خو تختې راوړي دي او سیمنټ مې نۀ دي لګولي"، دا ورله هسې خبې اوبو ته کوي، بني اسرائیلو باندې دَ مهیانو ښکار حرام وو نو ډند به ئې جوړ کړو، پۀ بله ورځ چې به ورته راغلل نو دَ خالي پۀ ورځ خو به ښکار بند وو، پۀ دغه ورځ به ئې ډندونه جوړ کړل او دَ اتوار پۀ ورځ به ورله دوي لاړل نو اوبو نه به ئې مهیان راواغستل، چا چې به ورته اووئیل: "دا ولې؟ ښکار خو حرام دے"، نو دۀ به ورته اووئیل: "ما خو اوس دَ اوبو نه راواغستل، ما کله ښکار کړے دے، دا خو اوسه پورې پۀ اوبو کښې پراتۀ وو"، نو دوي هم وائي: "قبر پخول خو ګناه ده خو ما خو تختې راوړي دي، پوخ کړے خو مې نۀ دے"، تپوس ترې نه اوکړه: "چې دا څلور کوټه تختې چې دې لګولي دي نو دا جائز دي؟ او دوه دوه لیشته دې قبر بره کړے دے نو دا جائز دي؟ قبر خو به دَ زمکې نه یَو لیشت نه سیوا نۀ بره کوئ".
نو نبي ﷺ اول دَ خپل ترۀ ځوي لیږلے وو سیدنا علي ﷺ او بیا روستو علي ﷺ ابو الحیَّاج اسدي ﷺ لیږلے وو: "چې کوم قبر دَ یَو لیشت نه اوچت دے نو هغه وران کړه او دَ نورو قبرونو سره ئې برابر کړه"، دَ قبر څلور کوټه جوړول ګناه ده.
بهر حال قبرونه پخول او پۀ هغې باندې ګنبتونه جوړول، پۀ هغې عرسونه کول، پۀ هغې میلې کول دا ټول بدعات دي، مسلمانانو رونړو پکار دا دي: چې مونږ او تاسو دَ دې بدعاتو نه ځان اوساتو، الله رب العزة دې پۀ دې دَ عمل کولو توفیق رانصیب کړي (آمین!).
وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب الأمر بتسوية القبر، برقم: (969).

بسم الله الرحمن الرحيم

وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُنْ مِنَ الْغَافِلِينَ

(سورة الأعراف: 205)

# موضوع

# ذکر بالجهر (پۀ زوره ذکر کول)

بتاریخ: 2021-06-04

بمقام جلسۍ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# ذکر بالجهر (په زوره ذکر کول)

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيْفَةً وَدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُنْ مِنَ الْغَافِلِيْنَ﴾.(1)

عزتمندو، حاضرینو، مسلمانانو رونړو! الله رب العزة په مونږ او تاسو بے شماره نعمتونه او احسانات کړي دي، په هغې نعمتونو او احساناتو کښې يَو عظيم نعمت او احسان هغه دا دے: چې الله رب العزة زمونږ او ستاسو دين مونږ له کامل کړے دے، او مکمل کړے ئې دے، په هغې کښې دَ خلقو اقوالو ته، دَ خلقو طريقو ته ضرورت پيښ نهٔ دے، دَ هر يَو شي طريقه هغه مونږ ته شريعت واضحه کړې ده، او ثواب هم په هغې عمل ميلاويږي چې کوم عمل دَ شريعت دَ محمد ﷺ نه ثابت وي، او دَ هغې نه معلوم وي.

## په دين کښې نوې طريقې

ډير خلق داسې دي چې هغوي دين کښې دَ ځان نه نوې نوې طريقې شروع کړي، په دې خيال چې ثواب به ميلاؤ شي، خو په ځائے دَ ثواب ئې عذاب اوشي، دَ ثواب نه محرومه شي، او ګناه ورته ميلاؤ شي، شيطان ئې دهوکه کړي، دَ هغې صحيح لارې نه ئې واړوي، او کهٔ ته ئې اصلاح کوې نو په ځائے دَ دې چې هغه خبره اومني نو په تا به هم اعتراضونه شروع کړي، وائي: دے دا نهٔ مني، او هغه نهٔ مني.

(1) [سورة الأعراف: 205].

**دَبدعت تعريف**

کوم فعل چې دَ رسول الله ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ نه نهٔ وي نقل او نن ئې خلق کوي او هغې ته دَ ثواب کار هم وائي نو هغې ته بدعت وائي.

بدعت کناه کبيره ده، او پهٔ بدعت باندې ثواب نهٔ ميلاوېږي بلکه پهٔ بدعت باندې اُلټه انسان کنانکارېږي.

**دَبدعت اقسام**

دَ بدعت دوه قسمه دي: (۱) يَو بدعتِ حقيقي، (۲) او دويم: بدعتِ اضافي.

(۱) **تعريف دَبدعت حقيقي:** دا دېته وائي: چې يَو سړے پهٔ دين کښې داسې يَو نوے کار دننه کړي، چې دَ هغې نوم ونشان مخکښې نهٔ وي، او هغې له دَ دين نوم ورکړي، او هغې له دَ دين شکل ورکړي نو دا حقيقي بدعت دے، لکه عيد ميلاد النبي چې دا خلق ئې پهٔ کومو طريقو مناؤوئ دَ دې ثبوت دَ رسول الله ﷺ نه نهٔ وو، او دا دَ صحابه کرامو ﷺ پهٔ دور کښې هم نهٔ وو، دَ تابعينو پهٔ زمانه کښې نهٔ وو، يَو خوشحالي ده، هره ورځ ئې کوه، دَ نبي ﷺ ژوند، دَ نبي ﷺ صورت وسيرت هر وخت بيانوه، دَ هغهٔ پهٔ پيدائش هره ورځ بيان کوه خير دے خوشحالي مناؤوه خو کال کښې دا يَو ورځ خاص کول او پهٔ هغې کښې دَ نبي ﷺ پيدائش او ژوند او سيرت ذکر کول او دغه ورځ دَ خوشحالۍ ورځ مناؤول اوجلوسونه ويستل دا دَ نبي ﷺ پهٔ دين کښې نهٔ وو.

(۲) **بدعت اضافي:** ديته وائي: چې دَ يَو څيز اصل وي ليکن طريقې ورته خلقو بدلې کړي دي، پهٔ هغه بدعاتو اضافيؤ کښې يَو بدعت چې اصل ئې پهٔ شريعت کښې وي، دَ اصل نه ئې انکار نهٔ وي ليکن هغه طريقه غلطه وي، چې پهٔ کومه طريقه ئې مبتدعين کوي، او تهٔ دَ هغې رد کوې نو دا دَ هغې عمل نه انکار نهٔ دے، بلکه خلقو دا طريقه دَ ځان نه جوړه کړې ده دَ هغې غلطې طريقې نه انکار دے.

**دَيَوبدعت اضافي رد**

پهٔ دې موقع مونږ دَ يَو بدعت اضافي رد کوو، هغه بدعت چې پهٔ دې وخت کښې خلقو ډير زيات شروع کړے دے او کير چاپيره کيږي، چې هغې ته اجتماعي ذکر وائي، او دا ذکر پهٔ جهر او پهٔ زور کوي، پهٔ جوماتونو کښې ئې يَو شپه خاص کړې وي، چې پهٔ فلانئ شپه به راغونډيږو او ذکر به

کوږ، نو راغونډ شي، بلپونه مرۀ کړي او کلۀ کلۀ پکښې بلپونه هم بل وي، او پۀ يَو آواز باندې ټول "الله هو!" وائي، سر ورسره خوزَوي، چې سرے اوري نو سرے نۀ پوهيږي چې دا دوي څۀ وائي؟ دې طريقه باندې ذکر دا دَ رسول الله ﷺ او دَ صحابۇ ﷺ نه ثابت نۀ دے، يَو دَ الله تعالى ذکر دے او پۀ دې کښې شک نشته چې ذکر ډير لوئي ثواب دے، قرآن او احاديثو کښې دَ ذکر ډير ترغيبات دي، قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾.(1)

"الله رب العزة ډير ډير يادَوئ، دَ الله ذکر ډير ډير کوئ؛ دَ دې دپاره چې تاسو کامياب شئ".

نو دَ الله تعالى ذکر چې څومره ډير کولے شې دومره ډير ثواب ئې دے.

**اصل خبره**

خبره پۀ ذکر کښې نۀ ده، بلکه خبره اصل کښې پۀ جهر کښې ده، چې دا پۀ زوره خلق ذکر کوي نو دې کښې خبره ده، او دارنګې پۀ دې اجتماعيت کښې چې خلق دَ دې دپاره راجمع کيږي او پۀ جمع ذکر کوي نو پۀ دې کښې خبره ده، چې آيا دا ذکر بالجهر بهيئت الاجتماع پۀ شريعت کښې شته او کۀ نا؟ نو دَ دې ذکر نۀ پۀ قرآنِ کريم کښې شته، نۀ پۀ احاديثو کښې شته، نۀ دَ نبي ﷺ نه نقل دي، او نۀ دَ صحابه کرامو ﷺ نه نقل دي، دا خلقو دَ ځان نه يَو بدعت شروع کړے دے. او کۀ تۀ ورته وائي: چې پۀ دې طريقه باندې ئې مۀ کوه، نو وائي: دوي ذکر نۀ مني، ځان ته ذاکرين وائي، او تا به بدناموي، وائي به چې: دوي دَ ذکر منکِر دي. څوک چې پۀ دې طريقه باندې ذکر کوي: "چې جهرًا ئې کوي او پۀ جمع باندې ئې کوي، او غوبل کوي"، دا ذاکرين نۀ دي، دا مبتدعين دي، دا بدعات کوي.

**دَ ذکر کولو طريقه**

ګورئ! مسئله واورئ! قرآنِ کريم دَ ذکر ترغيب ورکړے دے، رسول الله ﷺ دَ ذکر ترغيب ورکړے دے، خو قرآنِ کريم مونږ ته دَ ذکر طريقه هم ښودلې ده، چې ذکر به څنګه کوئ؟ لکه تاسو چې مونځ کوئ نو دَ مونځ طريقه شريعت ښودلې ده، کۀ نا هر څوک چې مونځ کوي او هر څنګه ئې کوي هغه به مونځ وي؟ دَ څلورو رکعتو پۀ ځائے پينځۀ اوکړي نو نۀ کيږي؟ او دَ څلورو پۀ ځائے چې درې اوکړي نو نۀ کيږي، چې اودس دې نۀ وي کړے نو مونځ بۀ نۀ کيږي،

---

(1) [سورة النساء: 115].

قبلې نه دې مخ بل خوا اړولے وي نو مونځ دې نهٔ کيږي نو اوکوره! پهٔ دې تولو صورتونو کښې مونځ دې اوکړو او اونهٔ شو؛ ځکه چې دَ شريعت پهٔ طريقه اونشو، دغه شان دَ ذکر طريقه مونږ له شريعت ښودلې ده، چې دَ الله ذکر کوئ نو څنګه به ئې کوئ؟ قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ﴾.(1)

"يادَوه رب خپل دې (خطاب نبي ﷺ ته دے او مراد ترې نه اُمّت دے)...".

ذکر دَ رب کوه نو څنګه ئې کوه؟ نو الله فرمائي: ﴿فِي نَفْسِكَ﴾.

"پخپل زړهٔ کښې".

بيا فرمائي: ﴿تَضَرُّعًا﴾.

"پهٔ عاجزئ باندې ئې کوه".

ذکر کوې نو مستي به نهٔ کوې، الله ته به عاجزي کوې، ډير خلق چې ذکر کوي نو هغوي ګډيږي دَ ذکر پهٔ وخت کښې دا دَ ﴿تَضَرُّعًا﴾ خلاف دے.

﴿وَخِيفَةً﴾.

"او پهٔ يره باندې ئې کوه".

دَ ذکر پهٔ وخت کښې به چغې نهٔ وهې، مستي به نهٔ کوې، الله تعالى نه به يره کوې. ﴿وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾.

"او بغير دَ جهر دَ وينا نه (يا معنٰى: کم دَ جهر دَ وينا نه)".

پهٔ زوره باندې به الله نهٔ يادَوې، پهٔ پټه پټه ئې يادَوه، جهر به نهٔ کوې، ﴿بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ﴾.

"صبا او بيګا الله يادَوه".

تعميم دَ اوقاتو ته اشاره ده، چې هر وخت الله تعالى يادَوه، دا نهٔ چې پهٔ مياشت کښې يَو ځل به ئې يادَوې، پهٔ هفته کښې يَو ځل به ئې يادَوې، پهٔ کال کښې يَو ځل به وي، او دَ ذکر مجلس به پکښې قائميږي، هر وخت الله تعالى يادَوه، ﴿وَلَا تَكُن مِّنَ الْغَافِلِينَ﴾.

"او مهٔ کيږه تهٔ دَ ناخبرو نه".

(1) [سورة الأعراف: 205].

نو پهٔ دې آيت کښې يَو ذکر ئې ذَ دې اوکړو: چې الله يادَوه خو پهٔ عاجزئ باندې ئې يادَوه، دويم دا: پهٔ يَره الله تعالی يادَوه، او دريم دا: چې پهٔ زوره ئې مهٔ يادَوه، پهٔ پټه ئې يادَوه، او څلورم دا: چې صبا او بيګا ئې يادَوه، يعني هر وخت الله يادَوه او دَ غافلينو نه مهٔ جوړيږه، نو پهٔ دې کښې ئې مونږ ته پوره طريقه اوښودله، چې ستا ذکر به پهٔ عاجزئ باندې وي، ستا ذکر به پهٔ يره باندې وي، ستا ذکر به پهٔ پټه باندې وي، نو کوم چې دَ دې طريقې خلاف وي نو دَ نص دَ قرآن خلاف شو، نو پهٔ هغې ذکر کښې دَ ثواب پهٔ ځائے ګناه ده. دَ دې وجې نه زمونږ دَ فقهې اکثرو کتابونو ليکلي دي: چې ذکر پهٔ پټه باندې بهتر دے، او ثواب دے.

**علامه کبيري رحمه الله ليکلي دي**

"لَيسَ كَلَامُنَا فِي مُطْلَقِ الذِّكْرِ فَإِنَّهُ أَمْرٌ مَرْغُوبٌ فِيهِ فِي كُلِّ الأَحْيَانِ".

وائي: "زمونږ خبره پهٔ مطلق ذکر کښې نهٔ ده (مطلق ذکر خو دَ قرآن او دَ احاديثو نه ثابت دے)؛ ځکه چې مطلق ذکر خو داسې يَو کار دے چې دَ دې ترغيب ورکړے شوے دے، چې هر وخت ئې کوه".

بيا وائي: "بَلْ فِي جَهْرٍ بِهِ وَهُوَ بِدْعَةٌ".

"بلکه خبره پهٔ دې کښې ده: چې دا خلق پهٔ زوره باندې ذکر کوي، نو پهٔ زوره باندې ذکر کولو باره کښې مونږ خبره کوو چې دا بدعت دے".

او بدعت پهٔ ګناهونو کښې لويه ګناه ده، نو پهٔ پټه پټه ذکر کولو دپاره دليل څهٔ دے؟ بيا آيت دليل کښې پيش کوي: "لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿ٱدۡعُواْ رَبَّكُمۡ تَضَرُّعٗا وَخُفۡيَةً﴾".[1]

"او دا بدعت ځکه دے؛ چې الله تعالی فرمائي: دعاء غواړئ دَ ربّ خپل نه پهٔ عاجزئ او پهٔ پټه پټه باندې".

"إِلَّا مَا اسْتَثْنَاهُ الشَّرْعُ".[2]

"مګر هغه چې شريعت کومې خبرې مستثنٰى کړي دي".

چې کوم اذکار پهٔ زوره وئيل ثابت دي نو هغه خير دے.

(1) [سورة الأعراف: 55].

(2) انظر: "شرح منية المصلي": (574).

## دَ قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله قول

دَ دې وجې دَ علماء ديوبند يَو لوئي عالم دے، قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله دَ هغهٔ تفسير دے "التَّفسِيرُ الْمَظْهَرِيْ" هغهٔ ليکلي دي: "ثُمَّ أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلٰى أَنَّ الذِّكْرَ سِرًّا هُوَ الأَفْضَلُ وَالْجَهْرُ بِالذِّكْرِ بِدْعَةٌ".

"بيا اجماع دَ علماؤ پهٔ دې باندې ده: چې ذکر کول پهٔ پټه باندې بهتر دي او پهٔ زوره باندې ذکر کول بدعت دے".

احناف هم دا وائي، دَ ديوبند علماء هم دا وائي: چې ذکر پهٔ پټه باندې بهتر دے، زهٔ حيران يم هغې خلقو ته چې هغوي ځان ته ديوبنديان هم وائي او بيا ذکر بالجهر کوي، او چې بيا ئې منع کوې نو جنګ درسره کوي، وائي: دا اوګوره! ذکر نهٔ مني، دا غريبانان نهٔ دَ احنافو دَ مذهب نه خبر دي، او نهٔ دَ علماء ديوبند دَ منهب نه خبر دي. هسې ځان ته تول ديوبنديان وائي، دا نوم دَ ديوبند پهٔ ځان کيخودل يَو جدا شے دے، او عمل پهٔ طريقه دَ ديوبند باندې کول دا جدا شے دے، پهٔ دې ملک کښې مصيبت دا دے: چې خلق ځان له نوم دَ ديوبندي ايږدي، او عمل ئې دَ ديوبند نهٔ وي، عمل ئې دَ بريليانو وي، خو چونکه دَ دې خلقو دَ ديوبند سره محبت دے علماء ديوبند سره ئې مينه ده، او دَ بريليانو نه ئې نفرت دے نو بريلے هم ځان له ديوبندے وائي، وائي: زهٔ هم ديوبندے يم، او حقيقت کښې هغه کټر بريلے وي؛ ځکه دَ هغهٔ هغه عمل دَ ديوبند دَ مِشن نه خلاف وي.

الحمد لله احناف دَ اشاعت التوحيد والسنة علماء دي، او ديوبنديان هم دَ اشاعت التوحيد والسنة علماء دي، چې دَ فقهې يَوه خبره داسې نشته چې زمونږ قول يا فعل دَ هغې خلاف وي، دَ ديوبند دَ علماؤ داسې يَو خبره نشته چې دَ اشاعت دَ علماؤ قول يا فعل دَ هغې خلاف وي، بعضې خلق به ځان له احناف وائي او ځان ته به ديوبنديان وائي او عمل به ئې خلافِ شريعت وي، عمل به ئې خلاف وي دَ احنافو دَ مذهب نه، او عمل به ئې خلاف وي دَ علماء ديوبند نه، نو دا ديوبندي عالم ليکلي دي: چې اجماع دَ علماؤ ده چې ذکر پهٔ پټه کول بهتر دي، او پهٔ زوره باندې ذکر بدعت دے، "إِلَّا فِي مَوَاضِعَ مَخْصُوْصَةٍ مَسَّتِ الْحَاجَةُ فِيْهَا إِلَى الْجَهْرِ بِهِ كَالأَذَانِ وَالإِقَامَةِ وَتَكْبِيرَاتِ التَّشْرِيْقِ".[1]

---

(1) انظر: "التفسير المظهري": (1326) أو (361/3).

"مګر پهٔ خاصو ځايونو کښې چې هغې له ضرورت پيښ شوے دے دَ جهر کولو نو هغه خير دے (چې دَ شريعت نه ثابت دے نو هغې کښې مونږ جګهړې نهٔ کوو)، لکه آذان شو او تکبيرات دَ تشريق شو چې دا پهٔ تيزه وئيلے کيږي".

**پهٔ اشاعت والا اعتراض**

بعضې خلق دا اعتراضونه کوي: چې تاسو وائي: چې ذکر پهٔ پټه بهتر دے نو مونږ دا آذان ولې پهٔ لوړ سپيکر کښې کوو، دا خو هم ذکر دے کنه؟ "الله أكبر، الله أكبر!" دا دَ الله ذکر نهٔ دے؟ "أشهد أنْ لَّا إله إلا الله" ذکر نهٔ دے؟ "أشهد أنَّ محمدًا رَّسول الله" ذکر نهٔ دے؟ نو دا آذان بيا ولې پهٔ چغه وائي؟ دا اقامت هم ذکر دے، دا ولې پهٔ چغه وائي؟ دا امام صاحب چې الله إكبر! وائي، نو دا ولې پهٔ چغه وائي؟ بيا چې کلهٔ ښکته کيږي نو هم "الله أكبر!" او چې بره کيږي بيا "الله أكبر!" وائي، دا ذکر نهٔ دے څهٔ؟ دغه شان چې کله پهٔ لوئي اختر کښې تکبيرات تشريق وائي، درويشت (۲۳) مونځونه جوړيږي، چې پهٔ دې کښې دَ هر مانځهٔ نه پس تاسو تکبير وايئ: "الله أكبر! الله أكبر! لا إله إلا الله، والله أكبر! الله أكبر، ولله الحمد" نو دا ذکر نهٔ دے؟

**جواب**

مونږ وايو بے شکه ذکر دے، پهٔ دې کښې درسره زمونږ جهګړه نشته، مونږ دَ شريعت پابند يُو، کوم ځائے کښې چې ذکر پهٔ جهر ثابت دے هلته کول ثواب دے، چرته چې نهٔ دے ثابت هلته نهٔ کول ثواب دے، مونږ هم دا منو چې پهٔ دې ځائے کښې ثابت دے دا کوه او پهٔ دې کښې ضرورت دے، دَ هغې دَ وجې نه جهر ثابت دے، چې دا دَ آذان الفاظ ذکر دے، خو بُل طرف ته دا دَ آذان الفاظ اعلان هم دے، اوس کهٔ تهٔ آذان پهٔ زړهٔ کښې پهٔ پټه پټه باندې اووائې، نو خلق به څنګه خبريږي چې مانځهٔ له راشي؟ پهٔ دې کښې خلقو له دَ مانځهٔ دعوت دے، نو آذان پهٔ ټوله دنيا کښې دَ دې قاعدې نه مستثنٰى دے، چې آذان به پهٔ زوره کوې، دا پهٔ دې ذکر کښې نهٔ راځي کوم ذکر چې پهٔ پټه پکار دے، اقامت به پهٔ زوره باندې کوې، دا پهٔ دې کښې نهٔ راځي، دَ تکبيرات التشريق استثناء شته، دا پهٔ زوره وئيل يَو ځل واجب دي، بعضې خلق خو ورته اوغلې، نو بيا ئې نهٔ بس کوي، امام صاحب وائي: يَو ځل به ئې وائي، دارنګې "تکبيراتِ

الانتقال في الصلوٰة" امام چې تکبیرات وائي دَ تکبیر تحریمې پهٔ وخت، رکوع ته دَ خکته کیدو پهٔ وخت کښې، سجدې ته دَ تلو پهٔ وخت کښې "الله أكبر" وائي، "تسميع يعني: سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ" هم پهٔ تیزه وائي دَ جَمعې پهٔ مانځهٔ کښې، دیته ضرورت دے، کهٔ یَو سړے روند دے، او نهٔ شکته کیږي نو هغهٔ له څهٔ پته لګي چې امام ولاړ دے او کهٔ خکته شو؟ نو چې تهٔ "الله أكبر" اووائي نو هغهٔ ته به پته اولګي نو تا سره به رکوع ته خکته شي، تکبیرات الانتقال کښې به صرف "الله أكبر" وائي، او تکبیر تحریمه کښې به ورسره لاس هم اوچتوې.

**پهٔ تکبیره تحریمه کښې دَ لاس اوچتولو حکمت**

علماؤ لیکلي دي: حکمت پکښې دا دے: کهٔ یَو سړے تا پسې روستو ولاړ دے او هغه کوڼ دے، او هغه "الله أكبر!" نهٔ اوري نو چې تا لاسونه اوچت کړل، او ټولو خلقو لاسونه اوچت کړل نو هغهٔ به پوهه شي چې نیت ئې اوتړلو، نو هغهٔ به هم لاس اوچت کړي او نیت به اوتړي، او کهٔ چرې یَو سړے ړوند دے او امام "الله أكبر!" پهٔ زوره باندې اووائي، او دَ هر تکبیر سره "الله أكبر!" پهٔ زوره باندې وائي نو هغهٔ له به دا پته اولګي چې امام نیت اوتړلو، او امام خکته شو، او امام بره شو، کني حافظ صاحب به بیا څنګه کیښناستو او پاسیدو؟ هغهٔ له خو به هډو پته نهٔ لګیده، دا ضرورت وي.

دارنګې جهري مونځونو کښې پهٔ جهر قراءت دَ شریعت نه ثابت دے، تکبیرات تشریق دا دَ شریعت نه ثابت دي، یَو سړے بیت الله ته لاړشي او هلته دَ احرام پهٔ حالت کښې دے تلبیه وائي، دا پهٔ زوره تلبیه وئیل دا دَ شریعت نه ثابت دي؛ لهٰذا د دَ دې قانون نه مستثنٰی دي.

"تفسیر مظهري" کښې بیا وائي: "إِلَّا فِي مَوَاضِعَ مَخْصُوْصَةٍ مَسَّتِ الْحَاجَةُ فِيْهَا إِلَى الْجَهْرِ بِهِ كَالْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ وَتَكْبِيْرَاتِ التَّشْرِيْقِ وَتَكْبِيْرَاتِ الْاِنْتِقَالِ فِي الصَّلَاةِ لِلْإِمَامِ وَالتَّسْبِيْحِ لِلْمُقْتَدِيْ إِذَا نَابَ نَائِبَةٌ وَالتَّلْبِيَةُ فِي الْحَجِّ وَنَحْوِ ذٰلِكَ".(1)

"ذکر پهٔ خاص ځایونو کښې چې هغې ته ضرورت پیښ شوے دے نو پهٔ زوره ذکر کوه لکه آذان شو، اقامت شو، او دَ لوئي اختر پهٔ ورځو کښې تکبیرات تشریق شو، او امام دَ یَو حالت نه

(1) انظر: "التفسير المظهري": (1326) أو (361/3).

بل حالت ته پۀ مانځۀ کښې ځي نو دے به پۀ زوره باندې "الله أکبر!" وائي او "سبحان الله" وئيل دَ مقتدي دپاره چې يَو حادثه او يَو کار پۀ مانځۀ کښې پيښ شي، بل څۀ مسئله راپيښه شي".

**مسئله**

پۀ مانځۀ کښې امام خطاشو نو مقتدي به فتح ورکوي، مثال پۀ طور باندې څلور رکعته مونځ دے، او امام پۀ دريم رکعت باندې کيښناستو، اوس مقتدي به فتح ورکوي، نو اکثر مقتديان پۀ دې فتح هم نۀ پوهيږي، ډير مقتديان امام ته وائي: "الله أکبر!"، نو "الله أکبر!" خو هغۀ وئيلے دے، هغۀ چې سر رااوچت کړو او کيښناستو نو "الله أکبر!" ئې اونۀ وئيلو؟ "الله أکبر!" وئيل نشته دے، پۀ دې ځائے کښې مقتدي چې فتح ورکوي نو دے به امام ته "سبحان الله!" وائي، نو کله چې مقتدي "سبحان الله!" اووائي نو امام به پوهه شي چې زما نه څۀ غلطي شوې ده، نو کۀ دَ پاسيدو مقام وو او کيښناستلے وي، نو چې پۀ چپ به پاسي او څلورم رکعت به اوکړي.

او کۀ چرته امام پنځم رکعت ته پاسيدو نو پينځۀ رکعته خو نشته، نو بيا به مقتدي اووائي: "سبحان الله!" نو امام به پوهه شي چې زما دا پاسيدل چې دي نو دا زيادت وو، نو واپس به امام چپ پۀ چپه کيښني او کله چې قعده خَلاصه کړي تشهُّد پورې سبق چې اووائي بيا به سجده سهوه اوکړي، خبره به خلاصه شي.

نو خبره مو دا کوله چې مقتدي امام له فتح ورکوي نو پۀ زوره به "سبحان الله!" تکے وائي، نو دې ته اوس ضرورت دے؛ ځکه کۀ دے اوس چپ پاتي کيږي نو امام به څنګه خبريږي ؟ او پۀ دې "سبحان الله!" وئيلو باندې مونځ نۀ ماتيږي.

او کۀ چرې يَو سړے امام ته اووائي: "کيښنه!"، يا ورته وائي: چې "پاسه!" نو مونځ دې سره ماتيږي.

**واقعه**

يَو کس وئيل: مانځۀ کښې خطا شوے اووم دعائے قنوت رانه پاتې شوے وو... او دا خبره هم يا اوساتئ! زمونږ عوام هم پۀ دې نۀ دي واجب چې کله پاتې شي نو امام ته پته ده چې زما نه واجب پاتې شو، بيا ئې مۀ مجبوره کوه، چې بيا ئې دَ فرضو نه واجبو ته واپس کوې، امام پريږدوه، آخر کښې به سجده سهوه اوکړي، نو امام وئيل: چې ما وِتر کول او زما نه دعائے قنوت هير شو، کله کله دَ سړي نه وِترو کښې هير شي، دارک رکوع ته لاړشي، مقتديانو روستو نه چغې جوړې کړې: "سبحان الله!"، څوک چغې وهي، وائي: "الله أکبر!"، څوک پکښې وائي: "دَ غوَږونو الله أکبر!"،

ما پروا نهٔ لرله، مونځ مې کولو چې آخر کښې به سجده سهو اوکړم، وائي: دوي هغه خپل آوازونه نهٔ پرېږدي، ما دَ معمول مطابق مونځ کولو، دَ چا فتح مې نهٔ اغسته وائي: يَو مقتدي پکښې ډېر کرم وو هغه راغلے وائي: پهٔ غوړونو کښې راته وائي: "چې تهٔ اورې نه! دا ټول خلق درته چغې وهي: چې دَ غوړونو الله أكبر! پاتې شوے دے، او تهٔ پخپله مخه روان ئې". نو دا به نهٔ وائي، صرف "سبحان الله!" اووايه، خو کهٔ فرض پاتې شي، او دا تسبيح وئيل صرف للرجال دے، صرف سړي به دَ آواز "سبحان الله!" سره فتح ورکوي، زنانه به داسې نهٔ کوي. هان! دَ زنانوٓ دَ فتحې طريقه بله ده:

**دَ زنانوٓ دَ فتحې طريقه**

زنانه به تسبيح نهٔ وائي، کهٔ زنانه چرته پوهه شي چې امام خطا شو، دَ نبي ﷺ پهٔ زمانه کښې به زنانه هم جومات ته راتلې، پرده به وه، اوس فتنې ډېرې دي، زنانه اوس منع دي، نو کهٔ چرته زنانه جومات کښې وي او امام خطا شي نو امام له دَ فتحې ورکولو ضرورت پيښ شي، نو هغهٔ هم فتح ورکولے شي، دَ زنانوٓ دَ فتحې طريقه به دا وي: چې دا يَو لاس به دې بل لاس ته راخلاص کړي نو چې دَ لاس آواز (ټس اواز) اوشي نو امام به پوهه شي چې زما نه غلطي راغلې ده، نو امام به دَ خپلې غلطۍ تدارُک اوکړي، زنانه به "سبحان الله!" نهٔ وائي؛ ځکه دَ زنانوٓ آواز فتنه ده، چې هسې نه بيا خلق پهٔ مانځهٔ کښې دا سوچ کوي، چې دا به کومه ښځه وه؟ دا خو ډېره اوښياره وه، چې دا سړي پرې هډو پوهه نهٔ شول او دا ښځه پرې پوهه شوه، او دَ دې خو دا آواز ډېر مزيدار دے، چې دا ښځه به څنګه وي! نو بيا به دَ خلقو توجُّه بل خوا ځي، نو زنانه به پهٔ زوره فتح نهٔ ورکوي، هغهٔ به صرف دَ لاس نه ټس اوباسي.

دا پهٔ زوره باندې امام له فتح ورکول دا دَ شريعت نه ثابت ده، دا بدعت نهٔ دے.

**تلبيه وئيل**

حج له دې الله تعالیٰ مونږ او تاسو ټول بوځي (آمين!)، حج له لاړې او تلبيه وائي: «لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ».[1] دا بدعت نهٔ دے، خبره زمونږه پهٔ هغه ذکر کښې ده، چې نهٔ حج له تلے وي او نهٔ امام خطا شوے

(1) أخرجه البخاري في كتاب الحج، باب التلبية، برقم: (1549)، واللفظ له. ومسلم في كتاب الحج، باب التلبية وصفتها ووقتها، برقم: (1184).

دے، نۀ تۀ امام ئې چې پۀ زوره "الله أكبر" اووائي، نۀ دَ اختر ورځې دي، چې تكبيرات التشريق وائي، نۀ آذان دے، نۀ اقامت دے، او دغه شان خلق راغونډ شوي دي، او پۀ زوره زوره باندې لګيا دي، او "الله هو، الله هو!" چغې وهي او څوک وائي: "لا إله إلا الله"، څوک وائي: "سبحان الله"، وائي، څوک "الحمد لله" وائي، او څوک نور ذکرونه کوي، پۀ دې طريقه باندې ذکر کول بغير دَ ضرورت شرعي نه، دا ذکر بدعت دے.

**اهمه خبره**

ګوره! ذکر يَواځې: "لا إله إلا الله"، "سبحان الله"، "الحمد لله" او "الله أكبر" ته نۀ وائي، تلاوت ذکر دے، "لا إله إلا الله"، "سبحان الله"، "الحمد لله" او "الله أكبر" ذکر دے، مونځ ذکر دے، آذان ذکر دے، اقامت ذکر دے، دَ ذکر ډيره وسيعه کرئ ده، تردې پورې چې دَ علم خبرې زده کول دا هم ذکر دے، دا ټول پۀ ذاکرينو کښې راځي نو کوم ذکر چې پۀ جهر ثابت نۀ وي نو هلته به جهر نۀ کوي.

**دَ قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله دويم قول**

قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله بل ځائے کښې ليکلي دي: "وَالْأَصْلُ فِي الْأَذْكَارِ الْإِخْفَاءُ وَالْجَهْرُ بِهِ بِدْعَةٌ".

"اصل پۀ اذکارو کښې هغه إخفاء ده، او پۀ پټه ذکر دے، او ذکر پۀ زوره کول دا بدعت دے".

"فَإِذَا وَقَعَ التَّعَارُضُ فِي الْجَهْرِ يُرَجَّحُ الْأَقَلُّ".

"کلۀ چې تعارض راشي پۀ جهر کښې (مطلب دا دے: چې بعضې رواياتو کښې دَ جهر ذکر راشي او بعضې کښې دَ إخفاء ذکر کوي) نو ترجيح به اقل ته ورکولے شي"، لکه امام ابوحنيفه رحمه الله وائي: چې يَو ځل به پۀ جهر زوره تکبير تشريق وائي، ډير به نۀ وائي.

او بيا دے وائي: "وَيَدُلُّ عَلَى كَوْنِ ذَاكِرِ السِّرِّ أَفْضَلُ وَمَجْمَعًا عَلَيْهِ مِنَ الصَّحَابَةِ وَمَنْ تَبِعَهُمْ".[1]

"دا دليل دے پۀ دې باندې چې ذکر پۀ پټه باندې بهتر دے، او پۀ دې دَ صحابوٓ رضي الله عنهم اجماع ده، او دَ روستو تابعينو هم پۀ دې اجماع ده".

**دَ حسن بصري رحمه الله قول**

قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله دَ حسن بصري رحمه الله قول نقل کوي وائي: "قَوْلُ الْحَسَنِ: إِنَّ بَيْنَ

(1) انظر: "التفسير المظهري": (1326) أو (361/3).

دَعْوَةِ السِّرِّ وَدَعْوَةِ الْعَلاَنِيَةِ سَبْعُوْنَ ضِعْفًا".[1]

"دَ حسن بصري رحمه الله وينا ده: دَ پټې دعاء او دَ ښكاره په مينځ كښې اويا چنده فرق دے".

پټ ذكر او پټه دعاء دَ ښكاره نه اويا چنده بهتره ده، نو زمونږ دَ فقهې علماؤ دا ليكلي دي.

**علامه حلبي رحمه الله قول**

"قَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ رحمه الله إِنَّ رَفْعَ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ بِدْعَةٌ مُخَالِفٌ لِّلأَمْرِ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ إِلاَّ مَا خُصَّ بِالإِجْمَاعِ".

"امام ابو حنيفه رحمه الله وئيلي دي: په زوره باندې ذكر كول دا بدعت دے او دا مخالِف دے دَ دَ الله تعالى دَ هغې حكم چې الله تعالى په قرآنِ كريم كښې حكم كړے دے: ﴿وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ دَ دې آيت په خلاف دے خه! مګر هغه چې په اجماع باندې خاص كړے شوے وي".

ما درته دَ هغې مثالونه اوښودل، نو هغه بيا په جهر باندې كوه.

**دَ امام سرخسي رحمه الله قول**

"وَالْمُسْتَحَبُّ عِنْدَنَا فِي الأَذْكَارِ وَالدُّعَاءِ الْخُفْيَةُ إِلاَّ فِيمَا تَعَلَّقَ بِإِعْلاَنِهِ مَقْصُودٌ".

"زمونږ په نزد باندې مستحب دا دي: چې ذكر به په پټه باندې كوې، دعاګانې به په پټه باندې غوارې مګر هغه چې دَ هغې په جهر او په إعلام كښې مقصود تعلق وي نو بيا خير دے".

"كَالأَذَانِ لِلإِعْلاَمِ، وَالْخُطْبَةِ لِلْوَعْظِ، وَتَكْبِيرَاتُ الصَّلَوَاتِ لِإِعْلاَمِ التَّحَرُّمِ وَالاِنْتِقَالِ وَالْقِرَاءَةِ لِإِسْمَاعِ الْمُؤْتَمِّ".[2]

"لكه آذان كښې خلقو له دعوت دے، اقامت كښې خلقو له دَ مونځ خبردارے دے، او په خطبه كښې وعظ او نصيحت دے خلقو ته لكه زهٔ تقرير كوم: نو دا خو وعظ دے كنه، كهٔ دا زهٔ په پټه باندې اوكړم نو تاسو به دَ څهٔ نه خبريږئ، نو دا ضرورت دے، او په تكبيراتو دَ مونځ كښې خلقو له خبرول دي: چې اول كښې خبردارے دَ تكبير تحريمې دے، چې امام صاحب نيت اوتړلو نو تاسو هم نيتونه اوتړئ، او بيا تكبيرات انتقاله دي، نو هغې كښې خبرول دَ امام

(1) انظر: "التفسير المظهري": (1326) أو (361/3).

(2) انظر: "المبسوط" للسرخسي: (6/4).

دي خلقو لره چې دا خلق پوهه شي چې امام دَ يَو حالت نه بل حالت ته لا رلے، نو امام پهٔ دې کښې خلق خبرَوي: چې زهٔ خکته کيږم او تاسو خکته شئ، يا زهٔ دَ سجدې نه بره کيږم نو تاسو هم بره شئ، نو دا تکبيرات دَ خبرولو دپاره دي دا ضرورت دے، تسميع چې پهٔ زوره وائي نو پهٔ دې کښې هم دَ امام خلقو لره خبرول دي چې زهٔ دَ رکوع نه رااوچت شوم، دارنګې قراءة دَ امام شو، دَ دې پهٔ شريعت کښې حکم دے، او امام به مانځهٔ کښې قراءة پهٔ زوره باندې کوي، او مقتدي به ورته غوږ کيخودلے وي".

او بيا وائي: "فَالتَّلْبِيَةُ لِلشُّرُوعِ فِيمَا هُوَ مِنْ إِعْلَامِ الدِّينِ فَلِهَذَا كَانَ الْمُسْتَحَبُّ رَفْعَ الصَّوْتِ بِهِ".[1]

"دارنګې تلبيه چې ده نو دې سره دَ اسلام يَو لوئي رُکن شروع کيږي؛ نو لهٰذا تلبيه پهٔ جهر او تيزه باندې وايه دا ثابت او مستحب دي".

دَ دې نه علاوه پهٔ نورو ځايونو کښې پهٔ جهر سره ذکر کول دا بدعت دے.

**دَعلامه ابن نجيم المصري ؒ قول**

" فَقَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ ؒ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ بِدْعَةٌ يُخَالِفُ الْأَمْرَ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالٰى ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾".

"امام ابو حنيفه ؒ وئيلي دي: چې پهٔ زوره باندې ذکر کول بدعت دے، او دا دَ الله تعالی دَ قول نه خلاف دے، چې الله تعالی امر کړے دے: چې الله تعالی به پهٔ پټه باندې يادَوئ".

نو دا دَ قرآن دَ آيت خلاف دي، ما درته اووئيل: چې دَ الله تعالی کتاب کښې يَو خبره راغله نو بيا دَ خلقو خبرو ته څهٔ اعتبار نشته، کهٔ څوک ئې خلاف کوي نو دَ هغهٔ هغه خبره به نهٔ مني، امام صاحب وائي: دا بدعت دے؛ ځکه دَ الله تعالی دَ کتاب خلاف دے، بيا ليکي: "فَيُقْتَصَرُ فِيْهِ عَلٰى مَوْرِدِ الشَّرْعِ".

"بس اقتصار به کولے شي پهٔ دې کښې دَ شريعت پهٔ راتلو"، يعني: کوم ځائے کښې چې پهٔ جهر باندې ثابت وي هم هغه به وي نور به نهٔ قياس کوي.

څوک هم دا نشي ښودلے چې نبي ﷺ او صحابه کرامو ؓ به پهٔ هفته کښې يَو ځل راغونډيدل او پهٔ جمع به ئې ذکر کولو، او "الله هو، الله هو" به ئې وئيلو، کهٔ چا ثابت کړل نو پهٔ يو

(1) انظر: "المبسوط" للسرخسي: (6/4).

حرف ایک هزار (۱۰۰۰) روپۍ انعام، نهٔ شي ثابتولے، خو بس "چونکه، چنانچه، لٰکن؛ لهٰذا"، بس جي! ذکر ثواب دے او چې پهٔ جمع اوشي نو بيا ډير ثواب دے، ډير کارونه دي چې تهٔ ئې پهٔ جمع نهٔ کوې، او پهٔ جمع کول ورته ګناه وائې، نو ديته څنګه پهٔ جمع باندې ثواب وائې؟ کوم شے چې پهٔ جمع ثابت نهٔ وي هغه به پهٔ جمع باندې نهٔ کوې، پهٔ جمع باندې کول ئې بدعت دے.

**دَ ابو موسى الأشعري ﷺ روايت**

ابو موسٰی اشعري ﷺ فرمائي: لَمَّا غَزَا رَسُولُ اللهِ ﷺ خَيْبَرَ، أَوْ قَالَ: لَمَّا تَوَجَّهَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَشْرَفَ النَّاسُ عَلَى وَادٍ، فَرَفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالتَّكْبِيرِ: اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ، إِنَّكُمْ لاَ تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلاَ غَائِبًا...»".

"هر کلهٔ چې رسول الله ﷺ دَ خيبر جهاد اوکړو نو هر کلهٔ چې دَ الله نبي ﷺ واپس راروان شو مديني ته، نو خلق پهٔ يَو ډيرۍ باندې اوختل اوچت ځائے ته اوختل، نو صحابه کرامو ﷺ پهٔ زوره باندې اووئيل: الله أكبر! الله أكبر! (حالانکې دا دَ دُشمن دَ يَرولو موقع وه) خو نبي ﷺ اوفرمائيل: اے خلقو! پهٔ خپلو ځانونو باندې رحم اوکړئ، نرمي اوکړئ، يقينًا تاسو نهٔ رامدد کوئ کونړ او نهٔ غائب لره"، تاسو چې دَ کوم ذات ذکر کوئ نو هغه کونړ نهٔ دے، تاسو چې ورته چغې وهئ نو هغه غائب نهٔ دے چې تاسو ورته چغې اووهئ".

بلکه «إِنَّكُمْ تَدْعُونَ سَمِيعًا قَرِيبًا وَهُوَ مَعَكُمْ».[1]

"يقينًا تاسو رامدد کوئ هغه ذات چې هغه اوريدونکے او هغه نزدې دے، او حال دا دے چې هغه تاسو سره موجود دے"، نو بيا ولې چغې ورته وهئ؟

نو مسلمانانو رونړوا خبره مې دا کوله: چې صحيح حديث دَ "صحيح البخاري" او "صحيح مسلم" دے: چې نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته نهٔ وائې: چې تاسو بنې چغې اووهئ؟ چې کافران اوزغلي، بلکه تاسو ذکر دَ الله تعالی کوئ او الله تعالی ئې پهٔ پټه هم اوري، نو پهٔ زوره ذکر ته څهٔ ضرورت شو؟ مقصد مې دا دے: چې يَو بدعت شروع دے، مُليان ئې کوي، عوام ئې هم دَ ځان سره شريک کړي دي، چې مونړ به نن ستاسو دې جومات کښې ذکر کوو، او خلق ورته چائے

(1) أخرجه البخاري في كتاب المغازي، باب غزوة خيبر، برقم: (4205).

ډوډۍ راوړي، بیا هغهٔ خلق ورسره یا کیښني یا لاړشي او دوي ځان سره کسان بوتلي وي پهٔ جهر باندې ذکر شروع کړي دا طریقه دَ رسول الله ﷺ نهٔ ده.

گوره! دَ مونځ نه بهتر عمل نشته، خو چې کوم مونځ پهٔ جمع ثابت دے نو پهٔ جمع ئې کوه، چې پهٔ جمع نهٔ دے ثابت نو بیا پهٔ جمع نشته، گوره! دا ټول ذکر دے کنه! چې ډوډۍ دې اوخوره نو دَ ډوډۍ دعاء اووایه دا ذکر دے، اوبهٔ دې اوڅښکلې نو دَ هغې دعاء اووایه، نو پهٔ دې کښې جهر شته؟ جامې دې واچولې نو دَ هغې دعاء ده هغه اووایه، جومات ته رادننه کیږې نو دعاء اووایه، دَ جومات نه بهر کیږې نو دعاء اووایه، دا ټول اذکار دي نو دا به تهٔ پهٔ زوره وائې؟ او کهٔ پهٔ پټه به ئې وائې؟ نو خومره چې دا پهٔ پټه دي نو دغهٔ شان نور اذکار هم پهٔ پټه بهتر دي.

**اجتماعیت بدعت دے**

پهٔ کوم ځیز کښې چې اجتماعیت ثابت نهٔ وي نو هغې کښې اجتماعیت هم بدعت دے، دا اذکار او عبادتونه ټول ځان له بهتر دي، دغه نور ذکرونه ځان له پهٔ پټه بهتر دي، فرض عبادت چې دے هغه پهٔ جمع کول پکار دي او هغه ځان له کول خلافِ سنت دے، دَ بعضې علماؤ پهٔ نزد جمع سره مونځ واجب دے، بعضې خلق پهٔ دې دومره زور لگوي چې فرض مانځهٔ ته جمعې له نهٔ حاضریږي او دَ ذکر حلقو له به خامخه حاضریږي، څېل جومات له به جمعې له نهٔ ځي او دَ ذکر دپاره به دریم او څلورم کلي ته ځي، چې ورته وائې: څهٔ کوې؟ نو وائي: هلته پهٔ جمع باندې ذکر کؤو، هلکه! دَ جمعې مونځ چې سنتِ مؤکده دے دَ امام صاحب پهٔ نزد باندې او دَ بعضې علماؤ پهٔ نزد باندې واجب دے، دَ هغې درسره غم نشته، او چې کوم بدعت دے نو دَ هغې درسره غم دے او هغې ته منډې وهې!، دا دَ شریعت خلاف دے.

او بعضې اجتماعي ذکرونه چې بعضې خلقو دَ کجهورو دَ هډوکو بوجۍ ډکې کړي دي.

**واقعه**

یَو ځائے کښې راروان وو، مانځهٔ ته اودریدو، او خلق ناست وو، نو ما وئیل: کهٔ چا ورله ډوډۍ کړې ده، او کهٔ څهٔ چل دے؟ بالکل یَو ځائے پهٔ لائن باندې کسان ناست وو، چې ما اوکتل نو یَو کس راغلے او هغهٔ دَ کجهورو دَ هډوکو نه یَو بوجۍ راډکه کړې وه، او پهٔ هغې لائن ئې هډوکي خوارهٔ کړل، او دوي شروع شول، او ذکر ئې کولو، دا دَ رسول الله ﷺ طریقه نهٔ ده، تهٔ پخپل

کور کښې ذکر کوه، دے به ئې په جومات کښې کوي، بل به په دوکان کښې ناست وي، دوکان کښې به ذکر کوي، بل به په لاره روان وي په لاره به ذکر کوي، بس چې کوم ځائے ئې ذکر کوه، دَ ذکر دپاره خاص وخت مقرروَل نشته، او خاص ځائے مقررول او يَو خاص کيفيت جوړول دا نشته، چې چرته ئې نو هلته ذکر کوه، ذکر نه انکار هيڅ څوک نهٔ شي کولے، خو دَ ذکر طريقه چې کومه خلقو دَ ځان نه جوړه کړې ده، دا خلافِ شريعت ده، او دَ دې هيڅ څهٔ ثبوت دَ نبي ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ نه نشته، لکه چې ما درته دَ احنافو کتابونه اوښودل، چې دا بدعت دے، او بدعت ته ثواب وئيل خو لا نوره غټه ګناه ده.

الله تعالى دې مونږ له په سنتو دَ نبي ﷺ باندې دَ عمل کولو توفيق رانصيب کړي، او مونږ او تاسو دې الله تعالى دَ بدعاتو نه اوساتي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ

(سورة المؤمن: 60)

# موضوع

# دَ سنتو نه روستوپهٔ جمع دعاء کول

**بتاريخ: 26-01-2007**

خطيب

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله**

# دَ سنتونه روستوپهٔ جمع دعاء كول

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «الدُّعَاءُ هُوَ العِبَادَةُ».(2)

قابلِ قدر حاضرينو، عزت منڈو مسلمانانو رونړوا ما ستاسو پهٔ وړاندې دَ الله رب العزة دَ كتاب قرآنِ كريم نه يَو آيتِ كريمه اولوستلو، او دَ احاديثو دَ رسول الله ﷺ نه ما ستاسو پهٔ وړاندې يَو حديث مباركه عرض كړو، دَ ټولو نه مخكښې دَ الله تعالى پهٔ دربار كښې دعاء ده چې اول الله رب العزة پهٔ دې مختصر وخت كښې زما دَ خُلې نه دَ قرآن او سنت مطابق خبرې اوباسي او بيا دې پهٔ هغې باندې ما او تاسو له دَ عمل كولو توفيق رانصيب كړي، پهٔ سابقۇ جُمعو كښې دَ مونځ ترجمه او مختصر تشريحات تاسو اوريدلي وو، اوس دَ مونځ نه روستو چې كوم عمل دے چې هغې ته "دعاء" وائي، دَ هغې فضائل او دَ هغې طريقه پهٔ شريعت كښې څنګه ده؟

**دينِ اسلام كامل شريعت دے**

عزتمندو! ياد ساتئ! شريعت دَ جناب رسول الله ﷺ داسې كامل شريعت دے، چې پهٔ دې

(1) [سورة المؤمن: 60].

(2) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب: ومن سورة البقرة، برقم: (2969)، واللفظ له، وأبوداود في تفريع أبواب الوتر، باب الدعاء، برقم: (1479).

شريعت کښې يَو داسې مسئله نۀ راځي چې دَ هغې طريقه او دَ هغې حل پۀ شريعت دَ نبي ﷺ کښې موجود نۀ وي، شريعت کامل شوے دے، کله چې دَ جناب رسول الله ﷺ آخر آدوار دي، آخري وختونه دي نو الله رب العزة آية راليږي: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾.(1)

الله تعالى فرمائي: "نن ورځې (دغه وخت) ما ستاسو دپاره دين مکمل کړو...".

دين مکمل شوے دے؛ ځکه چې الله تعالى خپل پيغمبر جناب رسول الله ﷺ دَ نيم کړي دين دپاره نۀ وو راليږلے، دَ الله پيغمبر ﷺ چې کله پوره احکامات مونږ او تاسو له رااورسَول نو دَ هغې نه روستو دَ الله پيغمبر ﷺ دَ دنيا نه رخصت شو، داسې يَو مسئله دَ الله دَ پيغمبر ﷺ نه نۀ ده پاتې شوې چې هغه نيم کړې پاتې شوي وي، او امت له دَ هغې نه پريشاني جوړه شوي وي.

يَو کس يَو صحابي ته وائي: "چې تاسو ته خو ستاسو دا پيغمبر ﷺ هره خبره ښائي، دَ هر شي چل درته ښائي، تردې پورې چې تاسو ته دَ اودس ماتي چل هم ښائي؟"، نو هغه صحابي ورته دَ فخر پۀ طور وائي: "إِنْ قُلْتُمْ ذَلِكَ لَقَدْ نَهَانَا أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ أَوْ نَسْتَدْبِرَهَا بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، أَوْ نَسْتَنْجِيَ بِأَيْمَانِنَا...".(2)

"کۀ تاسو دا خبره کوئ بطور اعتراض نو آو زۀ هم دا خبره کوم خو بطورِ فخر چې: مونږ ته رسول الله ﷺ هر يَو شے ښودلے دے تردې پورې چې دَ الله پيغمبر ﷺ مونږ ته دا هم ښودلي دي چې ليټرين ته به څنګه دننه کيږئ او څنګه به رابهر کيږئ؟ مونږ نبي ﷺ منع کړي يُو دَ ووړوکي اودس ماتي يا غټ اودس ماتي پۀ وخت کښې دا چې قبلې ته مخ کړو يا قبلې ته شاه کړو، يا مونږ پۀ ښي لاسونو باندې استنجاء اوکړو (نو دې نه مونږ نبي ﷺ منع کړي يُو)".

يعنې نبي ﷺ مونږ ته داسې مکمل دين راوړے دے چې پۀ هغې کښې دَ بيت الخلاء نه واخلې دَ بيت الله پورې خومره زندګي چې ده نو دَ هغې تعليم مونږ ته پۀ دې شريعت کښې پۀ ډاګه دے، دَ معمولي کار نه واخلې تر يَو اعلیٰ کار پورې خومره زندګي چې ده نو دَ هرې مسئلې حل پۀ شريعت کښې مونږ ته جناب رسول الله ﷺ ښودلے دے، دَ هر کار طريقه ئې مونږ ته ښودلې ده.

اُمّت هم ديته وائي: چې امت به پۀ هر کار کښې دَ خپل پيغمبر ﷺ پۀ طريقه باندې ځي،

(1) [سورة المائدة: 3].

(2) أخرجه أبو عوانة في "مستخرجه" برقم: (579).

رب کائنات مونږ او تاسو له قرآنِ کریم کښې وضاحت کړے دے، او فیصله ئې کړې ده، الله رب العزة فرمائي: ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.(1)

"یقینًا شته ستاسو دپاره پهٔ تابعدارئ دَ رسول الله ﷺ کښې يَو بهترینه نمونه...".

الله تعالی وائي: ستاسو دپاره پهٔ تابعدارئ دَ پیغمبر دَ الله ﷺ کښې بهترینه نمونه موجوده ده، کهٔ تا باندې غم راغلے، ستا نه مخکښې ستا پیغمبر ﷺ باندې غم راغلے دے، سوچ اوکړه: چې زما دَ پیغمبر ﷺ پهٔ غم کښې څهٔ طریقه وه؟ دا به نهٔ وائي: چې زما دَ مشرانو طریقه کومه ده؟ زما دَ کشرانو کومه طریقه ده؟ پهٔ دې دور کښې دَ پښتنو کومه طریقه ده؟ نا! نا! تهٔ سوچ کوه: چې زهٔ خو دَ دې مشر امتي نهٔ یم، زهٔ خو دَ هیچ چا غلام نهٔ یم، زهٔ خو امتي دَ جناب رسول الله ﷺ یم، ما نه به الله تعالی دا تپوس نهٔ کوي: چې تا پهٔ خپل کلي کښې دَ يَو مشر خلاف ولې کولو؟ ما نه به الله تعالی دا تپوس نهٔ کوي: چې تا پخپله محله کښې دَ عامو خلقو خلاف ولې کړے وو؟ بلکه زما نه به رب کائنات دا تپوس کوي: چې تا ولې دَ خپل پیغمبر ﷺ خلاف کړے وو؟ تا باندې ښادي راغله نو تهٔ به دا نهٔ وائي: چې دا خو پهٔ دې ملک کښې داسې رواج دے، او زهٔ به دې رواج پسې ځم او زهٔ به پهٔ دې رواج عمل کوم، نا! داسې به نهٔ کوئ؛ ځکه: ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾،(2) بلکه تهٔ به وائي: چې زما پیغمبر ﷺ ودونه کړي دي، دَ الله دَ پیغمبر صحابه کرامو ﷺ ودونه کړي دي، دَ پیغمبر ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ ودونه پهٔ کومه طریقه شوي وو؟ تهٔ به دا سوچ کوې: چې زما پیغمبر ﷺ تجارت کړے دے، نو چې تجارت ئې پهٔ کومه طریقه کړے دے؟ تهٔ به سوچ کوې: چې شریعت مطهّره کښې نبي ﷺ خوراک کړے دے، څنګه ئې کړے دے؟ نو دَ هغې طریقه موجود ده، مونځ ئې څنګه کړے دے؟ دَ هغې طریقه موجود ده.

### صحابه کرامو ﷺ ته اعلان

جناب نبي کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته فرمائي: «وَصَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي».(3) "داسې مونځ اوکړئ لکه څنګه چې زهٔ مونځ کوم"، تاسو پهٔ دغه طریقې سره مونځ اوکړئ.

---

(1) [سورة الأحزاب: 22].

(2) [سورة الأحزاب: 22].

(3) أخرجه البخاري في كتاب الآذان، باب الآذان للمسافر...، برقم: (631).

دَ الله پیغمبر ﷺ فرمائي: "داسې مونځ اوکړئ لکه څنګه چې زهٔ مونځ کوم"، نو اوس دَ الله پیغمبر ﷺ دَ سحر دوه رکعته سنت کړي دي او دوه رکعته ئې فرض کړي دي، اوس یَو سړے وائي: چې یره! زهٔ دَ سحر څلور رکعته سنت کوم، او څلور رکعته فرض کوم نو دا سړے ثواب ګټي او کهٔ عذاب ګټي؟ دا خو ښهٔ کار دے، پهٔ مونځ باندې خو رب کائنات جنت ورکوي، پهٔ مونځ باندې خو ډیر لوئي انعام میلاویږي، مونځ دَ جنت کونجي ده، مونځ خو دَ مؤمن معراج دے، مونځ خو دَ رسول الله ﷺ دَ سترګو یَخ والے دے خو دا مونځ دَ نبي ﷺ سترګې نهٔ یخوي، پهٔ دې مونځ ثواب نهٔ میلاویږي؛ ځکه چې دَ الله تعالی پیغمبر ﷺ فرمائي: «وَصَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي»، "داسې مونځ اوکړئ لکه څنګه چې زهٔ مونځ کوم"، پهٔ کومه طریقه چې ما مونځ کړے دے دغه شان مونځ کوئ، نو دا تهٔ چې څلور رکعته سنت دَ سحر کوې نو پهٔ دې تا له ثواب نهٔ میلاویږي؛ ځکه دا طریقه دَ نبي ﷺ نهٔ ده، نبي ﷺ دوه رکعته سنت کړي دي او تا څلور رکعته اوکړل، نبي ﷺ څلور رکعته فرض دَ ماسپخین کړي دي او یَو سړے راشي وائي: چې زهٔ دَ ماسپخین دَ څلورو رکعتو پهٔ ځائے باندې پنځهٔ رکعته کوم، نو ثواب پرې نهٔ میلاویږي، ثواب پرې ځکه نهٔ میلاویږي چې نبي ﷺ وائي: داسې مونځ اوکړئ چې زهٔ څنګه مونځ کوم، کهٔ نبي ﷺ پنځهٔ رکعته مونځ کړے وے، نو هغه به وئیلي وو، نو ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾،[1] ربّ کائنات فرمائي: ستاسو دپاره دَ پیغمبر ﷺ پهٔ ژوند کښې بهترینه نمونه موجود ده، نو سوچ کوه: چې زما پیغمبر ﷺ پهٔ دې وخت کښې څنګه کار کړے دے؟ نو چې مونځ به پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ کوي نو دغه شان نور کارونه به هم پهٔ طریقه دَ پیغمبر ﷺ کوې.

**دَ مونځ نه روستو دَ نبي ﷺ طریقه**

دَ نبي ﷺ دَ مونځ نه روستو دا طریقه وه: چې کله به نبي ﷺ فرض مونځ اوکړو، صحابه کرام فرمائي: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلَاتِهِ اسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا وَقَالَ: «اللهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ».[2]

"چې کله به نبي ﷺ دَ فرض مونځ نه فارغ شو نو درې پیرې به ئې استغفار اووئیلو او بیا به ئې

(1) [سورة الأحزاب: 22].

(2) أخرجه مسلم في كتاب المساجد ومواضع الصلوة، باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته، برقم: (591).

دا دعاء اوکړه، او دَ دعاء الفاظ به دا وو: «اللهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ».

دَ مونځ نه پس ذکر اذکار ثابت دي، پهٔ احاديثو کښې شته دے، نورې مختلفې دعاګانې دَ احاديثو نه ثابت دي، "مشکٰوة المصابيح" پهٔ کتاب الدعوات کښې ليکلي دي، "صحيح البخاري" او "صحيح مسلم" کښې هم شته دے، چې دَ الله پيغمبر ﷺ به دَ فرض مونځ نه بعد دعاء غوښتله، نو سنت طريقه دَ نبي ﷺ دا ده: چې فرض مونځ دې اوکړو نو ځان له دعاء اوغواړه.

**دَ يو صحابي راتلل**

صحابي نبي ﷺ ته راغلے دے او تپوس کوي: "أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟ قَالَ: «جَوْفَ اللَّيْلِ الآخِرِ، وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ»".(1)

"اے دَ الله رسوله ﷺ! کومه يَوه دعاء ښه قبليږي؟ نو نبي ﷺ اوفرمائيل: دَ شپې دَ آخرۍ حصې دعاء او دَ فرضو مونځونو نه روستو دعاء غوښتل ډير ښه قبليږي".

نو صحابي تپوس کوي: څهٔ وخت کښې دعاء ښه قبليږي؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل: دوه (۲) وختونه دَ دعاء دَ قبليدو دپاره ډير بهترين دي:

(۱) يَو وخت چې سړے دَ شپې آخري حصه کښې پاسي او مونځ اوکړي تهجد اوکړي، او پهٔ دغه وخت کښې دَ الله تعالى نه دعاء اوغواړئ نو دغه وخت الله تعالى ډير زر دعاء قبلوي، بلکه حديث پاک کښې راځي: نبي کريم ﷺ فرمائي: چې رب کائنات پخپله دَ دنيا آسمان ته راځي لکه څنګه چې دَ الله دَ شان سره مناسب دي، او رب کائنات پخپله آواز کوي: "أَلَا هَلْ مِنْ مُسْتَغْفِرٍ لِي فَأَغْفِرَ لَهُ، أَلَا هَلْ مِنْ مُسْتَرْزِقٍ فَأَرْزُقَهُ".

"خبردار! اے خلقو کهٔ څوک پهٔ تاسو کښې داسې وي چې دَ هغهٔ نه څهٔ ګناه شوي وي او زما نه بخښنه غواړي؟ چې زهٔ ورته بخښنه اوکړم، ماته دې اوژاړي، بيا ربِّ کائنات پخپله باندې وائي: چې څوک رزق غوښتونکے شته چې زهٔ ورله رزق ورکړم".

(۲) دويم وخت: «وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ»، "دَ فرض مونځونو نه روستو دعاګانې ډيرې ښې قبليږي"، بلکه دا يَو وسيله ده، وسيله څهٔ ته وائي؟ نيک اعمال اوکړه او دَ هغې نه روستو دعاء کوه،

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الدعوات، باب، برقم: (3499).

چې الله دغه نیک عمل تا ته وسیله کوم، مثلًا مونځ اوکړه او دَ هغې نه روستو وایه: یا الله! زما دا مونځ تهٔ پهٔ خپل دربار کښې قبول او منظور کړې، الله! دَ دې مونځ پهٔ وسیله باندې زما دا فلانے کار اوکړه دیته وسیله وائي.

**غلطه وسیله**

خلق وسیله نهٔ پیژني نو دوي به وائي: یا الله! دَ فلاني پیر صاحب او دَ فلاني بُزرګ پهٔ وسیله زما دا فلانے کار اوکړه، نو الله خو هغه ذات دے چې الله تعالی دَ چا نه نهٔ مجبوره کیږي، الله تعالی له خو ټول خلق يَو شان دي، ﴿اللَّهُ الصَّمَدُ﴾، "الله تعالی بے نیازه ذات دے"، هیچا ته ئې ضرورت نشته، او کهٔ چرې دَ يَو انسان پهٔ وجه بل انسان بچ کیدے شوے نو نوح ﷺ خپل ځوي ته کوري او ځوي ئې پهٔ اوبو او طوفان کښې غرقیږي، او هغه ئې نشي خلاصولے حالانکه نوح ﷺ پیغمبر دے، او ځوې ئې دَ پیغمبر بچے دے خو چې ایمان پکښې نشته دے نو دَ نوح ﷺ پهٔ وجه هغه بچ نشو، کهٔ يَو انسان دَ بل انسان پهٔ وجه بچ کیدے شوے، نو دَ نوح ﷺ بچے به دَ هغهٔ پهٔ عمل بچ شوے وے، او دَ لوط ﷺ ښځه به دَ لوط ﷺ پهٔ عمل بچ شوے وے، الله تعالٰی لوط ﷺ ته وائي: تهٔ سحر وختي دَ دې کلي نه اوځه، خپلې لوریاني هم ځان سره بوځه، ﴿إِلَّا امْرَأَتَكَ﴾،(1) "مګر ښځه به نهٔ بوځې"؛ ځکه پهٔ دې به هم عذاب راځي، نو کهٔ دَ يَو انسان دَ وجې نه بل انسان بچ کیدے شوے نو دَ لوط ﷺ ښځه به بچ شوے وے، نو پهٔ دې نهٔ خلاصیږي چې تهٔ وائي: "زهٔ دَ فلاني بچے یم، یا زهٔ دَ فلاني ولي بچے یم"، نا! بلکه هر بالغ انسان ته به پخپل عمل باندې خلاصون میلاویږي، دَ بل غمل پهٔ وجه سړے نشي بچ کیدے او کهٔ خلاصیدے شوے نو چې پلار مونځ کولو نو ځوي به نهٔ کولو، او کهٔ ځوي مونځ کولو نو پلار به نهٔ کولو، نا! بلکه تا باندې چې کوم عمل فرض دے نو پهٔ هغې به خلاصیږې نو دیته وسیله وائي.

**شاه انور شاه کشمیري ؒ لیکلي دي**

وسیله دا چې "خپل نیک عمل الله تعالی ته وسیله کړه"، دَ مونځ نه روستو بیا اووایه: الله! کهٔ دا مونځ ستا پهٔ دربار کښې قبولَ وي نو الله! زما دا فلانکے حاجت پوره کړه، دا دَ دعاء دَ

(1) [سورة العنكبوت: 33].

غوښتلو دپاره بهترینه طریقه ده، چې فرض مونځ اوشي نو ځان دپاره دعاء اوغواړه.

**دَ فرض مونځ نه روستو دَ امام او مقتدي حالت**

دا خبره یاد اوساتئ! چې کله مونځ اوشي نو اکثر ځایونو کښې خلق داسې کار کوي. امام کله تسبیحات ختم کړي نو په زوره باندې وائي: ﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَ عَذَابَ النَّارِ﴾[1] دا په زوره باندې وائي، نو چې په زوره باندې اووائي مطلب ئې دا وي: چې دَ خلقو ما ته خیال شي چې امام دعاء غواړي، نو بیا به ټول خلق دعاء شروع کړي، نو دعا کوي... خو چې امام بیا په زوره باندې یو آیت اووائي، لکه څوک دا ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾[2] وائي، یا څوک پکښې دا وائي: ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَ وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ﴾.[3]

بهر حال خو څوک یو دعاء وائي او څوک بله وائي خو چې دعاء ختمه کړي نو دَ دې آخري کلمات هم په زوره وائي؛ دَ دې دپاره چې دَ خلقو ماته خیال شي چې دعاء ختمیدو والا او په شریکه په مخ لاس راښکي، دا طریقه دَ نبي ﷺ نه نهٔ ده ثابت، مونځ په جمع باندې وو نو جمع اوشو، اوس دَ مونځ نه روستو ستا تعلق دَ امام سره ختم شو، علماء دیوبند کښې مشهور دے بلکه باني دَ دیوبند دے شاه انور شاه کشمیري رحمه الله په "فیض الباري" کښې لیکلي دي: "دَ ف مونځ نه روستو هر انسان دَ خپل ځان مالک دے، کهٔ یو انسان اوږده دعاء غواړي نو غواړي کهٔ څوک لنډه دعاء غواړي نو غواړي دې"، پهٔ دې خلقو کښې دا جهالت دے چې تسبیحا ئې ختم کړي وي خو بیا هم تر هغې وخته پورې لاس نهٔ اوچتوي دَ دعاء دپاره ترڅو پورې امام لاس نهٔ وي اوچت کړے، دے به هسې ناست وي دعاء به نهٔ کوي، بعضې وخت کښې شروع کړي نو امام لنډه دعاء اوغواړي او دَ دهٔ دعاء پاتې ده زړهٔ کښې ارمانونه پاتې دي خو دَ دَ وجې نه دے هم پهٔ مخ باندې لاس راکاږي، نو تهٔ ولې خپله دعاء ختموې؟ پهٔ دعاء کښې خ تا باندې دَ امام متابعت لازم او ضروري نهٔ دے، پهٔ مونځ کښې متابعت ضروري وو، مونځ

(1) [سورة البقرة: 201].
(2) [سورة الأعراف: 23].
(3) [سورة آل عمران: 8].

شو، نهٔ ځان له دعاء غواړه امام به ځان له دعاء غواړي، نو تهٔ چې څومره دعاء ځان له غواړې نو غواړه او امام چې څومره دعاء ځان دپاره غواړي نو غواړي دي، اوس پهٔ دې کار کښې ثواب ګنړل چې دَ امام سره پهٔ يَو ځائے به لاس اوچتوم او دَ هغهٔ سره به پهٔ يَو ځائے لاس ښکته کوم دا ګناه ده؛ ځکه پهٔ هر کار کښې دَ نبي ﷺ طريقه ضروري ده، او دا دَ نبي ﷺ طريقه نهٔ ده.

دا بعضې امامان چې دَ دعاء دا الفاظ پهٔ زوره وائي دَ فرض مونځ نه روستو نو دا پهٔ زوره وئيل ئې نهٔ دي پکار، افسوس دا دے چې جهالت زيات دے، دَ کتابونو مطالعه نشته، علم دَ خلقو سره نشته، نو اکثر دَ لرې غلطئ دَ وجې نه پهٔ لويه ګناه کښې مبتلاء شي، کله چې امام دعاء اوغواړي او پهٔ زوره الفاظ وائي نو اکثر پهٔ جمع کښې داسې خلق رارسيدلي وي چې يَو زکعت يا دوه رکعته ورته پاتې وي، هغوي اودريږي مونځ کوي نو چې امام پهٔ دغه وخت کښې پهٔ زوره الفاظ شروع کړي نو هغې نورو خلقو باندې مونځ ګډوډيږي، نو دا ياد ساتئ! چې نورو خلقو باندې مونځ ګډوډيږي نو دَ دې وجې نه دعاء پهٔ پټه بهتره ده، ځکه چې پهٔ پټه دعاء ځان دپاره غواړي نو پهٔ هغې دَ نورو مونځ هم نهٔ خرابيږي.

دَ قرآنِ کريم تلاوت بهتر عمل دے خو ليکن پهٔ هغه وخت کښې چې تهٔ تلاوت کوې او خلقو باندې مونځ ګډوډيږي نو پهٔ زوره باندې تلاوت مکروه دے، تلاوت به پهٔ پټه باندې کوې؛ ځکه چې ستا دَ وجې نه بل سړے پهٔ مونځ کښې ګډوډيږي نو پهٔ رو آواز سره تلاوت کوه او دعاء هم پهٔ رو آواز سره غواړه چې پهٔ خلقو باندې مونځ ګډوډ نشي، او الله تعالى ته خو ستا پهٔ رو آواز سره وئيل او پهٔ تيز آواز سره وئيل يَو برابر دي، کهٔ مونږ پهٔ زړهٔ کښې هم يَو سوچ کوو نو الله تعالى پهٔ هغې باندې پوهيږي نو بيا پهٔ زوره وئيلو ته ضرورت څهٔ پاتې شو؟

**دَ دعاء باره کښې قرآنِ کريم کښې حکم**

الله تعالى خو هغه ذات دے چې هغه هر څهٔ اوري بلکه قرآنِ کريم کښې ئې حکم کړے دے: ﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾.(1)

"راوبلئ خپل رب لره پهٔ عاجزئ باندې او پهٔ رو آواز باندې، شان دا دے دا الله تعالى مينه نهٔ کوي دَ زياتي کوونکو سره".

(1) [سورة الأعراف: 55].

**زیاتې کوونکي**

زیاتے کوونکي څوک دي؟ علماء کرام ذکر کوي: "اَلرَّافِعِيْنَ أَصْوَاتَهُمْ بِالدُّعَاءِ".

"چې دعاء په اوچت آواز کوي نو دا زیاتے کوي په دعاء کښې".

څکه الله تعالی ستا پته دعاء هم اوري، نو ته چغې څه له وهې؟ خلقو ته څان ښا

سنت طريقه دا ده: چې فرض مونځ اوشو، امام سلام اوګرځولو نو ته هم سلام اوګرځوه

امام خوښه ده لږه دعاء غواړي او که ډیره دعاء غواړي، که څومره تسبیحات وائي نو دا

خوښه ده، او ستا خپله خوښه ده چې څومره تسبیحات وائي، احادیثو نه ثابت دي، خو

مونځ نه روستو ستا دَ امام سره څه کار نشته، چې ته دې خامخه اوس وائي: "چې زما دې

اوس دَ دعاء جمع هم امام راکړي"، نا دَ دعاء جمع پکښې بیا نۀ وي، جمع دغه یَوه وي.

**اتفاقي صورت**

هان! اتفاقًا یَو ځائے لاسونه اوچت شول، نو خیر دے، خو دا په ځان مۀ لازم کو

امام سره به یَو ځائے لاسونه بره کوم او ښکته کوم، ولې ستا به ډیر ضرورت وي او دَ اما

ضرورت وي، نو خپل ضرورتونه دَ الله نه غواړه، دَ امام لاسونو ته مۀ ګوره، هغه به کله اوږ

غواړي، کله به لنډه غواړي... نو دا عادت ځان نه لرې کړه؛ ځکه دا دَ پیغمبر ﷺ طریقه ن

**یَو غلط عادت**

هغه دا چې په اکثرو علاقو کښې داسې طریقه وي: چې هغوي صرف دَ فرض مونځ نه

امام وائي: "اَللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ!"، یا بله دعاء اووا

دَ هغې نه روستو هر سړے پاسي او سنت کوي او چې کله سنت اوشي نو دَ سنتو نه روستو

مخ راوګرځوي او بیا په زور باندې دعاء وائي او مقتدیان ورسره هم شریک شي، عزتمندو

داسې شریعت دے چې په دې کښې دَ هرې مسئلې حل موجود دے، په دې شریعت کښې

ماتې طریقه موجود ده، دَ اودس ماتې نه دَ فارغیدو طریقه شته، په دې کښې دَ لوئي عبادت

شته او په دې کښې دَ وړوکي عبادت طریقه شته...

**دعاء اصل عبادت دے**

نو دعاء خو یَو اهم عبادت دے په حدیث کښې راځي: «اَلدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ».(1)

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب: ومن سورة البقرة، برقم: (2969)، واللفظ له، وأبوداود في تفريع أبـ

"دعاء هم دغه بعینه عبادت دے".

او دا ولې عبادت دے؟، ځکه دَ عبادت لوئي مقصد څۀ دے؟ دَ عبادت مقصد دا دے؛ چې ځان الله ته عاجز کنړل، دا دَ عبادت مقصد دے، مونځ عبادت دے پۀ دې مونځ کښې دَ دې ډیرې عاجزئ دَ وجې نه مونږ دا خپل تندے راواخلو او پۀ زمکه ئې کیږدو، چې الله! مونږ ستا دومره کمزوري بندګان یُو چې مونږ خپل سر تا ته پۀ زمکه باندې کیږدو، نو مونځ کښې عجز دے، نو مقصد دَ عبادت هم عجز دے، او پۀ دعاء کښې هم عاجزي ده؛ ځکه خپل ځان کمزورے کنړو چې زما اختیار کښې څۀ نشته، هر څۀ ستا اختیار کښې دي، او ما له دا څیز راکړه، نو چې دعاء عبادت دے او عبادت به مونږ پۀ طریقه دَ پیغمبر ﷺ کوو، نو دَ دعاء طریقه هم مونږ ته خپل پیغمبر ﷺ ښودلې ده، نو څنګه چې پیغمبر ﷺ دعاء کړې ده او پۀ کوم وخت ئې چې کړې ده او پۀ کوم کیفیت ئې چې کوم ځائے کښې کړې ده هغه به کوې، چې پیغمبر ﷺ یَو کار نۀ دے کړے نو هغه به نۀ کوې.

**دَ سنتو نه روستو پۀ جَمع باندې دعاء کول**

دَ سنتو نه روستو پۀ جَمع باندې دعاء کول دا بدعت دے او دا جائزه نۀ ده، دَ دې نه به ځان ساتئ، پۀ دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې یَو ځان له دعاء غوښتل دي، نو ځان له چې هر وخت دعاء غواړې نو جائز ده، کۀ دَ سنتو نه روستو غواړې نو هم جائز ده، دارنګې کۀ دَ فرضو نه روستو غواړې نو هم جائز ده، دارنګې نۀ دې فرض کړي دي او نۀ دې سنت کړي دي او هسې دعاء غواړې نو هم جائز ده، غواړه، دَ دعاء نه څوک منکر دي؟

او یَو پۀ جَمع دعاء غوښتل دي، نو دې کښې به احتیاط کوو، پۀ کوم ځائے کښې چې نبي ﷺ پۀ جَمعې سره دعاء کړې ده نو هغه ځائے کښې کول جائز دي او کوم ځائے چې دَ پیغمبر ﷺ نه پۀ جَمعې سره دعاء نۀ وي ثابت نو هلته پۀ جَمعې سره دعاء کول ناجائز او بدعت دے، نو اوس دا خلق چې دا کومه طریقه اختیاروي چې دَ فرض مونځ نه روستو چې کله سنت اوشي او بیا امام او مقتدیان پۀ جَمع باندې دعاء غواړي نو دا طریقه دَ نبي ﷺ نه ثابت نۀ ده، نو چې مونږ دا وایُو: "چې دا طریقه دَ نبي ﷺ نه ثابته نۀ ده" نو بعضې ناپوهه خلق هغه اعتراض

---

باب الدعاء، برقم: (1479).

کوي، وائي: "دوي ذ دعاء نه منکر دي، دوي دعاء نهٔ مني"، هلکه‌ا دعاء عبادت دے او د دعا
خوک منکر دي؟ الله تعالی وائي: "څوک چې زما ذ عبادت نه منکر شو دا خو کافر دے"، دعاء
ذ الله نه غوارې څو پهٔ هغه طريقه به ئې غوارې چې پهٔ کومه طريقه نبي ﷺ غوښتې ده، نو مو
صرف دا وايُو: چې پهٔ هغې طريقه دعاء اوکړه چې پهٔ کومه طريقه پيغمبر ﷺ کړې ده.

**ذ نبي ﷺ طريقه**

دَ نبي ﷺ طريقه به دا وه: چې کله به ئې فرض مونځ اوکړو، نو حديث کښې راځي: "
نبي ﷺ به سنتو له کور ته تلو"، او بهتره طريقه دا ده: چې سنت کور کښې اوکړې، او فر
جومات کښې اوکړې؛ ځکه اکثر عادت دَ نبي ﷺ دا وو، بلکه دَ "صحيح مسلم" پهٔ يَو حد
کښې راځي: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ ﷞ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ
وَسَلَّمَ، عَنْ تَطَوُّعِهِ؟ فَقَالَتْ: «كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا، ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ
يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وكَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَيُصَلِّي بِال
الْعِشَاءَ، وَيَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ».[1]

"عبد الله بن شقيق ﷺ فرمائي: ما دَ سيدة عائشه ﷞ نه تپوس اوکړو: چې نبي ﷺ به
کور کښې څنګه مونځ کولو؟ عائشه ﷞ اووئيل: چې نبي ﷺ به زما پهٔ کور کښې به
ماسپخين مونځ نه مخکښې څلور رکعته سنت اوکړل بيا به جومات ته اووتلو او خلقو ته به
ماسپخين دَ جمعې مونځ ورکړو، دَ جمعې نه پس به بيا راغلے زما کور ته نو دوه رکعته سنت
اوکړل (دَ ماسپخين دَ سنتو نه پس ئې دعاء اونهٔ کړه، بيا به دَ الله پيغمبر ﷺ دَ مازيګر
دپاره جومات ته لاړو، او خلقو له به ئې دَ مازيګر جمع ورکړه، دَ مازيګر مونځ نه روستو
نشته نو خبره خلاصه شوه)، بيا به ئې خلقو له دَ ماښام جمع ورکړه، نو بيا به واپس کور ته ر
او دوه رکعته مونځ سنت به ئې پهٔ کور کښې اوکړل نو بيا به دَ الله پيغمبر ﷺ دَ ماسخوتن
دپاره جومات ته لاړو، چې دَ ماسخوتن څلور رکعته فرض به ئې جومات کښې اوکړل واپ
کور ته راغلے دوه رکعته سنت به ئې کور کښې اوکړل او وتر به دَ الله پيغمبر ﷺ دَ ش
آخري حصه کښې کول، دغه شان دَ سحر سنت به ئې پهٔ کور کښې اوکړل بيا به جوم

(1) أخرجه مسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها، باب جواز النافلة قائما وقاعدا، وفعل بعض الركعة قائما قاعدا، برقم: (730).

لارو نو دوه رکعته فرض به ئې جومات کښې اوکړل".

نو عادت دَ پيغمبر ﷺ دا دے: چې سنت ئې پهٔ کور کښې کړي دي، او جومات کښې ئې نهٔ دي کړي نو دعاء پکښې دَ کوم ځائے نه راغله؟ نو دا دعاء بدعت دے او دا پهٔ شريعت کښې نشته، او هر سړي له پکار دي چې کور کښې ئې ځائے وي چې سنت کور کښې اوکړي امام له پکار دي: چې جومات کښې کمره وي هلته دې سنت اوکړي، او چې کمره نشته نو کور کښې دې سنت اوکړي.

## دَ کورونو نه مقبرې نهٔ جوړول

نبي ﷺ فرمائي: «اجْعَلُوا مِنْ صَلَاتِكُمْ فِي بُيُوتِكُمْ، وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا».(1)

"اے زما صحابؤ! بخپلو کورونو کښې مونځ کوئ، او دَ کورونو نه مقبرې مهٔ جوړوئ چې مونځونه پکښې نهٔ کوئ".

يَو بل روايت کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «فَصَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ، فَإِنَّ أَفْضَلَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ».(2)

"اے زما امته! مونځ پهٔ کور کښې کوئ؛ ځکه بهترين مونځ دَ سړي بخپل کور کښې سيوا دَ فرض مونځ نه"، او فرض مونځ له جومات ته راځئ، نفل پهٔ کور کښې کوئ، تهجد پهٔ کور کښې کوئ، سنت پهٔ کور کښې کوئ، پهٔ دې کښې ډير ثواب دے.

## نفلي عبادت پهٔ کور کښې کول

دَ دې وجه دا ده: چې نفلي عبادت څومره دَ مخلوق نه پټ اوکړے شي نو ښه ده؛ ځکه پهٔ دې کښې رياء نهٔ راځي، فرض عبادت خو جدا شے دے، خو نفلي عبادت به پهٔ پټه باندې کوئ، بعضې جاهلان چې وي، نو هغه چې دَ شپې تجهدو دپاره جومات ته راشي نو سحر وختي خلقو له وائي: "بيکا چې جومات له راغلم نو دومره يخني وه"، دَ دهٔ مطلب دا وي: چې دا خلق خبر شي چې دے بيګا تهجدو له راغلے وو، پهٔ تهجدو کښې ثواب ولې ډير دے؟ پهٔ دې کښې ثواب ځکه ډير دے؛ چې دغه وخت کښې ټول خلق اودهٔ وي او الله باندې خوب نهٔ راځي، زمونږ الله

(1) اخرجه مسلم في كتاب الصلاة المسافرين وقصرها، باب استحباب صلاة النافلة في بيته، وجوازها في المسجد، برقم: (777).
(2) اخرجه البخاري في كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب ما يكره من كثرة السؤال وتكلف ما لا يعنيه، برقم: (7290).

تعالی داسې ذات دے: ﴿ٱلۡحَیُّ ٱلۡقَیُّومُ﴾.

"همیشه دپاره ژوندے دے، دَ تمام مخلوق انتظام کوونکے دے".

﴿لَا تَأۡخُذُهُۥ سِنَةࣱ وَلَا نَوۡمࣱ﴾.(1)

"نهٔ نیسي الله لره جوته او نهٔ خوب".

داسې ذات دے چې څهٔ وخت ترې نه غواړي نو غواړه... نو چې دَ شپې پاڅیدې نو د

وخت کښې تمام خلق اودهٔ وي او تهٔ الله ته اودریږه نو الله واېي: چې واقعي دَ دې سړي ضرور

دے، او واقعي چې دا سړے طلب ګار دے، دَ هغهٔ سؤال الله تعالی قبلوي؛ ځکه چې ر

پکښې نشته دے، نو سنت کول پهٔ کور کښې بهتر دي؛ ځکه هغه نفلي عبادت دے.

**جومات کښې سنت کول**

یَو سړے پهٔ جومات کښې سنت کوي، نو جائز دي، بعضې خلق دا شکایت کوي، وا

یَره! پیغمبر ﷺ خو سنتو له کور له تلے وو خو کهٔ چرته نبي ﷺ پهٔ جومات کښې سنت کړ

وے نو کیدے شي دعاء ئې هم وریسې کړے وے؟

نو دا یاد ساتئ! "ابوداود شریف" کښې روایت راځي: چې دَ نبي ﷺ نه پهٔ جومات کښې

سنت ثابت دي، خو دعاء ئې نهٔ ده کړې، یَو روایت کښې راځي: ابن عباس ﷺ واېي: «كَانَ رَسُ

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ، حَتَّى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ».(2)

"دَ الله پیغمبر ﷺ چې به کله سنت پهٔ جومات کښې (دَ ماښام دوه (۲) رکعته سنت) ک

نو دومره اوږدهٔ به ئې اوکړل چې نبي ﷺ به سلام کرځولو نو خلق به ټول خوارهٔ شوي وو".

نو نبي ﷺ چې به سلام اوکرځولو نو صحابه کرام ﷺ به خوارهٔ شوي وو، دَ صحا

کرام ﷺ خو دا کار وو، چې بس سلام به اوکرځولے شو نو لاړل به، خوارهٔ به شول، داسې ئې

کول چې امام ته به صبر کوو چې امام کله دَ سنتو نه سلام واړوي نو بیا به مونږ ته دعاء کوي

به څو، اوس زمانه کښې کهٔ امام اوږد مونځ کوي نو عوام غریبانان هسې ناست وي؛ ځکه وا

دے به کله سلام کرځوي چې دا دعاء مونږ ته اوکړي نو بیا دې دے خپل نفلونه کوي، نو

(1) [سورة البقرة: 255].

(2) أخرجه أبوداود في باب تفريع أبواب التطوع وركعات السنة، باب ركعتي المغرب أين تصليان؟، برقم: (1301).

طریقه دَ نبي ﷺ نهٔ ده، چې فرض دې اوکړل ځان له دعاء اوغواړه، نو کهٔ دَ سنتو نه روستو ځان له دعاء غواړي نو صحیح ده، خو دَ سنت نه روستو پهٔ جَمع دعاء مهٔ کوه؛ ځکه دا بدعت دے او دَ دې هیڅ څهٔ ثبوت پهٔ شریعت کښې نشته.

## دَفرض مونځ نه روستو ځائې بدلول

دَ مغیره بن شعبه ﷺ روایت دے: چې پیغمبر ﷺ فرمائي: «لَا يُصَلِّ الْإِمَامُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ حَتَّى يَتَحَوَّلَ»،[1] "پهٔ هغه ځائے کښې دې امام سنت او نفل نهٔ کوي چې کوم ځائے کښې ئې فرض مونځ کړے دے، تردې پورې چې دغه ځائے بدل کړي نو بل ځائے کښې دې اودریږي"، نو امام له پکار دي چې امام خپل ځائے بدل کړي بلکه پهٔ حاشیه دَ "مشکاة المصابیح" ئې لیکلي دي: "چې مقتدیانو له مستحبه طریقه دا ده: چې فرض مونځ اوکړي نو خپل ځائے دې دَ سنتو دپاره بدل کړي"؛ وجه پکښې دا ده: چې کِهٔ چرې امام هم پخپل ځائے باندې ولاړ دے، مقتدیان هم پخپل ځائے باندې ولاړ دي او یَو ناشنا کس جومات له راشي نو دَ هغه به دا خیال وي چې کني جمع لا نهٔ ده شوې؛ ځکه چې خلق صف پهٔ صف ولاړ وي او چې امام پهٔ مصلٰی ولاړ دے، نو خلق به وائي: چې یره جَمع لا نهٔ ده شوې. پهٔ سنت طریقه کښې حکمت ډیر وي، نبي ﷺ وائي: امام دې دَ فرضو پهٔ ځائے کښې سنت نهٔ کوي بلکه ځائے دې بدل کړي.

یَو بل روایت کښې راځي: سیدنا ابوهریره ﷺ فرمائي: نبي ﷺ فرمائي: «أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَتَقَدَّمَ، أَوْ يَتَأَخَّرَ، أَوْ عَنْ يَمِينِهِ، أَوْ عَنْ شِمَالِهِ».[2]

"آیا عاجز دے یَو تن ستاسو نه دَ دې نه کله چې دے مونځ کوي چې دے دې مخکښې لاړشي یا دې راروستو شي یا دې ښي طرف ته لاړشي او یا دې کس طرف ته لاړشي (دهٔ باندې څهٔ چل شوے دے چې دے ځائے نهٔ بدلوي چې دے مخکښې نهٔ ځي یا دے روستو نهٔ ځي...)".

نو امام له پکار دي: چې دے خپل ځائے بدل کړي او پهٔ دې کښې لوي حکمت دا دے او دا یَو وجه هم محدثین ذکر کوي: "چې دَ قیامت پهٔ ورځ باندې به کوم ځائے باندې چې دې انسان

(1) اخرجه أبوداود في كتاب الصلاة، باب الإمام يتطوع في مكانه، برقم: (616).
(2) اخرجه أبوداود في باب تفريع أبواب الركوع والسجود، باب باب في الرجل يتطوع في مكانه الذي صلى فيه المكتوبة، برقم: (1006).

سجده لکولې ده نو دغه ځائے به دَ دغې انسان دپاره شهادت کوي"، نو چې څوک دَ سنتو
روستو پۀ جَمع دعاء کوي نو امام صاحب خو بالکل مُصلّٰی نۀ پرېږدي، هغه خو دَ خپل ځائے نه
خوزي؛ څکه کۀ بل ځائے ته لا ړشي نو بیا به دعاء څنګه کوي؟ نو چې امام کله سنت اوکړي
مخ به رااوکرځوي او دعاء به اوکړي، دا خلاف دي دَ نبي ﷺ دَ طریقې نه.

**"مبسوط " کښې سرخسي رحمه الله لیکلي دي**

"مبسوط" دَ سرخسي دا دَ احنافو مشهور کتاب دے، هغې کښې ئې لیکلي دي: "
يَشْتَغِلُ بِالتَّطَوُّعِ فِي مَكَانِ الْفَرِيضَةِ لِلْحَدِيثِ الْمَرْوِيِّ: «أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ إِذَا صَلَّى أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَ
بِسُبْحَتِهِ أَيْ بِنَافِلَتِهِ»".(1)

"نۀ دې مشغوله کیږي امام چې کله فرض مونځ اوکړي پۀ هم هغه ځائے کښې پۀ
کولو باندې؛ دَ وجې دَ هغه حدیث نه چې نبي ﷺ نه روایت شوے دے: آیا عاجزه دے پۀ
کښې یَو تن چې دے کله فرض مونځ اوکړي نو خپل ځائے دې بدل کړي مخکښې دې لا ړش
روستو دې شي دَ خپلو نفلو دپاره".

او "مبسوط سرخسي" یَو بله خبره لیکلې ده: "بهتره دا ده: چې نور ځائے نشته نو امام
کله فرض مونځ اوکړي نو هغه دې دَ مقتدي پۀ ځائے اودرېږي او مقتدي چې فرض مونځ او
نو هغه دې دَ امام پۀ ځائے اودرېږي"، دا خبره علماؤ لیکلې ده، او دا دَ بے ادبي هم نۀ ده.

**علامه کاساني رحمه الله لیکلي دي**

"فَيُكْرَهُ لِلْإِمَامِ أَنْ يُصَلِّيَ شَيْئًا مِّنَ السُّنَنِ فِي الْمَكَانِ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ الْمَكْتُوْبَةَ".(2)

"دَ امام دپاره مکروه دي چې دے پۀ هغه ځائے کښې نفل مونځ اوکړي پۀ کوم
کښې چې دۀ فرض مونځ کړے دے".

هغه ځائے به بدلوي، نو چې کوم خلق دَ سنتو نه روستو پۀ جَمعې سره دعاء کوي نو هغه
خو ځائے نۀ بدلَوي، بلکه هغه خو پخپل ځائے ولاړ وي.

**"فتاوی عالمګیري " لیکلي دي**

دا هغه فتاوٰی ده چې دَ دریو سوو (۳۰۰) علماء پۀ اتفاق سره لیکلے شوې ده، دې کښې

(1) انظر: "المبسوط" للسرخسي، كتاب الصلاة، باب افتتاح الصلاة: (38/1).
(2) انظر: "البدائع الصنائع" للكاساني فصل: الصلاة المسنونة: (285/1).

مسئله ذکر کوي: "وَلَا يَتَطَوَّعُ فِي مَكَانِ الْفَرِيضَةِ وَلَكِنْ يَنْحَرِفُ يمْنَةً أَوْ يُسْرَةً أَوْ يَتَأَخَّرُ".(1)

"دَ فرضو پهٔ ځائے کښې به نفل نهٔ کوې لیکن دے دې جدا شي دَ دغه ځائے نه ښي طرف ته یا کَڼ طرف ته یا دې روستو شي".

تمامو علماؤ لیکلي دي: "خلاصة الفتاوٰی" لیکلي دي پهٔ: (۱۰۵/۱) کښې، "بحر الرائق" پهٔ: (۷٤/۳)، احسن الفتاوٰی: (۳٤٥/۱) او شامي پهٔ: (۳۹۲/۱) کښې لیکلي دي: "چې امام له مکروهٔ دي چې دَ فرضو پهٔ ځائے کښې سنت یا نفل کوي".

نو دا خلاف دَ پیغمبر ﷺ کیږي، دَ اردو پهٔ فتاوو کښې دَ مفتي کفایت الله صاحب ؒ دا دَ علماء دیوبند استاذ دے، نو دَ هغه فتاوٰی ده "کفایت المفتي" هغې کښې لیکلي دي: "چې دَ سنتو نه روستو پهٔ جمعې سره دعاء کول بدعت دے"، دارنګې دَ مفتي کفایت الله ؒ یَو وړه رساله ده "النفائس المرغوبة"، هغې کښې ړومبئ دا خبره لیکي: "چې دَ سنت نه بعد پهٔ جمعې سره دعاء بدعت دے".

**"فتاوٰی دارالعلوم دیوبند" لیکلي دي**

دا دَ مفتي عزیز الرحمٰن ؒ فتاوٰی ده، هغې کښې ئې لیکلي دي: "دَ سنتو نه بعد پهٔ جمعې باندې دعاء کول بدعت دے"،(2) او دَ بدعت ډیر لوئې مذمت پهٔ احادیثو کښې راغلے دے.

نو مقصد زما صرف دا وو: چې دَ فرض مونځ نه روستو دعاء ثابت ده دَ نبي ﷺ نه، پکار دا ده چې مونږ دَ فرض مونځ نه بعد دعاء کوو، نو کهٔ دَ سنتو نه بعد کهٔ یَو سړے ځان له دعاء غواړي نو هر وخت ئې غوښتلے شي، سنت دې کور کښې اوکړل کور کښې دعاء اوغواړه او کهٔ جومات کښې دې اوکړل نو جومات کښې ځان له دعاء اوغواړه خو دا مهٔ وایه: "چې امام به دَ سنتو نه سلام کرځوي نو زهٔ به بیا دَ هغه سره یَو ځائے پهٔ جمع باندې دعاء غواړم"، دا نشته.

دعاء غواړه هر څومره چې غواړې، کهٔ اوږده دعاء غواړې او کهٔ لنډه غواړې، خو پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ، نو چې مونږ دا خبره کوو: چې "ایماندارو! راځئ! پهٔ شریعت دَ نبي ﷺ کښې دَ هر څهٔ طریقه موجود ده"، نو بعضې ناپوهه وائي: "اوګوره! دوي دعاء نهٔ مني"، نو مونږ کله وئیلي چې دعاء مهٔ کوئ؟ دعاء اوکړه خو دَ پیغمبر ﷺ پهٔ طریقه باندې ئې اوکړه، مثال پهٔ طور کهٔ یَو

(1) انظر: "فتح القدير" لابن همام: (441/1)، وفتاوی عالمکیریه.
(2) انظر: "فتاوٰی دار العلوم دیوبند" لمفتي عزیز الرحمٰن: (177/5).

سرے دَ څلورو رکعتونو پهٔ ځائے مونځ پنځهٔ رکعته اوکړي او تهٔ ورته اووائې: چې پهٔ
ثواب نهٔ میلاویږي، نو هغه به څهٔ وائي: چې دے مونځ نهٔ مني؟ دَ هغهٔ دا مطلب دے
مونځ نهٔ منم؟ نا! دَ هغه دا مطلب نهٔ دے، بلکه دَ هغهٔ مطلب دا دے: چې زهٔ خو مونځ
ستا دا مونځ نهٔ منم چې تا دَ څلورو رکعتونو پهٔ ځائے پنځهٔ رکعتونه اوکړل، مونږ دعاء
دعاء چې کومه دعاء دَ شریعت دَ پیغمبر ﷺ نه ثابت ده، هغه دعاء دا ده: چې فرضو نه
هر سړے ځان له دعاء اوغواړي، دَ سنت نه روستو دې هر سړے ځان له ځان له دعاء ا
اجتماعي حیثیت دې نهٔ جوړوي.

دغه شان چې کله جنازه اوشي، دَ جنازې نه روستو بیا دعاء نشته، چې جنازه
بعضې ناپوهه وائي: ایماندارو! دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ!، دا جنازه خو پخپله
کنه، دا مونږ چې اودس کښې جناز گاه پورې لاړو نو زمونږ مقصد څهٔ وو؟ چې مو
خیرې اوکړو؟ خو زمونږ خیال دا وو چې مونږ دهٔ له دعاء اوکړو: "اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا..."، دَ
نه روستو پهٔ پښتو کښې دعاء چا کړې ده؟ تمامو علماؤ لیکلي دي: "چې دا دعاء بدعت د

الله تعالی دې مونږ او تاسو دَ بدعاتو نه او دَ خلاف شرع کارونونه اوساتي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ

(سورة التوبة: 84)

# موضوع

# دَ جنازې نه روستو دعاء

**بتاريخ: 18-06-2021**

**مقام جلسئ**

**خطيب**

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله**

# دَ جنازې نه روستو دعاء

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّاٰتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّاٰتِ أَعْمَا يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُ وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلٰى أَحَدٍ مِّنْهُم مَّ وَلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَمَاتُوْا وَهُمْ فَاسِقُوْنَ﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ».(2)

عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړو! پهٔ مخکښې جُمعه کښې مونږ دَ يَو بدعت ذکر کړ پهٔ دې جُمعه کښې دَ بل بدعت ذکر کوو، او هغه دا چې دَ رسول الله ﷺ پهٔ شريعت کښې چ مسلمان پهٔ بل مسلمان باندې کوم حقونه رسول الله بيان کړي دي، هغې کښې يَو حق دا د مسلمان وفات شي نو دَ هغهٔ جنازې له به ځې، او دا جنازه دَ مړي حق دے، دا دَ ژوندي حق ن چې تهٔ وائې: پلار به ئې خفه شي چې جنازې له نهٔ دے راغلے، کهٔ پهٔ دې غرض باندې ځې نو هډو ثواب اونشو، بلکه ستا ثواب اونشو نو دَ مړي به څهٔ ثواب اوشي؟ او چې پهٔ دې غرض باندې نو تا دَ مړي حق اداء نهٔ کړو، نو چې جنازې له ځې نو پهٔ دې غرض باندې لاړشه: چې دا يَو م وو، او دے وفات شو، دَ دنيا نه رخصت شو، دَ دهٔ زمونږ پهٔ ذمه باندې دا حق دے: چې مونږ دپاره الله رب العزة ته سفارش کوُو، مِنَت او زارې به کوُو، چې دهٔ ته الله تعالى بخښنه اوکړي، د سره دَ مرګ نه بعد يَو احسان دے.

**فرض کفائي**

دا جنازه فرض کفائي ده، کهٔ دَ کور او محلّې نه څهٔ کسان لاړ شي، نو دَ نورو غاړه خلاصه شو

---

(1) [سورة التوبة: 84].

(2) أخرجه أبو داود في كتاب الجنائز، باب الدعاء للميت، برقم: (3199).

چې پهٔ ټولو خلقو فرض نهٔ دي چې دَ يَو وررور جنازه اوکړي، خو چې څهٔ مسلمانان پرې جنازه اوکړي نو دَ نورو غاړه پرې خلاصيږي، خو کهٔ هيڅ چا پهٔ يَو مړي جنازه اونهٔ کړه، او بغير دَ جنازې دفن شو، نو دريو ورځو پورې خو پهٔ قبر هم جنازه جائز ده چې بغير دَ جنازې دفن شوے وي، خو کهٔ چا پهٔ قبر هم دَ هغهٔ مړي جنازه اونهٔ کړه نو دَ دغې ټولې محلې او دَ ټول کلي خلق به ګنانکار وي.

نو فرضِ کفائي ديته وائي: "چې بعضې خلق ئې اداء کړي نو دَ نورو غاړه پرې خلاصيږي، خو کهٔ يَو ئې هم اداء نهٔ کړي نو دَ هغوي ټولو غاړه به نيولے شوي وي، او ټول به ګنانکار وي".

څهٔ سنتِ کفائي وي: چې څهٔ خلق ئې اوکړي نو دَ نورو خلقو غاړه پرې خلاصه شي او کهٔ دَ کلي نه يَو تن هم کينبنهٔ ناستو نو ټول به ګنانکار وي، لکه اعتکاف شو، دَ ټول کلي خلق دې خپل جومات کښې اعتکاف ته نهٔ کينبني، خو کهٔ پهٔ ټول کلي کښې يَو هم کينبنهٔ ناستو نو دا ټول ګنانکاران دي، او کهٔ دَ کلي نه يَو هم کينبناستو نو دَ ټول کلي غاړه خلاصه شوه، نو دغه شان جنازه هم فرض کفائي ده.

**دَ جنازې مقصد**

دَ جنازې مقصد څهٔ دے؟ مړي ته دعاء کول؛ ځکه دا دَ مړي حق دے، نو زمونږ دَ خلقو رواج دا وي: چې دَ مړي پهٔ ځائے باندې ژوندي ته ځان مخې مخې ته کوي، چې دے مې اووينې چې دے خو جنازې له راغلے دے، دا ئې پهٔ زړهٔ کښې اصل درد نهٔ وي چې دې مړي له دے دَ الله تعالى نه بخښنه اوغواړي، خو بس دا ئې سودا وي: چې دَ دې مړي وارث مې اووينې چې زهٔ راغلے يم، نو صحيح ده چې تا عزيز ولي اوکړه، صبا به هغه ستا مړي له راشي، او تهٔ دَ هغهٔ مړي ته تلے ئې، هغه به ستا قبر ته راشي او تهٔ دَ هغه قبر ته تلے ئې، هغه به ستا تعزيت ته راشي او تهٔ دَ هغهٔ تعزيت ته تلے ئې، خو هغه ثواب ختم شو، نيت دَ ثواب اوکړه، دَ الله دَ رضاء دپاره ئې اوکړه، او نيت دا اوکړه: چې دې مړي له الله بخښنه اوکړي، دَ دې وجې نه پهٔ دې جنازه کښې دَ دې مړي دپاره ښهٔ پهٔ اخلاص سره دعاګانې پکار دي.

**دَ نبي ﷺ فرمانِ مبارکه**

دَ الله پيغمبر فرمائي: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ».[1]

"کلهٔ چې تاسو پهٔ يَو مړي جنازه کوئ نو ښه پهٔ اخلاص سره دعاء اوکړئ (چې هغه مړي له الله بخښنه اوکړي)".

او دَ دې دعاء نه مراد هغه دعاء ده چې کومه پهٔ دې جنازه کښې لوستلے کيږي، لکه مونږه عام

(1) اخرجه أبو داود في كتاب الجنائز، باب الدعاء للميت، برقم: (3199).

طور سره دعاء وايو: «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيمَانِ».[1]

"اے الله! ته بخښنه اوکړې زمونږ ژوندو او مړو ته، حاضرو، موجودو او غائبو ته، ماشومانو او غټو ته، نارينو او زنانو ته، اے الله! څوک چې ته پيدا کوې زمونږ نه نو په پيدا کړې ده لره په اسلام باندې، او څوک چې ته وفات کوې زمونږ نه نو هغهٔ وفات کړې په ايمان باندې".

په دې کښې دَ ځان دپاره هم دعاء ده، دَ مړي دپاره هم ده، دَ ژوندو دپاره هم ده، مشرانو او کشرانو، نارينه او زنانو ټولو دپاره دعاء ده، دا جامعه دعاء ده، نورې دعاګانې هم په احاديثو کښې شته، کهٔ هغه دعاګانې وائي نو اُو دِې وائي کهٔ چا لره ورځي او کهٔ نهٔ ورځي دَ دې دعاء لوستل هم جائز دي.

**دَ نبي ﷺ په يَو مړي جنازه کول**

حديث کښې راځي: "نبي ﷺ په يَو مړي جنازه کوله، يَو صحابي وائي: زهٔ ولاړ ووم، او ما هغه جنازه واوريده..."، کله کله نبي ﷺ په بعضې اوقاتو کښې جهر تعليمًا کړے دے، خو جنازه هميشه دَ الله نبي ﷺ په جهر نهٔ ده کړې؛ ځکه دا دعاء ده او دعاء په پټه کول بهتر دي، خو کله به ئې دَ تعليم دپاره چې دا خلق ځل ياد کړي او پوهه شي چې داسې کول غواړي، نو په زوره به ئې جنازه اوکړه، دَ دې به داسې مثال شي: چې کلهٔ تهٔ يَو ماشوم ته وائې: چې تهٔ مونځ کوه، او زهٔ به تا ته ګورم، دَ ماسپښين مونځ پرې تهٔ په زوره باندې اوکړې نو ماسپښين کښې جهر چرته دے؟ يا مُنفرِد دپاره جهر چرته دے؟ او هغهٔ يواځې ولاړ دے او په زوره قراءة کوي، دَ دې دپاره چې تهٔ ئې واورې، چې صحيح وائي او کهٔ غلط وائي؟ نو داسې بعضې وخت کښې نبي ﷺ دَ تعليم دپاره چې خلق پوهه شي جهر ئې کړے دے.

صحابي وائي: هغه دعاء ما اوريده او ما ياده کړه، نبي ﷺ دا دعاء کوله: «اللهُمَّ، اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ، وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ، وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ، وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ، وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ، وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ، وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ - أَوْ مِنْ عَذَابِ النَّارِ».[2]

"اے الله! بخښنه اوکړې دهٔ ته، او رحم اوکړې په دهٔ باندې، او معافي ورته اوکړې او مخ ترې نه واړوې، او تهٔ دَ دهٔ ميلمستوب ښهٔ اوکړې، او دَ دهٔ ځائے دَ دننه کيدو (قبر) فراخه کړې، او دے په اوبو،

---

(1) انظر: "الجوهرة النيرة على مختصر القدوري" : (107/1).

(2) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب الدعاء للميت، برقم: (963).

راوره او کلئ سره اووينځي، او اے الله! ته صفا کړې دے دَ ګناهونو نه لکه څنګه چې ته سپينه جوړه دَ ښيرې نه پاکوې، او ته دهٔ لره دَ دهٔ دَ دنيا کور نه غوره کور ورکړې، او دهٔ له دَ دهٔ دَ اهل نه غوره اهل ورکړې او الله! دهٔ لره دَ دهٔ دَ بي بي نه غوره بي بي ورکړې، او ربّه! دننه کړې ته دهٔ لره جنت ته، او دَ قبر دَ عذاب نه ورله پناهي ورکړې (دَ راوي شک دے: چې پيغمبر ﷺ دَ قبر عذاب ياد کړے او کهٔ داسې ئې وئيلي چې دَ اُور عذاب نه ورله پناهي ورکړې)".

دا ډيره پوره او جامعه دعاء ده، دا هم پهٔ جنازه کښې وئيلے شي، خو دا بعضې مُليان داسې کوي: چې ولاړ وي، ولاړ وي، دَ خلقو نه خوَلې اوځي، او دَ دهٔ جنازه نهٔ خلاصيږي، دا طريقه دَ رسول الله ﷺ نهٔ وه، نبي ﷺ دا ټولې دعاګانې پهٔ يَو مړي نهٔ دي وئيلي، پهٔ يَو مړي ئې يَو دعاء وئيلې ده، نو پهٔ بل مړي ئې بله دعاء وئيلې ده، تا پسې روستو بوډاګان ولاړ دي، تا پسې روستو کمزوري خلق ولاړ دي، او بعضې خلق خو دَ سره اودريدے نشي، او تهٔ لګيا ئې، نو تهٔ به دَ خلقو هم خيال ساتې کنه، تا له خو دعاګانې درزي، نو خلقو له خو نهٔ ورزي، نو هغوي به صرف تا پسې پهٔ جنازه کښې کنځلې کوي، نو هغه کنځلې به بيا مړي له بخښې؟ دومره اوږده جنازه مهٔ کوه، چې خلق پهٔ ولاړه تنګ شي، او داسې هم مهٔ کوه: چې بعضې امام پهٔ يَو منټ کښې څلور واړه تکبيرات ختم کړي، نهٔ هغه امام پخپله جنازه باندې پوهه شي او نهٔ ئې مقتديان پوهه شي.

**دَ جنازې نه روستو اجتماعي دعاء کول**

دَ جنازې مقصد دے: مړي ته دعاء کول، چې جنازه کښې دې دعاء اوکړه نو بيا دَ جنازې نه پس دَ مړي دپاره پهٔ دغه ميدان کښې اجتماعي دعاء دا ثابت نهٔ ده، ډير خلق داسې وي چې: جنازه اوشي، او کټ پروت وي نو بيا وائي: دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ، نو چې هغهٔ لاس راښکته کړي، نو بل آواز اوکړي يَو ځل ئې بيا اوکړئ، نو دا پهٔ جنازګاه کښې بيا دعاء کول دَ جنازې نه بعد دا بدعت دے، دا دَ نبي ﷺ، دَ صحابه کرامو ﷺ او تابعينو نه ثابت نهٔ ده، دا زيادت دے پهٔ جنازه باندې، دَ دې وجې نه الحمد لله مونږ احناف هم يُو او ديوبنديان هم يُو، نو دا خلق خو به خپل کار کوي، خو هغې خلقو ته زهٔ وايم: چې ځان ته احناف وائي او ځان ته ديوبنديان وائي نو هغوي دې کم از کم دَ دې دعاء نه ځان اوساتي، دَ بريليانو نه زمونږ ګيله نشته، خپل کار به کوي، نور خلق به خپل کار کوي، خو چې تهٔ ځان ته حنفي او ځان ته ديوبندي وائي نو دَ احنافو کتابونه خو دَ دې نه ډک دي، دَ ديوبند دَ علماؤ کتابونه خو دَ دې نه ډک دي چې دا بدعت دے.

**دَ مُلا علي القاري الحنفي ﷫ قول**

زمونږ دَ فقه حنفي مشهور عالم دَ "مشكاة المصابيح" شارِح ملّا علي قاري الحنفي ﷫ لي

"وَلاَ يَدْعُو لِلْمَيِّتِ بَعْدَ صَلاَةِ الْجَنَازَةِ لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الزِّيَادَةَ فِي صَلاَةِ الْجَنَازَةِ".(1)

"دَ مړي دپاره دعاء به نهٔ غواړي پس دَ جنازې نه؛ ځکه چې دا مشابهه ده دَ زيادت

مانځهٔ دَ جنازه کښې".

**مثال**

يَو سړے پهٔ جنازه کښې پنځهٔ تکبيره کوي، نو زمونږ فقهاؤ ليکلي دي او علامه ا

الحفيد هم ليکلي دي: خلق به دَ هغهٔ سره پهٔ پنځم تکبير کښې ملګري کيږي نه، بس تهٔ خام

يه، الله دې اوکړي چې هغهٔ خو دې لس تکبيره اوکړي، خو تهٔ به ئې ورسره نهٔ کوې، تهٔ خ

پوره کړه بس خبره خلاصه ده، عوام به ورسره ملګرتيا نهٔ کوي، ولې؟ چې دَ نبي ﷺ نه پهٔ

کښې صرف څلور تکبيره پهٔ جنازه کښې نقل دي، دَ څلورو نه سيوا منسوخ دي، دغه شان

وائي: دعاء اوکړئ نو تهٔ ورسره دعاء مهٔ کوه، دَ څلورم تکبير نه سيوا تکبير پهٔ جنازه کښې

دے نو دعاء خو پهٔ طريقه اولٰی پهٔ جنازه کښې زيادت دے؛ ځکه دَ دې خو دَ سره ثبوت نشته

تکبيراتو خو لا بيا هم ذکر شته دے، ليکن آخري عمل دَ نبي ﷺ څلور تکبيره دي، نو ا

بعد بيا نبي ﷺ چرته پنځهٔ نهٔ دي کړي، پهٔ نجاشي بادشاه ئې چې جنازه اوکړه نو څلور تک

اوکړل، او بيا به ئې هميشه دپاره څلور تکبيره کول، صحابه کرامو ﷡ به هم هميشه څلور

کول، امامانو او تابعينو به هم څلور تکبيره کول.

نو کهٔ يَو سړے دَ جنازګاه ميدان کښې بيا اجتماعي دعاء کوي نو تهٔ به ئې ورسره نهٔ

هغوي ملګرتيا به نهٔ کوې؛ ځکه دا عمل بدعت دے؛ ځکه دا زيادت دے پهٔ مونځ دَ جنازه ک

کومه طريقه چې دَ نبي ﷺ نه نقل ده نو هغه هم هغه شان کوه کنه، دَ جنازې دَ مونځ دپا

کوو، دَ جنازې دَ مونځ دپاره اقامت نشته، ولې نشته؟ وجه دا ده: چې رسول الله ﷺ نهٔ دے کړے

ئې هم نهٔ کوو، اوس کهٔ يَو سړے وائي: چې آذان خو ښهٔ شے دے، تول خلق به ئې واوري او راغو

چې مونږه وايُو: چې ايماندارو! جنازه اووتله، نو آذان به مو شروع کولو، خلقو ته به پته لګيده، ا

کښې چې خلق وائي: صفونه نيغ کړئ، نو بس اقامت به ئې شروع کولو تولو خلقو به ځان برابروا

(1) انظر: "مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح" : (1213/3).

کۀ یَو سړے آذان اوکړي نو دا ګناه ده، کۀ یَو سړے اقامت پۀ جنازه کښې اوکړي دا ګناه ده، نو ولې آذان غلط شے دے؟ دَ څۀ کنځلې اوکړې؟ دا اقامت غلط شے دے، دا څۀ کنځلې وې، خو دا آذان او اقامت دغه ځائے کښې بدعت دے؛ ځکه چې رسول الله ﷺ نۀ دے کړے، نو ستا نه تپوس کوو: چې دا دعاء دَ جنازې نه پس پۀ دغه میدان کښې راته تۀ اوښایه چې دا پیغمبر کوم ځائے کښې کړې ده؟ چې تۀ ئې کوې، څنګه چې آذان او اقامت بدعت دے، دغه شان دا دعاء دَ جنازې نه پس کول هم بدعت دے.

**پۀ قبر کښې آذان کول**

یَو خبره سړے کوي بله ورته یادیږي، بعضې یاران پۀ قبر کښې مړي ته آذان کوي، چې کوم دَ آذان ځائے دے هلته خو آذان نۀ کوي، پنځۀ وخته آذان کول سنت دي، نو یَو یَو ته وائي: آذان اوکړه او بل بل ته وائي: آذان اوکړه، اکثر تړې پاتې شي، او چې کوم ځائے کښې بدعت دے نو هلته مو راتینګ کړے دے، نو بیا به دې دَ جنازې نه لږ مخکښې کړے وے نو خلق خو به جنازې ته راغلے وے، نو اوس څۀ شي دپاره آذان کوې، وائي: چې دا آذان مونږه دَ دې دپاره کوو، چې شیطان اوتختي، نو دا شیطان خو ستا پشان کم عقل هم نۀ دے، شیطان دَ مړي نه څۀ غواړي، شیطان خو ژوندو خلقو ته وسوسې اچوي، چې ګمراه ئې کړي، او دَ دین نه ئې پاتې کړي، ګناه کښې ئې مبتلا کړي، نو مړے څۀ کولے شي؟ شیطان دومره کم عقل نۀ دے چې مړي ته راځي، او پۀ مړوني ورته وسوسې اچوي.

خو کۀ بیا هم ستا دا بهانه ده چې زۀ شیطان زغلوم کنه، نو دَ شیطان دَ زغلولو دپاره دَ شریعت طریقې به استعمالوې، خپلې طریقې به نۀ استعمالوې، دے وائي: یره، جي! حدیث کښې راغلي دي: چې کله سړے آذان اوکړي نو شیطان اوتختي او باد تړې روان وي دَ هوا والا او منډې وهي، نو زۀ هم شیطان زغلوم، مونږ وایُو: شاباس! دا شیطان خو ډیرو ځایونو کښې راځي، نو هلته بیا هم آذان کوه.

**دَ مفتي عبد الرحیم لاجپوري ؒ قول**

"فتاوٰی رحیمیه" لیکلي دي:...، دا زمونږ خبرې نۀ دي، وړې خلې غټې خبرې نشي کولے، مفتي عبد الرحیم لاجپوري ؒ دَ هندوستان یَو عالم دے، لس (۱۰) جلده کښې دَ هغۀ فتاوٰی ده، "فتاوٰی رحیمیه"، هغۀ دَ خلقو دَ ذهن دَ کولاؤلو دپاره لیکلي دي: چې دا خلق وائي: چې مونږه قبر کښې مړي له ځکه آذان کوو؛ چې شیطانان ترې زغلوو، نو حدیث کښې راځي: چې کله سړے اودس ماتي ته کینښي نو شیطان راځي او سړي پورې خندا کوي، او لوبې ورسره کوي، نو دغه ځائے کښې دعاء ده، چې دعاء اووایه: «اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الخُبُثِ وَالخَبَائِثِ»،[1] خو دا چې باتھ روم ته دننه کیږې دَ هغې نه

(1) أخرجه البخاري في كتاب الوضوء، باب ما يقول عند الخلاء، برقم: (142).

ځكنبې به ئې وائي، صحراء كنبې اودس ماتے كوې او عورت دې نهٔ دے ښكاره كړے دَ هغ
ځكنبې به دا دعاء اووائي، نو دا دعاء سنت طريقه'ده، خو كهٔ ته وائي: چې زهٔ شيطان زغلوم، نو بيا
كله باتهِ روم ته ځې نو اول به آذان اوكړې چې شيطان ښهٔ لرې لاړشي، چې هغه راځي نو تا به ا
ماتے كړے وي، هلته خو تا آذان اونهٔ كړو، چې حديث كنبې راځي: چې شيطان راځي...، ترديد
حديث كنبې راځي: جې سړے دَ خپلې بي بي سره قِربان كوي نو شيطان راځي، دعاء ده: «بِسْمِ اللهِ،
جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا».[1]

"خاص پهٔ نوم دَ الله شروع كوم، اے الله! تهٔ مونږ دَ شيطان نه اوساتې او شيطان لرې كړې
څهٔ نه چې تهٔ ئې مونږ ته راكوې".

دا دعاء وايه نو دَ شيطان نه به محفوظ ئې، نو بيا خو دغې وخت كنبې هم آذان كوه، نو
روستو قِربان اوكړې.[2]

دَ الله بندها چې يَو شے دَ شريعت نه ثابت نهٔ دے نو تهٔ ورته دَ ځان نه وجې مهٔ كوره،
كنبې آذان بدعت دے، قبر كنبې اقامت كول بدعت دے، رسول الله ﷺ دَ جنازې پهٔ وخت كنـ
دے كړے، نو پهٔ قبر كنبې هم آذان بدعت دے، او دَ جنازې پهٔ وخت كنبې هم بدعت نو دغه
جنازې نه روستو دا دعاء كول هم بدعت دے.

**دَ احنافو علماؤ دَ كتابونو حوالې**

دَ دې مسئلې نه دَ احنافو دَ علماؤ كتابونه ډک دي، لكه اوگوره:

**دَ شيخ الاسلام علامه سعدي الحنفي رحمه الله قول**

دا دَ احنافو يَو لوئي عالم تير شوے دے، دَ قاضي او مفتي هم وو، او دَ دهٔ وفات پهٔ ٤٦١ هـ
كنبې شوے دے، هغهٔ وائي: "لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ".[3]

"دَ جنازې دَ مانځهٔ نه بعد به بيا دَ دعاء اهتمام نهٔ كوي".

بعضې ياران وائي: پهٔ ولاړه به ئې نهٔ كوې، نو ورته وايه: دا درته چا وئيلي دي؟ دَ "لَا يَقُوْمُ" تهَ
ليدلے دے، دلته دَ قيام نه مراد اهتمام دَ دعاء دے، كهٔ پهٔ ناسته ئې هم كوې نو هم بدعت دے، كهٔ پهٔ
ئې كوې نو هم بدعت دے، بعضې وائي: چې صفونه نيغ وي نو نهٔ به ئې كوې او چې صفونه مات

(1) أخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق، باب صفة إبليس وجنوده، برقم: (3271).
(2) انظر: "فتاوى رحيميه".
(3) انظر: "القنية" للعلاّم سعدي الحنفي: (1/56).

کوې به ئې، دا درته چا وئيلي دي؟ ولې دَ دې بدعاتو دپاره لارې جوړوئ، او دَ دروغو طريقې ورله جوړوئ، دا خو فقهاؤ ليکلي دي: کهٔ ناست ئې او کهٔ ولاړ ئې خو دغه ځائے کښې اجتماعي دعاء نشته دے.

**دَامام ابوبکر بن حامد رحمه الله قول**

دا عالم وفات دے پهٔ سن ٢٦٤ هجرئ کښې، دَے وائي: "إِنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ مَكْرُوْهٌ".(1)

"دَ جنازې دَ مونځ نه روستو دعاء کول دا مکروه دي".

**دَامام طاهر بن احمد البخاري السرخسي رحمه الله قول**

دے پهٔ کښې ٥٤٢ هجرئ کښې وفات دے، وائي: "لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ فِيْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ لِأَجْلِ الْمَيِّتِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ وَقَبْلَهَا".(2)

"دَ جنازې دَ ماځهٔ نه روستو به دَ مړي دپاره دعاء نهٔ کوي او مخکښې به ئې ترې نه هم نهٔ کوې".

**دَعلامه سراج الدين اودي الحنفي رحمه الله قول**

"إِذَا فَرَغَ مِنَ الصَّلَاةِ لَا يَقُوْمُ دَاعِيًا لَهٗ".(3)

"کلهٔ چې دَ جنازې نه فارغ شوې نو بيا به دَ مړي له دعاء دپاره نهٔ حصاريږې".

**دَامام شمس الأئمة السرخسي رحمه الله قول**

دَ دهٔ کتاب دے "المبسوط" دَ فقهې حنفي معتبر کتاب دے، وائي: "لَيْسَ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الرَّابِعَةِ دُعَاءٌ سِوَى السَّلَامِ".(4)

"دَ څلورم تکبير نه بعد بيا دعاګانې نشته، صرف سلام به کرځوې".

**دَامام قاضي خان رحمه الله قول (المتوفى ١٩٤ هجري)**

دَ دهٔ وفات پهٔ سن ١٩٤ هجرئ کښې شوے، دے وائي: "وَيُسَلِّمُ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الرَّابِعَةِ وَلَا يَقُوْلُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً".(5)

"دَ څلورم تکبير نه پس به سلام اوکرځوي، او بيا به دا دعاګانې نهٔ کوي: چې ربنا آتنا في الدنيا حسنة".

او يا نورې دعاګانې شوې نو دا به دَ څلورم تکبير نه بعد نه وائي.

(1) انظر: "الفوائد البهيّة" : (152/1).
(2) انظر: "خلاصة الفتاوٰی" : (255/1).
(3) انظر: "فتاوی سراجية" : (23).
(4) انظر: "المبسوط" لشمس الأئمة السرخسي: (64/2).
(5) انظر: "فتاوی قاضي خان": (95/1).

**دَ امام حافظ الدين محمد شهاب الكردني رحمه الله قول**

"لاَ يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ بَعْدَ صَلاَةِ الْجَنَازَةِ؛ لِأَنَّهُ دَعَا مَرَّةً".[1]

"دَ جنازې نه پس به بيا دَ دعاء اهتمام نهٔ کوي؛ ځکه چې دهٔ يو ځل دعاء اوکړه (جنازه دعاء وه)".

**دَ امام شمس الدين محمد الخراساني الحنفي رحمه الله قول**

"لاَ يَقُوْمُ دَاعِيًا لَهُ".[2]

"دَ مړي دَ دعاء اهتمام به بيا نهٔ کوي".

**دَ امام زين الدين ابن نجيم الحنفي رحمه الله قول**

"لاَ يَدْعُو بَعْدَ التَّسْلِيمِ".[3]

"دَ سلام کرځولو نه بعد به بيا دعاګانې نهٔ کوې"، جنازه خلاصه شوه.

**دَ امام زين الدين ابن نجيم الحنفي رحمه الله دويم قول**

"وَأَشَارَ بِقَوْلِهِ وَتَسْلِيمَتَيْنِ بَعْدَ الرَّابِعَةِ إِلَى أَنَّهُ لاَ شَيْءَ بَعْدَهَا غَيْرُهُمَا وهو ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ".[4]

"دَ څلورم تکبير نه بعد به بيا دوه سلامه اوکرځوي، وائي: دې ته اشاره ده: چې پهٔ ظاهر المذهب کښې دَ څلورم تکبير نه بعد بيا دعاء نشته".

**دَ علامه مفتي نصير الدين الحنفي رحمه الله قول**

*"وبعدهٔ ايستاده نماند برائے دعاء".*[5]

"پس دَ جنازه دَ مونځ نه به نهٔ اوديرېږي دَ دعاء دپاره".

**دَ مفتي سعد الله الحنفي رحمه الله قول**

*"خالي از کراهت نيست، زيرآنکه اکثر فقهاء بوجه زياده بودن برامر مسنون".*[6]

"دَ جنازې نه بعد دعاء کول دا دَ کراهت نه خالي نهٔ ده، دا مکروهه ده، اکثر فقهاء وائي، دَ کراهت وجه ئې دا ده: دا پهٔ هغهٔ مسنون امر باندې زيادت دے".

---

(1) انظر: "فتاوى بزازية": (283/1).
(2) انظر: "جامع الرموز": (125/1).
(3) انظر: "بحر الرائق" لابن نجيم الحنفي: (197/2).
(4) انظر: "بحر الرائق" لابن نجيم الحنفي: (197/2).
(5) انظر: "فتاوى برهنه": (36).
(6) انظر: "فتاوى سعديه": (130).

**د علامه کاساني رحمه الله قول**

"وَلَيْسَ فِي ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الرَّابِعَةِ دُعَاءٌ سِوَى السَّلَامِ".[1]

"په ظاهر المذهب کښې بيا د څلورم تکبير نه روستو دعاګاني نشته صرف سلام ګرځول دي".

**د امام شمس الدين ابن الفرج عبد الرحمن رحمه الله قول**

"أَنَّهُ لَا يَدْعُو بَعْدَ الرَّابِعَةِ شَيْئًا وَنَقَلَهُ عَنْ أَحْمَدَ جَمَاعَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ. وَقَالَ: لَا أَعْلَمُ فِيهِ شَيْئًا، لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ فِيهِ دُعَاءٌ مَشْرُوعٌ لَنُقِلَ".[2]

"د څلورم تکبير نه بعد به دعاء نه غواړي د امام احمد رحمه الله ملګرو دا قول د امام احمد رحمه الله نه نقل کړے دے (چونکه "المغني" والا هم د امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب والا دے نو ځکه وائي: چې دا قول د امام احمد رحمه الله نه نقل دے)، امام احمد بن حنبل رحمه الله وائي: ما ته په دې کښې په شريعت کښې هډ دعاء نه ده معلومه، ځکه که د جنازې نه روستو دا دعاء جائز وه نو حافظه به په کتابونو کښې راغلې وه".

نو که دا جائز وه نو په کتابونو کښې به راغلې وه: چې داسې الفاظ به وايه او په دې طريقه بلندې به ئې وايه لهذا چې کتابونو کښې نه ده راغلې نو دا دليل د دې خبرې دے چې جنازې نه بعد دعاء نشته.

**د امام ابو اسحاق برهان الدين رحمه الله قول**

"وَظَاهِرُهُ: أَنَّهُ لَا يُشْرَعُ بَعْدَهَا دُعَاءٌ، نَصَّ عَلَيْهِ، وَاخْتَارَهُ الْخِرَقِيُّ وَابْنُ عَقِيلٍ وَغَيْرُهُمْ".[3]

"ظاهر دا دے چې د جنازې نه روستو دعاء جائز نه ده، په دې هم علماؤ تصريح کړې ده امام خرقي رحمه الله، ابن عقيل رحمه الله او نورو علماؤ دا خبره غوره کړې ده".

**د "مختصر القدوري" والا قول**

"إِنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ مَكْرُوهٌ".

"د جنازې مونځ نه پس دعاء مکروه ده".

**د علامه عبد الحي لکهنوي رحمه الله قول**

ډيره عجيبه طريقې سره خبره کوي، وائي: "أَيُّ صَلَاةٍ يُكْرَهُ الدُّعَاءُ بَعْدَهَا؟".

سوال دے وائي: "په مونځونو کښې هغه کوم مونځ دے چې د هغې نه بعد دعاء مکروه ده؟".

بيا سرے به وائي: چې داسې مونځ خو ما ته نه دے معلوم، چې مونځ اوکړې او د هغې نه پس

---

(1) انظر: "بدائع الصنائع" للكاساني: (313/1).

(2) انظر: "المغني" لابن قدامة: (365/2).

(3) انظر: "المبدع في شرح المقنع" لأبي إسحاق برهان الدين في كتاب الجنائز، صفة صلاة الجنازة: (255/2).

دعاء مکروه وي، دَ مونځ اطلاق په جنازه هم کیږي، نو په مونځونو کښې هغهٔ مونځ کوم دے، هغې نه پس دعاء مکروه ده؟ هغهٔ دَ جنازې مونځ دے، جواب کښې لیکي: "أَقُوْلُ: هِيَ صَلَاةُ الْجَنَا

"زهٔ وایم: چې هغه دَ جنازې مونځ دے".

**دَ خلقو دَ ذهن تیزولو دپاره تپوس**

مونږ چې وارهٔ وو، یَو کس وو، نو هغهٔ اوونیل: طالبه! تپوس اوکړم؟ زمونږ یَو ملګرے و ورته اوونیل: اوکړه کنه، وائي: په فرضو کښې ایغ نیغ فرض کوم دي؟ مونږ وئیل: چې دا لا ښکاره ده، مونږ ورته اوونیل: چې په فرضو کښې مونږ ایغ نیغ فرض نهٔ پیژنو، فرض ټول دغه دي، - پکښې سرے ښکته شي، او کلهٔ پکښې سرے نیغ شي، وائي: ښهٔ سوچ اوکړئ، مونږ ورته مونږ به څهٔ سوچ اوکړو، وائي: هسې سبقونه وایئ، جنازه ده کنه، دا ایغ نیغ مونځ دے کنه، نیغ ئې، او په ولاړه به سلام اوګرځوې، نهٔ پکښې ښکته کیدل شته، او نهٔ پکښې بره کیدل شته.

یَو کس بل کس ته وئیل: چې جنازه کښې دې په تندي کښې ازغے لاړشي نو په کوم ئې اوباسې؟ چې ساده سړے وي وائي به: چې په هر لاس ئې اوباسې، او چې سوچ اوکړي: چې کښې خو دَ سره سجده نشته، نو تندے کښې به دې ازغے څنګه لاړشي.

نو دغه شان علامه عبد الحيّ دَ ذهن دَ کولاؤلو دپاره تپوس کوي: چې هغهٔ کوم مونځ دے هغې مانځهٔ نه بعد دعاء مکروه ده؟ نو جواب ئې دا دے: چې هغهٔ دَ جنازې مونځ دے، چې دَ بعد دعاء مکروه ده، ټولو علماؤ لیکلي دي.

**دَ امام شمس الأئمة السرخسي رحمه الله دویم قول**

وائي: "وَلِأَنَّ هَذِهِ لَيْسَتْ بِصَلَاةٍ عَلَى الْحَقِيقَةِ إِنَّمَا هِيَ دُعَاءٌ وَاسْتِغْفَارٌ لِمَيِّتٍ".(2)

"دَ جنازې نه بعد دعاء ځکه مکروه ده؛ چې په دې باندې اطلاق دَ مونځ خو کیږي حقیقت کښې ګورے مونځ نهٔ دے، دا جنازه دعاء ده، او دا دَ مړي دپاره بخښنه غوښتل دي".

نو دا حقیقت کښې مونځ نهٔ دے؛ تهٔ نهٔ ګورې! چې په دې کښې دَ مانځهٔ هغهٔ ارکان پکښې رکوع شته، نهٔ پکښې سجده شته، کهٔ دا حقیقةً مونځ وے نو بیا به پکښې رکوع هم وے، او رکوع، سجده پکښې ځکه نشته چې ستا مخې له مړے پروت دے، چې تهٔ سر

(1) انظر: "نفع المفتي والسائل" لعبد الحي اللكهنوي: (141).

(2) انظر: "المبسوط" لشمس الأئمة السرخسي: (64/2).

مري له سرتيتيږي، او خلق به بيا وائي: چې مړي له ئې سجده اوکړه، نو په دې کښې رکوع، سجده نۀ وي؛ ځکه دا عام مونځ نۀ دے، په دې کښې مقصد صرف دعاء ده، او دعاء جنازه کښې اوشوه؛ ځکه نۀ چې لاس په نامه ولا ړ وې، امام به تکبير وئيلو، تا په اول تکبير کښې ثناء اووئيله، دويم تکبير کښې دې درود اووئيلو، دريم تکبير کښې دې دعاء اووئيله، نو دا دعاء نۀ وه، خو آفسوس دا دے: چې چا له دعاء نۀ ورځي، نو هغۀ وائي: مونږ خو دعاء نۀ ده کړې، اوس به دعاء کوو، دا خو دَ فقهاءِ احناف خبرې وې، اوس دَ علماء ديوبند دَ کتابونو نۀ حوالې واورئ.

**دَ علماءِ ديوبند دَ کتابونو حوالې**

مونږ دَ ديوبند فتاوٰى په مسائلو کښې پيش کوو، دَ دار العلوم ديوبند فتاوٰى ده "فتاوٰى دار العلوم دیوبند"...، خلق وائي: دا پنج پيريان ديوبنديان نۀ دي، الحمد لله مونږ کلک ديوبنديان يُو، دا مبتدعين ديوبنديان نۀ دي، چې کوي بدعات او ځان ته ديوبندي وائي، ديوبند جوړ شوے وو دَ بدعاتو دَ ردّ دپاره، چې هغې دور کښې بريليان وو، هغوي به بدعات کول، دَ علماءِ ديوبند دَ بدعاتو نه سخت نفرت وو، او مونږ چې دَ کومو بدعاتو ردّ کوو هغه دَ ټولو ديوبنديانو په کتابونو کښې شته، او هغوي په هغه بدعاتو ردّ کړے پخپلو کتابونو کښې، عوام خو کتاب نۀ پيژني، دوي خو صرف دَ مُلا خُلې ته ګوري، فلانکے مُلا دا وائي، او فلانکے مُلا دا ۏائي، دَ کتاب تپوس ترې اوکړه چې ستا دا خبره په کوم کتاب کښې ده؟

**(۱) فتاوٰى دار العلوم ديوبند حواله**

*"نمازِ جنازہ کے بعد دعاء مشروع نہیں، اور حدیث: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ»،[1] کی دعاء سے مراد نمازِ جنازہ کی دعاء ہے، یعنی پہلے حدیث کا مطلب یہ ہے: کہ تم نماز پڑھو تو اس کے اندر دعاء جنازہ اخلاص کے ساتھ پڑھو".*[2]

نو معنٰى دا ده: "چې دَ دې حديث مطلب دا دے: چې تاسو په مړي جنازه کوئ په اخلاص سره دعاء اوکړئ، دا په دې جنازه کښې دننه دعاګانې يادوي او چې کلۀ دې سلام اوګرځولو نو بيا دا دعاء جائز نۀ ده"، او بيا ئې پرې دَ کتابونو حوالې نقل کړې دي.

**(۲) دَ مفتي رشيد احمد لدهيانوي ؒ قول**

دَ دۀ فتاوٰى ده: "احسن الفتاوٰى"، هغې کښې وائي: *"سوال: نمازِ جنازہ کے بعد دعاء مانگنا کیسا ہے؟"*، "دَ جنازې نه بعد دعاء غوښتل خنګه دي؟"، *"الجواب: نمازِ جنازہ کے بعد دعاء مانگنا چونکہ حضور ﷺ اور صحابہ، وتابعین سے ثابت نہیں؛*

(1) أخرجه أبو داود في كتب الجنائز، باب الدعاء للميت، برقم: (3199).

(2) انظر: "فتاوٰى دار العلوم ديوبند": (306،307/5).

اسلئے فقہاء اسے ناجائز اور مکروہ فرماتے ہیں"۔[1]

"جواب دا دے چې دَ جنازې نه بعد دعاء نبي ﷺ دَ رسول الله نه ثابت ده او نهٔ دَ صحابه کرامو ﷺ او تابعی دا ثابت ده، لهٰذا دغه وجه ده چې فقهاء دې دعاء ته ناجائز او مکروه وائي"، او بیا ئې ډیرې حوالې ذکر کړې دي

**(۳) دَ مفتي کفایت الله دهلوي ﷫ قول**

دَ دهٔ کتاب دے: "کفایة المفتي" پهٔ لسو (۱۰) جلدو کښې، دهٔ هغې کښې یَو مستقل عنوان کړے: "جنازہ کے بعد دعاء بدعت ہے"۔

"دَ جنازې نه بعد اجتماعي دعاء دا بدعت دے".

او سوال نقل کوي او دَ هغې جواب: "سوال: نمازِ جنازہ کے سلام کے بعد متّصل ہاتھ اٹھاکر دعاء مانگنا شریعت میں اصل رکھتا ہے یا نہیں؟"۔

"دَ جنازې نه دَ سلام نه بعد چې خلق لاس اوچت کړي او دعاء کوي نو دَ دې څهٔ اصل شته او که"

"الجواب: نمازِ جنازہ کے بعد متّصل ہاتھ اٹھاکر دعاء مانگنا شریعت میں کوئی ثبوت نہیں اور نمازِ جنازہ خود ہی دعاء ہے"۔[2]

"پهٔ شریعت کښې دَ دې هیڅ ثبوت نشته چې دَ جنازې نه بعد لاس اوچتوې او دعاء کوې دا دَ جنازې دا مونځ پخپله دعاء ده".

دا خبره هغهٔ پهٔ دې خپل کتاب "کفایة المفتي" کښې درې، څلور ځایه لیکلې ده.

**(٤) دَ مفتي عبد الرحیم لاجپوري ﷫ ردّ پهٔ دې دعاء باندې**

دَ دهٔ فتاوٰی ده: "فتاوٰی رحیمیه"، هغې کښې دهٔ سخت ردّ کړے دے، او بیا ئې دَ دولو کتابونو حوالې ورکړې دي پهٔ دې: چې دا بدعت دے.[3]

**(٥) دَ مفتي محمد یوسف لدهیانوي ﷫ اول قول**

دَ دهٔ یَو کتاب دے: "اختلافِ امت اور صراطِ مستقیم"، نو هغې کښې دے وائي: "دا بدعت دے".[4]

**(٦) دَ مفتي محمد یوسف لدهیانوي ﷫ دویم قول**

دَ دهٔ فتاوٰی ده: "آپ کے مسائل اور انکا حل"، هغې کښې وائي: "جنازہ خود دعاء ہے، اسکے بعد دعاء کرنا سنت

(1) انظر: "احسن الفتاوٰی": (336/1).
(2) انظر: "کفایة المفتي": (85/4).
(3) انظر: "فتاوٰی رحیمیه": (109/7).
(4) انظر: "اختلاف امت اور صراط مستقیم": (115/1).

نہیں: اسلئے اسکو سنت سمجھنا اور سنت کی طرح اس کا التزام کرنا صحیح نہیں"۔[1]

"دا جنازه بخپله دعاء ده، دَ جنازې نه روستو دعاء دَ سنتو نه ثابت نهٔ ده، پهٔ دې وجه دا سنت ګڼړل او یا دَ سنتو غوندې التزام ورباندې کول صحیح نهٔ دي".

**(۷) دَ مفتي خیر محمد جالندهري ﷫ بحث**

دَ دهٔ فتاوٰی ده: "خیر الفتاوٰی"، هغې کښې هغهٔ دوه ځایه دا بحث کړے دے: اول جلد کښې او دریم جلد کښې او دریم جلد کښې ئې بحث ډیر تفصیل سره کړے دے، دومره پورې تفصیل ئې کړے دے: دا څوک چې دَ جنازې نه بعد دعاء کوي نو دَ هغوي اتلس (۱۸) دلائل ئې راخستلي دي او دَ یو یو نه ئې جواب کړے دے چې ستاسو دا دلائل کمزوري دي، او دا دعاء نشته.[2]

**(۸) مفتي اعظم پاکستان، مفتي شفیع ﷫ لیکلي دي**

هغهٔ لیکلي دي: "چې دا دعاء بدعت دے".

**(۹) مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ لیکلي دي**

دَ دهٔ کتاب دے: "امداد الاحکام"، هغې کښې دے لیکلي: "چې دا بدعت دے".[3]

**(۱۰) "فتاوٰی حقانیه" کښې لیکلي**

دا دَ دار العلوم اکوړه خټک فتاوٰی ده، هغې کښې ئې لیکلي دي: "چې دا دعاء ناجائز ده".[4]

**(۱۱) دَ مفتي محمود ﷫ لیکلي دي**

مفتي محمود صاحب کوم چې دَ جمعیت علماء اسلام باني وو، دَ هغهٔ فتاوٰی ده: "فتاوٰی محمودیه"، دَ هغې پهٔ یو جلد کښې ئې څوارلس (۱۴) کرته لیکلي دي: "چې دا بدعت دے".[5]

**(۱۲) دَ مولانا سرفراز خان صفدر صاحب ﷫ بحث**

مولانا سرفراز خان صفدر صاحب پهٔ "راه سنت" کښې پهٔ دې مسئله باندې تفصیلي بحث کړے دے.[6]

---

(1) انظر: "آپ کا مسائل اور انکا حل": (165/3).

(2) انظر: "خیر الفتاوٰی": (588/1، 328/3-349).

(3) انظر: "امداد الاحکام": (195/1).

(4) انظر: "فتاوٰی حقانیه": (55/2).

(5) انظر: "فتاوٰی محمودیه": (المجلّد الثالث: 3).

(6) انظر: "راه سنت": (205).

**(۱۳) دَ شيخ القرآن مولانا خان بادشاه صاحب رحمه الله تفصيلي بحث**

دَ دهٔ كتاب دے: "المسامير الناريه علىٰ مقالات الفريديه"، هغې كښې شيخ صاحب مكمَل تفصيلي بحث كړے دے.

نورو علماؤ هم پهٔ دې باندې ښهٔ ردّ كړے دے، علماءِ احناف وائي: چې دَ جنازې نه روستو بهٔ جمع دعاء كول دا بدعت دے، او علماء ديوبند هم وائي: چې دا بدعت دے، نو لهٰذا دَ دې رسمونو نه ځان ساتل پكار دي، كوم شے چې دَ شريعت نه ثابت دے هغه كافي دے، او كوم شے چې دَ شريعت نه ثابت نهٔ دے دَ هغې نه ځان بچ كول پكار دي، هغې كښې ثواب نشته.

الله رب العزة دې دَ عمل كولو توفيق رانصيب كړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ

(سورة آل عمران: 31)

# موضوع

# دَ مړي كور كښې خوراك كول

**بتاريخ: 16-11-2012**

**بمقام جلسۍ**

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ مرږي دَ کور نه خوراک کول

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُ
سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْف
سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا الل
وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ
لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَ
مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ
فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».(2)

عزتمندو، مسلمانانو رونړوا دَ امام الأنبياء محمد مصطفٰی ﷺ ژوند زمونږ او ژوند دپاره يَو نمونه ده، مونږ او تاسو به هله کامياببږو چې مونږ پهٔ هر کار کښې طريق رسول الله ﷺ شروع کړو، او څومره چې بدعات، رسمونه او رواجونه دي چې دَ هغې ځان بچ کړو؛ څکه محمد رسول الله ﷺ الله تعالى مونږ او ستاسو دپاره رالیږلے وو، چې هغهٔ اتباع او تابعداري اوکړو، او کوم خلق چې دَ نبي ﷺ تابعدار دي، هم دغه خلق پ دي؛ څکه الله تعالى فرمائي: ﴿وَإِنْ تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا﴾.(3)

"کهٔ چرته تاسو دَ نبي ﷺ صحيح تابعداري اوکړه نو تاسو به پهٔ سمه لار شئ".

مسلمانانو رونړوا نبي ﷺ چې کوم کار کړے دے، دَ هغې کار کول دين دے، چې دَ ت ئې منع کړې وي، دَ هغې نه ځان بچ کول دين دے، دَ کوم کار ئې چې نهٔ امر کړے دے،

(1) [سورة آل عمران: 31].
(2) أخرجه البغوي في "شرح السنة" في كتاب الإيمان، باب رد البدع والأهواء، برقم: (104).
(3) [سورة النور: 54].

کړي دہ، نو دا کار به هم نهٔ کوي، کولو ته ئې ضرورت نشته دے، او کهٔ ثواب ئې ګڼړي نو بدعت دے.

**دَ ملا علي قاري ﷫ قول**

ملا علي قاري ﷫ ليکلي دي: "وَالْمُتَابَعَةُ كَمَا تَكُونُ فِي الْفِعْلِ تَكُونُ فِي التَّرْكِ أَيْضًا".[1]

"چې متابعت او تابعداري دَ نبي ﷺ څنګه چې پهٔ فعل (دَ يَو عمل پهٔ کولو) او کولو کښې دہ نو دغه شان ترک (دَ يَو عمل پهٔ پرېښودلو) کښې هم دہ".

چې څهٔ کار نبي ﷺ کړے وي نو دَ هغې کول سنت دي او کوم کار ئې چې نهٔ وي کړے نو دَ هغې نهٔ کول سنت دي. پهٔ دغه سلسله کښې مخکښې دَ بعضې بدعاتو ذکر شوے وو.

**دَ مړي دَ کور نه خوراک کول بدعت**

اوس دَ يَو بل بدعت وضاحت کوو، چې خلقو کښې ډير عام دے، او دَ هغې دَ شريعت نه څهٔ ثبوت نشته دے، بلکه اُلټه خلق ځان ګناه ګارَوي، او پهٔ بدعاتو کښې مبتلا کوي، هغهٔ دا: چې پهٔ چا باندې غم راشي، دَ مړي وارثان نورو خلقو له دَ ډوډۍ او دَ خوراک انتظام کوي، ديګونه پخوي، وريژې پخوي، پهٔ بعضې علاقو کښې څاروي حلالوي، او بڼهٔ درون پروګرام کوي او آواز اوکړي: چې کوم خلق غم له راغلي دي جنازې له راغلي دي، دَ جنازې نه پس يَو کس له دَ تلو اجازت نشته، ترڅو چې دَ مړي دَ وارث نه اجازت نهٔ وي غوښتے او کهٔ کوم سړے دَ ډوډۍ دَ خوراک نه مخکښې بغير دَ اجازت نه لاړو نو هغهٔ به زما جنازې او غم له نهٔ وي راغلے، نو بيا خلق وائي: دے اوس خفه کيږي، څاڅه حصاريدل پکار دي، دَ ميلمه او دَ کوربه تميز نهٔ وي، خو چې چا جنازه کړي وي پهٔ هغې تولو ډوډۍ اوخوري، دا طريقه بدعت دے، دَ رسول الله ﷺ نه دَ دې هيڅ قسمه ثبوت نشته، زمونږ احاديث او فقه پهٔ دې خبره باندې شاهد دي: چې کله پهٔ چا غم راشي نو دَ غم والا کوم وارثان چې دي دَ هغوي چې څومره خپلوان دي، رشته داران دي، اګر کهٔ لرې وي، او څومره چې دَ هغوي ګاونډيان دي، اګر کهٔ پردي خلق دے، خو چې ګاونډ کښې اوسيږي نو هغوي له دا مستحب دي: چې دوي دَ مړي کور والا ته ډوډۍ راوليږي، او پهٔ هغوي باندې ئې اوخوَري، پهٔ ځائے دَ دې چې بهٔ دې سنتو عمل اوکړو نو دا خلقو پهٔ ځائے پرېښودل او يَو بدعت ئې شروع کړو چې دَ مړي کور له به نهٔ راوړي، بلکه تاسو به

---

(1) انظر: "مرقاة المفاتيح" لملا علي القاري: (42/1).

راځئ د مړي دَ کور نه به ئې خورئ، حالانکه دَ مړي دَ کور نه خوراک کول مکروه د
دي، دَ مړي کور والا چې خلقو له کوم طعام تیاروي نو دَ دې خوراک مکروه تحریمي دے
شاء الله دَ دې وضاحت به مونږ کوو.

**صحیح طریقه**

صحیح طریقه دا ده: چې غم اوشو نو دَ مړي چې خومره ګاوندیان دي اګر کۀ لرې
وي، خو چې دَ دوي سره ئې څۀ رشته وي، هغوي له مستحب دي چې دَ مړي کور والا
دوډئ راوړي، او پۀ هغوي باندې ئې اوخروي...

**دَ امام ترمذي رحمه الله پۀ دې مسئله باب قائمول**

امام ترمذي رحمه الله باب قائم کړے دے پۀ دې مسئله باندې: "بَابُ مَا جَاءَ فِي الطَّعَامِ يُصْنَعُ لأَهْلِ الْمَ
"باب دے پۀ بیان دَ دې کښې چې هغۀ طعام چې دَ مړي دَ وارثانو دپاره تیارولے شي
چې دَ دې ثبوت دَ احادیثو نه شته چې مړي والا دپاره طعام ګاوندیان تیار کړي،
مستحب عمل دے؛ ځکه دے بیا پۀ دې باندې حدیث راوړي: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: لَ
نَعْيُ جَعْفَرٍ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اصْنَعُوا لأَهْلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، فَإِنَّهُ قَدْ جَاءَهُمْ مَا يُشْغِلُهُ
"عبد الله بن جابر رضي الله عنه نه روایت دے، هغۀ وائي: هر کلۀ چې راغلے خبر دَ مرګ دَ جع
(دَ جعفر رضي الله عنه دَ مرګ خبر راورسیدو، چې دے شهید شوے دے) نو نبي ﷺ اوفرمائیل: دَ
دَ اهل دپاره خوراک تیار کړئ؛ ځکه پۀ هغوي باندې داسې حالات راغلي دي چې دوي
دوډئ دَ پخولو نه مشغوله کړي دي".

دَ دې حدیث نه صفا معلومه شوه: چې غم اوشي نو تۀ به دَ غم کور والا ته دَ دوډئ
کوې اوکوره‌! نبي ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته حکم کړے دے.

**دَ امام ابوداود رحمه الله باب قائمول**

امام ابوداود رحمه الله هم ترجمة الباب قائم کړے دے، او ترجمة الباب چې محدثین قائم
دي مطلب دا وي: چې دَ دې حدیث نه دا مسئله معلومیږي، نو امام ابو داود رحمه الله پۀ دې -

(۱) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب ما جاء في الطعام يصنع لأهل الميت، برقم: (998).

باندې باب قائم کړے دے: "بَابُ صَنْعَةِ الطَّعَامِ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ".

"باب دے پۀ بیان دَ دې کښې چې دَ مړي دَ کور والا دپاره ډوډۍ تیارول دا پۀ اسلام کښې شته دے".

او دا ډیره ښۀ خبره ده، چې تۀ به دَ هغوي دپاره ډوډۍ انتظام کوي، او بیا دے پۀ دې باب کښې هم دغه حدیث راوړي، الفاظ لږ بدل دي: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، فَإِنَّهُ قَدْ أَتَاهُمْ أَمْرٌ شَغَلَهُمْ».(1)

"دَ عبد الله بن جعفر ﷺ نه روایت دے: چې رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: دَ جعفر دَ کور والا دپاره ډوډۍ تیاره کړئ؛ ځکه پۀ هغوي باندې یَو داسې حادثه راغلې ده چې هغوي ئې دَ ډوډۍ نه مشغوله کړي دي".

غم پرې راغلے دے، ډوډۍ پخولو ته اوزګار نۀ دي، تاسو پۀ هغوي باندې ډوډۍ اوخروئ، ایماندارو! دا دَ رسول الله ﷺ حدیث مبارکه دے نو چې مونږ او تاسو دَ هغۀ اُمتیان یُو نو ولې پۀ دې حدیث باندې عمل نۀ کوو؟

**دَامام ابن ماجة ﷺ باب قائمول**

امام ابن ماجة ﷺ باب قائمَوي: "بَابُ مَا جَاءَ فِي الطَّعَامِ يُبْعَثُ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ".

"باب دے پۀ بیان دَ دې کښې چې طعام به دَ مړي کور والا ته لیږلے شي".

مطلب دا دے: چې دا پۀ شریعت کښې شته دے ځکه ئې پرې باب قائم کړو، او بیا پۀ دې باندې حدیث راوړي، چې تۀ به ډوډۍ تیاره کړې او دَ مړې کور کره به ئې اولیږې او پۀ دې دوه روایات راوړي: یَو روایت هم دغه مخکښې چې ذکر شو چې: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ، أَوْ أَمْرٌ يَشْغَلُهُمْ».(2)

"دَ عبد الله بن جعفر ﷺ نه روایت دے: چې هر کله چې دَ جعفر دَ مرګ خبر راغلے نو نبي ﷺ اوفرمائیل: دَ جعفر دَ کور والا دپاره ډوډۍ تیاره کړئ؛ ځکه پۀ هغوي باندې هغۀ مصیبت راغلے دے، چې هغوي ئې دَ ډوډۍ نه غافله کړي دي".

(1) أخرجه أبو داود في كتاب الجنائز، باب صنعة الطعام لأهل الميت، برقم: (3132).
(2) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، باب ما جاء في الطعام يُبعث إلى أهل الميت، برقم: (1610).

دا «فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ، أَوْ أَمْرٌ يَشْغَلُهُمْ» دې الفاظو کښې دَ راوي شک دے: چې آيا
دا «فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ» الفاظ وئيلي دي؟ او کهٔ دا «فَقَدْ أَتَاهُمْ أَمْرٌ يَشْغَلُهُمْ» الفاظ ئې
دي؟ بهر حال مطلب دا دے: چې دوي باندې يَو کار داسې راغلے دے چې دوي ئې
پخولو نه مشغوله کړي دي.

دارنکې بل روايت نقل کوي: "أُمُّ عَوْنٍ ابْنَةُ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ جَدَّتِهَا أَسْمَاءَ بِنْتِ
قَالَتْ: لَمَّا أُصِيبَ جَعْفَرٌ رَجَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَهْلِهِ فَقَالَ: «إِنَّ آلَ
شُغِلُوا بِشَأْنِ مَيِّتِهِمْ، فَاصْنَعُوا لَهُمْ طَعَامًا» قَالَ عَبْدُ اللهِ، فَمَا زَالَتْ سُنَّةً حَتَّى كَانَ حَدِيثًا، فَتُرِكَ

"دَ ام عون لور دَ محمد بن جعفر نه روايت دے هغهٔ دَ خپلې نيا اَنئ چې اسما
عميس ده، نه روايت کوي: اسماء بنت عميس اووئيل: هر کله چې جعفر ﷺ شهيد شو
الله ﷺ خپل کور والا ته راغلے او خپلو بيبيانو ته وائې: يقينًا دَ جعفر کور والا او
هغوي دَ خپل مړي دَ خفګان دَ وجې نه مشغوله دي، تاسو دَ هغوي دپاره ډوډئ تياره کړې

دې دومره محدثينو بابونه پهٔ دې قائم کړل چې دَ مړي کور والا ته به تاسو ډوډئ ا
نبي ﷺ پخپل کور کښې خپلو بيبيانو ته حکم کړے دے: چې ډوډئ تياره کړئ او
کره ئې اوليږو، نو دا مسئله بالکل واضحه شوه: چې تهٔ به ئې پخپل کور کښې تيارَوې او
کور والۇ ته به ئې اوړې.

دَ نبي ﷺ نه اوچته هستي نشته، نبي ﷺ ئې خپل کور کښې تيارَوي او دَ مړي کو
ليږي، نو کهٔ مُلا او عالم او پير صاحب وي نو دے به هلته نهٔ ځي، دے به ئې هم پ
کښې تيارَوي او هلته به ئې ليږي.

اوس دَ دې حديث پهٔ تشريح کښې محدثينو ليکلي دي، امام ترمذي ﷫ چې کلهٔ دا روايت
نو پهٔ "سنن ترمذي" باندې دَ شاه انور شاه کشميري ﷫ حاشيه لکيدلې ده: دَ "عَرْفُ الشَّذِي" پهٔ نو
صاحب دَ ترمذي پهٔ حاشيه باندې ليکلي دي: "يُسْتَحَبُّ لِلْجِيرَانِ وَالأَقْرِبَاءِ صُنْعُ الطَّعَامِ لأَهْلِ الْمَيِّتِ

(1) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، باب ما جاء في الطعام يُبْعَث إلى أَهْلِ المَيِّتِ، برقم: (1611).

(2) انظر: "العرف الشذي حاشية الترمذي" لمحمد أنور شاه الكشميري الهندي، في أبواب الجنائز، باب ما جاء يُصْنَعُ لأَهْلِ المَيِّت، برقم: (998).

"مستحب دي دَ کاونديانو او رشته دارانو دپاره چې ډوډۍ تياره کړي دَ مړي کور والا لره".

**دَ "سنن ابي داود" پهٔ حاشيه لړ اوګورئ**

دارنګې دَ "سنن ابي داود" باندې ئې هم ليکلي دي: "وَفِي الْحَدِيْثِ دَلِيْلٌ عَلى أَنَّهٗ يُسْتَحَبُّ لِلْجِيْرَانِ وَالْأَقَارِبِ تَهْيِئَةُ طَعَامٍ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ".

وائي: "پهٔ دې حديث کښې دليل دے پهٔ دې خبره باندې چې دَ کاونديانو او دَ خپلوانو دپاره مستحب دا دي چې دَ مړي کور والا دپاره ډوډۍ تياره کړي".

نو دا يَو مستحب او خائسته خبره ده.

دارنګې بيا ئې ورسره حاشيه کښې يَوه بله خبره هم ليکلې ده: "وَاخْتَلَفُوْا فِي أَكْلِ غَيْرِ أَهْلِ الْمُصِيْبَةِ ذٰلِكَ الطَّعَامَ...".

"علماؤ اختلاف کړے دے چې دَ مړي پهٔ کور کښې به ډوډۍ صرف دَ مړي وارثان خوري او کهٔ نا بل څوک ئې هم خوړے شي؟".

دا مسئله شوه، نو دَ علماؤ پهٔ دې کښې اختلاف دے: چې آيا دغه ډوډۍ بغير دَ مړي دَ وارثانو نه بل څوک خوړے شي او کهٔ نا؟ "وَقَالَ أَبُو الْقَاسِمِ لَا بَأْسَ لِمَنْ كَانَ مَشْغُوْلًا بِجَهَازِ الْمَيِّتِ".

"نو ابو القاسم وئيلي دي: چې هغهٔ سړي باندې هم څهٔ ګناه نشته چې کوم کس دَ مړي کفن، دفن او غسل وغيره کښې مشغوله دے".

کفن او غسل کښې يَو تن مشغوله دے او کور ته لا نهٔ دے رسيدلے، او يا دَ لرې ځائے نه راغلے دے نو کهٔ دغه کس دا ډوډۍ اوخوري نو خير دے، خو دَ مړي دَ کور ډوډۍ نا، بلکه هغهٔ ډوډۍ چې خلق ئې راوړي نو هغهٔ خير دے، کهٔ يَو سړے ميلمه دے او دَ مړي پهٔ کفن، غسل وغيره باندې مصروف دے کهٔ هغهٔ ئې هم هلته اوخوري نو خير دے خو نور خلق به دلته ځان نهٔ ميلمانهٔ کوي.

**دَ علامه شامي رحمه الله قول**

وَيُسْتَحَبُّ لِجِيْرَانِ أَهْلِ الْمَيِّتِ وَالْأَقْرِبَاءِ الْأَبَاعِدِ تَهْيِئَةُ طَعَامٍ لَهُمْ يُشْبِعُهُمْ يَوْمَهُمْ وَلَيْلَتَهُمْ، لِقَوْلِهٖ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَقَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ».[1]

(1) انظر: "الرد المحتار على الدر المختار" لابن العابدين الشامي: (240/2).

"مستحبه ده دَ مړي دَ ګاونډيانو دپاره او دَ هغهٔ خپلوانو دپاره چې هغهٔ لرې اوسيږي نهٔ دي خو رشته داران ئې دي) چې دَ دې مړي دَ کور والا دپاره دَ ډوډئ انتظام اوکړي ځکه چې نبي ﷺ وئيلي دي: چې دَ جعفر دَ کور والا له خوراک تيار کړئ...".

**غلطې طريقې**

پهٔ دې خلقو کښې عجيبه کار دے کومې چې صحيح طريقې دي هغهٔ زمونږ نه ختميږي، او رسم ورواج پهٔ مونږ کښې ورځ پهٔ ورځ رادننه کيږي، دا درې ورځې دَ مړي پهٔ دې کښې دَ غم والؤ کور ته ډوډئ اوليږئ، او پهٔ دې کښې زيات اهميت دَ ړومبئ دے چې پهٔ کومه ورځ غم شوے وي پهٔ هغي ليږل زيات مستحب دي، کهٔ پهٔ دې روستو کښې خوک راونهٔ ليږي نو بيا خو غم کم شوے وي، بيا ئې کهٔ دَ مړي وارثان ځان له پخوي نو څهٔ مسئله نشته؛ ځکه چې غم خو ختم شوے دے، يَو ورځ او يَو شپه دغه غم کنه، خو کهٔ نهٔ وي نو تر درې ورځو پورې ئې ورته اوليږئ، خو دَ دې اولې ورځې ډير پکار وي؛ ځکه دغه وخت کښې غم تازه دے، هغوي دې خبرو له اوزګار نهٔ دي، زمونږ معاشره کښې اکثر داسې وي چې پهٔ ړومبئ ورځ خو څوک دا نهٔ وائي چې ډوډئ ورکړو او بيا پهٔ دويمه او دريمه ورځ دومره ډوډئ راچليږي چې بيا ئې هغوي سمبالولے نشي.

**دَ ابن الحاج رحمه الله قول**

وائي: دَ خلقو دا يَو رواج هم دے: چې مړے پروت وي، نو دَ مړي وارثان ډوډئ نه شرم ګڼري، حالانکه دا څهٔ مسئله نهٔ ده، تهٔ ئې ورته يَوسه، هغوي راجدا کړه او ورته وائ ډوډئ اوخرئ، مړے خو به کلهٔ خخيږي، حالانکه بهتره دا ده: چې څومره زر مړے دفن شي دومره ښهٔ ده، خو کهٔ مړے پروت هم وي نو کهٔ دَ مړي وارثان ډوډئ خوري نو څهٔ ګناه نشته، ځکه چې جنازه کيږي او بيا دفن کيږي او بيا دوي راځي نو ډوډئ به څهٔ وخت خوري، داسې وي چې سحر مړے اوشي، نو دَ سحر چائے پرې هم کله وده شي نو جنازه خو دوه بجې شي نو دَ دوَو بجو پورې بيا ډوډئ نهٔ خوري او بيا چې دوه بجې جنازه کيږي او بيا دَ هغي

دفن کیږي او بیا راځي او حُجرې له ځي نو ډوډۍ به څهٔ وخت خوري؟ بغیر دَ روژې نه پرې خلقو روژه نیولې وي، نو دا یَو فضول رسم دے.[1]

او کهٔ دا څوک لازمي کنړي چې دَ غم پهٔ وخت کښې به ډوډۍ نهٔ خورې نو دا هم بدعت دے، کم از کم دَ یَو ورځ او دَ یَو شپې انتظام ورله پکار دے، چې کاونډیان ورکره دَ دغې ورځې او دَ دغې شپې ډوډۍ راوړي، دَ دې اولنۍ ورځې ډیر اهتمام پکار دے، اکثر خلق داسې اوکړي چې دوي پهٔ دې رومبنۍ ورځې دیګونه پخوي نو ولې ئې ورله مونږ تیاره کړو، او دا دیګونه ځکه پخوي؛ وائي: چې میلمانهٔ راشي نو بیا به څهٔ خوري؟ پکار دا دے: چې هغهٔ دَ مړي کور والا مونږ سنت طریقې له تیار کړو، چې دَ مړي وارث پهٔ سنت طریقې عمل اوکړي نو دا مونږ دَ هغهٔ سره پهٔ سنت طریقه کښې امداد اوکړو، نو دَ خپل کور نه ډوډۍ ورړل، او دَ اولې ورځې ډیر اهتمام کول پکار دي.

**رواجي ډوډۍ**

بعضې داسې وي چې دا یَو رواجي ډوډۍ جوړه شي، نو هغهٔ ئې پهٔ رومبنۍ ورځ هم اونهٔ لیږي، پهٔ دویمه او پهٔ دریمه ورځ ئې هم اونهٔ لیږي، بیا چې غم ختم شي نو بیا ورته وائي: تاسو به نن زما میلمانهٔ یئ، میاشت پس ورته بل وائي: تاسو به زما میلمانهٔ یئ هلکه! دا پهٔ کومه خوشحالۍ کښې کوئ؟ چې کلهٔ مونږ هغهٔ صحیح طریقې پریږدو نو بیا به مونږ خود پهٔ رسم او رواج کښې دننه کیږو، ډوډۍ پهٔ دغه وخت کښې پکار وه، چې هغهٔ پرې دَ یَو بدعت عمل نه بچ شوے وے.

**دَ شامي عبارت**

وَيُسْتَحَبُّ لِجِيرَانِ أَهْلِ الْمَيِّتِ وَالْأَقْرِبَاءِ الْأَبَاعِدِ تَهْيِئَةُ طَعَامٍ لَهُمْ يُشْبِعُهُمْ يَوْمَهُمْ وَلَيْلَتَهُمْ، لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «اصْنَعُوا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَقَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ».[2]

"مستحبه ده دَ مړي دَ کاونډیانو دپاره او دَ هغهٔ خپلوانو دپاره چې هغهٔ لرې اوسیږي (دلته نهٔ دي خو رشته داران ئې دي) چې دَ دې مړي دَ کور والا دپاره دَ ډوډۍ انتظام اوکړي کم از کم چې یَو ورځ او یَو شپه خو دوي ماړهٔ کړي؛ ځکه چې نبي ﷺ وئیلي دي: چې دَ جعفر دَ کور والا له خوراک تیار کړئ..."

---

(1) انظر: "المدخل" لابن الحاج رحمه الله.

(2) انظر: "رد المحتار على الدر المختار" لابن العابدين الشامي: (240/2).

او بیا ئې دَ دې حدیث تحسین نقل کړے دے: "حَسَّنَهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ الْحَاكِمُ وَلأَنَّهُ بِرٌّ وَمَعْرُوفٌ، وَيُلِحُّ عَلَيْهِمْ فِي الأَكْلِ لأَنَّ الْحُزْنَ يَمْنَعُهُمْ مِنْ ذَلِكَ فَيَضْعُفُونَ".[1]

"دې حدیث ته امام ترمذي حسن وئیلے دے او حاکم دې ته صحیح وئیلے دے، (او دَ دې وجه هم ذکر کوي) وائي: ځکه دا دَ هغوي سره احسان دے او دا دَ هغوي سره نیکي ده، او ورے به ورباندې زور کوي (چې شابه راشه ډوډۍ اوخره؛ ځکه دَ مړي وارثان به وائي: زمونږ زړه ته نۀ کیږي خو تۀ به پرې زور کوې)؛ ځکه چې خفګان به دوي منع کوي دَ خوراک نه، او چې دوي ډوډۍ اونۀ خوري نور به هم کمزوري شي"؛ ځکه چې غم خو هسې هم انسان کمزورے کوي، او چې خوراک اونۀ کړي نو بیا به نور هم زیات کمزوري شي نو پۀ زوره به ئې ډوډۍ ته کینښنوې چې راشه! ډوډۍ اوخره.

زمونږ پۀ دې معاشره کښې کار اُلټه وي پۀ ځائے دَ دې چې مونږ ئې دَ مړي کور والا ته راولیږو نو دَ رالیږلو پۀ ځائے مونږ ئې ترې نه خورو، حالانکه دا ما تاسو ته واضحه کړه دَ احادیثو نه، دَ محدثینو دَ کتابونو نه، دارنګې دَ فقهاؤ دَ کتابونو نه چې دَ مړي کور والا دپاره به ډوډۍ رالیږې، دا مستحب طریقه ده.

**دَ ابن الحاج قول**

پۀ "المدخل" کښې ابن الحاج لیکلي دي: "وَيُسْتَحَبُّ تَهْيِئَةُ طَعَامٍ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ مَا لَمْ يَكُنْ الِاجْتِمَاعُ لِلنِّيَاحَةِ وَشِبْهِهَا".[2]

"مستحب دي چې دَ مړي کور والا دپاره ډوډۍ تیاره کړے شي کلۀ چې پکښې وِیر نۀ وي (پۀ وِیر کرو ښځو باندې به ډوډۍ نۀ خورې) او دَ هغې پۀ شان نور مشابه خلق نۀ وي".

چې دَ ګناه والا خلق نۀ وي نو دَ مړي کور له ډوډۍ رالیږه او خوروه ئې ورباندې، کۀ دَ لرې نه میلمه راغلے وي نو هغۀ دې هم اوخري څۀ مسئله پکښې نشته، خو کاوندیانو له دا پکار دي چې دَ مړي کور والا باندې ډوډۍ اوخروي دا بالکل دَ احادیثونه او دَ محدثینو دَ کلام نه او دَ فقهاؤ دَ کلام نه دا خبره ثابت شوه چې تۀ به ئې ورکره لیږې، ها خلاف ثابت دے زمونږ معاشرې لره؛ ځکه

(1) انظر: "الرد المحتار على الدر المختار" لابن العابدين الشامي: (240/2).

(2) انظر: "المدخل" لابن الحاج: (275/3).

چې مونږ وايو: دَ مړي دَ کور نه به ئې مونږه خورو، اوس دا شے په شريعت کښې شته او کهٔ نا؟ نو علماؤ ليکلي دي: چې دا شے مکروه تحريمي دے، نبي ﷺ او صحابه کرامو ﷺ دَ دې نه منع کړې ده، زمونږ فقهاؤ هم دَ دې نه منع کړې ده.

## دَ ابن ماجه باب قائمول

ابن ماجه باب قائموي، او وائي: "بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الاِجْتِمَاعِ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ وَصَنْعَةِ الطَّعَامِ".

"باب دے په بيان دَ دې کښې چې کومه نهي او منع راغلې ده دَ مړي په کور کښې دَ راجمع کيدو نه او منع راغلې ده دَ دې نه چې دَ مړي کور والا خلقو له ډوډۍ تيارَوي".

نو په دې باندې حديث واوره: عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ، قَالَ: «كُنَّا نَرَى الاِجْتِمَاعَ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ وَصَنْعَةَ الطَّعَامِ مِنَ النِّيَاحَةِ».[1]

"دَ جرير بن عبد الله البجلي نه روايت دے هغهٔ وائي: مونږ صحابه کرام ﷺ وو چې دَ مړي کور والا ته راجمع کيدل او دَ مړي کور والا نورو خلقو له ډوډۍ ورکول به مو دَ نياحة او وير نه ګڼرله".

مطلب دا: لکه څنګه چې وير حرام او ناروا دے نو دغه شان به مونږ دَ مړي کور ته راجمع کيدل او هلته کښې دَ مړي دَ کور نه خوراک کول حرام ګڼړل.

## دَ علامه ابن امير الحاج رحمه الله قول

دَ فقه مالکي دَ امام مالک دَ مذهب عالم ابن امير الحاج المتوَفَّى ۷۳۷ هجري ليکلي دي: "وَأَمَّا إِصْلَاحُ أَهْلِ الْمَيِّتِ طَعَامًا وَجَمْعُ النَّاسِ عَلَيْهِ فَلَمْ يُنْقَلْ فِيهِ شَيْءٌ، وَهُوَ بِدْعَةٌ غَيْرُ مُسْتَحَبٌّ".

"وائي: دَ مړي دَ کور والا چې خلقو له ډوډۍ تيارَوي، او خلق ورته راجمع کيږي نو په دې باره کښې هيڅ شے هم نهٔ دے نقل شوے او دا بدعت دے، مستحب نهٔ دے".

بعضې خلق وائي: دا مستحب دے، مستحب نهٔ دي، بلکه "غَيْرُ مُسْتَحَبٌّ" ئې وئيلي دي، مستحب نهٔ دي، بلکه دا بدعت دے.

بيا وائي: "وَقَالَ أَزْهَرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَنْ صَنَعَ طَعَامًا لِرِيَاءٍ وَسُمْعَةٍ لَمْ يَسْتَجِبْ اللهُ لِمَنْ دَعَا لَهُ، وَلَمْ يُخْلِفْ اللهُ عَلَيْهِ نَفَقَةَ مَا أَنْفَقَ".

"ازهر بن عبد الله وائي: څوک چې ډوډۍ دَ دې دپاره تيارَوي چې خلقو له ځان اوښائي، دَ

---

(1) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الاِجْتِمَاعِ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ وَصَنْعَةِ الطَّعَامِ، برقم: (1612).

رياكارئ دپاره نو څوک چې دَ دهٔ ډوډئ اوخوري او دعاء ورته اوکړي نو الله تعالى ئې دعاء نهٔ قبلوي (او کهٔ چرته دے وائي: چې ما خو دَ الله پهٔ نوم خيرات کړے دے، او ما له به الله تعالى دَ دې بدله راکوي او کړے ئې دَ رياء دپاره دے) نو الله به دَ دې پهٔ ځائے دهٔ له نور مال نهٔ ورکوي؛ ځکه دا خيرات دَ رياء کارئ دپاره دے، دَ الله تعالى دَ رضاء دپاره نهٔ دے، الله تعالى دَ رضاء دپاره چې مال اولګولے شي نو الله بيا دَ دې مال بدله کښې نور مال ورکوي، او کهٔ دَ الله تعالى دَ رضاء دپاره نهٔ وي او دَ رياء کارئ دپاره وي نو بيا الله تعالى نور مال نهٔ ورکوي.

بيا دے وائي: "وَإِذَا كَانَ هَذَا فِي وَلِيمَةِ الْعُرْسِ وَالْخِتَانِ".

(کلهٔ چې دَ رياکارئ دا مسئله ده چې سړے رياء کاري کوي نو دَ دهٔ باره کښې الله تعالى دَ چا دعاګانې نهٔ قبلوي، دغه مال ترې نهٔ قبلوي، دَ هغې بدله کښې الله نور نهٔ ورکوي، دا مسئله هغهٔ دَ وادهٔ او دَ سنت باره کښې کړې وه) نو دے وائي: "هر کلهٔ چې دا دَ وادهٔ او سنت دعوت باره کښې مسئله وه".

"فَمَا بَالُكَ بِمَا اعْتَادَهُ بَعْضُهُمْ فِي هَذَا الزَّمَانِ مِنْ أَنَّ أَهْلَ الْمَيِّتِ يَعْمَلُونَ الطَّعَامَ ثَلَاثَ لَيَالٍ وَيَجْمَعُونَ النَّاسَ عَلَيْهِ".

"نو ستا څهٔ ګمان دے دَ هغې چا پهٔ باره کښې چې پهٔ دې زمانه کښې خلقو يَو عادت جوړ کړے دے، هغهٔ دا: چې دَ مړي کور والا پخپل کور کښې ډوډئ تيارَوي او خلق درې ورځې پخپل کور کښې ميلمانهٔ کوي (او خلقو ته وائي: دا درې ورځې به مونږ تاسو باندې ډوډئ خورَوو، نو دا خو دَ وادهٔ او سنت باره کښې دا خبره وه اوس چې خلق پهٔ غمونو کښې دغه شان کوي چې خلقو له دعوتونه ورکوي)".

"عَكْسَ مَا حُكِيَ عَنِ السَّلَفِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فَلْيَحْذَرْ مِنْ فِعْلِ ذَلِكَ فَإِنَّهُ بِدْعَةٌ مَكْرُوهَةٌ".[1]

"دا اُلټه کار دے دَ هغې نه کوم چې دَ سلفو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه نقل شوي دي، نو پکار ده چې دا کار څوک کوي هغهٔ دې اوېرېږي، هغهٔ دې دا کار نهٔ کوي؛ ځکه دا مکروه بدعت دے".

دا مکروه ورته ځکه وائي؛ چې بعضې خلق وائي: بدعت کلهٔ کلهٔ حسنه هم وي؛ نو دا حسنه نهٔ دے بلکه دا مکروه بدعت دے.

(1) انظر: "المدخل" لابن الحاج: (275/3).

"راه سنت" کښې مولانا سرفراز خان صفدر صاحب ډيرې حوالې نقل کړي دي، يَو حواله هغهٔ دَ کتاب "فتاوٰى فقهية الكبرٰى" دَ احمد بن محمد بن علي بن حجر الأنصاري نه نقل کوي (دا دَ امام شافعي دَ مسلک عالم دے): دَ هغهٔ نه تپوس شوے دے: چې خلق دَ مړي پهٔ دريمه ورځ ډوډۍ پخوي، دارنګې پهٔ اوومه ورځ ئې پخوي، پهٔ غريبانانو باندې ئې خوري، نو دا څنګه دي؟ نو هغهٔ جواب کښې فرمائي: "جَمِيعُ مَا يُفْعَلُ مِمَّا ذُكِرَ فِي السُّؤَالِ مِنَ الْبِدَعِ الْمَذْمُومَةِ".[1]

"کوم کارونه چې تا پهٔ سؤال کښې ذکر کړل نو دا ټول هغهٔ مذموم (بد او ناکاره) بدعات دي".

**دَعلامه ابن قدامه الحنبلي رحمه الله قول**

دا دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ مذهب عالم دے، وائي: "فَأَمَّا صُنْعُ أَهْلِ الْمَيِّتِ طَعَامًا لِلنَّاسِ، فَمَكْرُوهٌ؛ لِأَنَّ فِيهِ زِيَادَةً عَلَى مُصِيبَتِهِمْ، وَشُغْلاً لَهُمْ إِلَى شُغْلِهِمْ، وَتَشَبُّهًا بِصُنْعِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ".[2]

"دَ مړي کور والا چې خلقو له ډوډۍ تيارَوي دا ډوډۍ مکروه ده (فقهاء چې کلهٔ مکروه تکے ذکر کړي مراد ترې نه مکروه تحريمي وي، چې هغهٔ حرامو ته نزدې وي)؛ ځکه چې پهٔ دې کښې دَ هغوي هغهٔ مصيبت نور هم سيوا کيږي، او نور هغوي مشغوله کيږي سره دَ خپلې مشغولتيا دَ غم نه، او دې کښې مشابهت هم دے دَ دورِ جاهليت خلقو سره".

څنګه مصيبت سيوا کيږي؟ هغهٔ داسې چې يَو خوا ورسره دَ پلار غم دے، بل خوا ورسره دا غم دے چې وريژې به پخې وي او کهٔ نا؟ يَره چې دا به خلقو له پوره شي او کهٔ نا کمې به شي؟ پهٔ دې سوچونو کښې وي نو دَ يَو غم نه دې پرې دوه غمونه جوړ کړل؛ ځکه دې سره دَ هغوي مصيبت نور هم سيوا کيږي، يَو غم کښې مشغوله وي نو پهٔ بل غم کښې هم مشغوله شي. او بل دا دَ دورِ جاهليت خلقو سره مشابهت هم دے، دورِ جاهليت کښې به خلقو دغسې خپلو مړو باندې دعوتونه ورکول، خيراتونه او پروګرامونه کول، مونږ کښې هم هغهٔ طريقه روانه ده، دا اسلامي طريقه نهٔ ده بلکه دا دَ جاهليت طريقه ده.

دَ مسئلې نه ځان خبر کړئ، هسې نه چې ستاسو ذهن کښې دا راشي چې دوي ګني خيرات

---

(1) انظر: "فتاوٰى فقهية الكبرٰى" لأحمد بن محمد بن علي بن حجر الهيتمي السعدي الأنصاري: (7/2).

(2) انظر: "المغني" لابن قدامه: (410/2).

نهٔ مني، نا! بلکه مونږ وايُو: دا درې ورځې دَ غم دي، پهٔ دې کښې دَ مړي وارثانو له د
راوړي، او کلهٔ چې دا درې ورځې تيرې شي نو بيا کهٔ دے خپل مړي پسې خيرات کوي
ممانعت نشته خيرات دې اوکړي، خو بيا هم کهٔ تخصيص دَ ايامو کوي نو دا بدعت دے
جُمعې پهٔ شپه ديکونه پخوي، بعضې خلق داسې کوي: چې اووهٔ جُمعې مسلسل بيا ديګونه
اووهٔ ديګونه پهٔ يَو ځل نهٔ پخوي بلکه دا دَ يَوې يَوې جُمعې پهٔ شپه تقسيموي، نو دا بدعت د

بعضې خلق ورځې شماري نو چې څلويښت (٤٠) ورځې برابر شي بيا وائي: دَ فلا
پلار څلويښتي ده، نو خلقو له دعوتونه ورکوي، چې تاسو به نن راځئ، مونږه دَ څ
څلويښتي کوو، پهٔ څلويښتمه ورځ روټۍ پخوي، مخکښې روستو ئې نهٔ پخوي نو دا هـ
دے. بيا دوي داسې اوکړي چې شپږ مياشتې تيرې شي نو بيا خلقو له دعوت ورکوي، او
کال تير شي نو کليزه ورته وائي، بيا وائي: دا زمونږ دَ والد محترم کليزه ده، تاسو به راځئ، او
خورئ، پهٔ دې طريقه باندې خيرات کول، دا پهٔ شريعت کښې نشته دے.

هان! کهٔ چرته داسې اوشي چې تا سره پيسې راغلې او تهٔ خيرات کوې او هغهٔ څ
ورځ وه ستا ذهن کښې دغه خبره نهٔ وه، نو کهٔ هغهٔ پهٔ څلويښتمه ورځ راغله نو خير
کهٔ تهٔ ئې څلويښتمې ورځې ته حصارَوې دا بدعت دے.

دارنګې ستا ذهن کښې دَ جُمعې شپه نشته او تهٔ خيرات کوې خو هغې سه
اوخوَړو چې دَ جُمعې شپې له پروګرام جوړ شو ګناه پکښې نشته، او کهٔ چرې تهٔ دَ جُمع
تخصيص کوې، ثواب پکښې زيات ګنړې نو دا تخصيص پهٔ شريعت کښې ناروا دے.

### دَ جُمعې ورځ خاص کول

رسول الله ﷺ فرمائي: دَ جُمعې ورځ دَ روژې دپاره مهٔ خاص کوئ، چې نورو ورځو دَ
نهٔ نيسئ او صرف دَ جُمعې پهٔ ورځ باندې روژه نيسئ، او دَ جُمعې شپه دَ مونځ دپاره مهٔ خ
چې پهٔ نورو شپو مونځ نهٔ کوئ او صرف دَ جُمعې پهٔ شپه مونځ کوئ، نو دَ جُمعې شپه دَ عب
خاص کول دا پهٔ شريعت کښې نشته دے.

اَئِمَه اربعه ټول پهٔ دې متفق دي چې درې ورځې دَ مړي وارثان به خلقو له ډوډۍ
بلکه خلق به ئې دوي له راوړي، چونکه مونږ خو احناف يُو نو دَ احنافو څهٔ بعضې حوالې

**علامه طاهر بن عبد الرشيد البخاري رحمه الله ليکلي دي**

"وَلَا يُبَاحُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ عِنْدَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ؛ لِأَنَّ الضِّيَافَةَ يُتَّخَذُ عِنْدَ السُّرُوْرِ".[1]

"جائز نهٔ دي ميلمه کيدل دَ مړي پهٔ کور کښې درې ورځې؛ ځکه دا ضيافة چې دَ مړي کور والا خلق ميلمانهٔ کوي، نو دا ميلمستيا خلق دَ خوشحالو پهٔ موقع کښې کوي، دَ غم پهٔ وخت کښې خلق ميلمستوبونه نهٔ کوي".

**دَ "فتاوىٰ قاضي خان" قول**

"وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ فِي أَيَّامِ الْمُصِيبَةِ لِأَنَّهَا أَيَّامُ تَأَسُّفٍ فَلَا يَلِيْقُ بِهَا مَا يَكُوْنُ لِلسُّرُوْرِ".[2]

"دَ مصيبت پهٔ ورځو کښې خلق ميلمانهٔ کول دا مکروه دي؛ ځکه دا دَ غم ورځې وي دې کښې هغهٔ کار نهٔ وي مناسب کوم چې دَ خوشحالۍ سره مناسب وي، دا دعوتونه خلق پهٔ خوشحالو کښې ورکوي".

**امام ابن همام رحمه الله ليکلي دي**

"وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ مِنَ الطَّعَامِ مِنْ أَهْلِ الْمَيِّتِ لِأَنَّهُ شُرِعَ فِي السُّرُورِ لَا فِي الشُّرُورِ، وَهِيَ بِدْعَةٌ مُسْتَقْبَحَةٌ".[3]

"مکروه دي چې دَ مړي دَ کور والا خلق ميلمانهٔ کوي؛ ځکه چې دا دعوتونه جائز نهٔ دي خو پهٔ خوشحالو کښې جائز دي، پهٔ غمونو کښې جائز نهٔ دي، دا يو قبيح او ناکاره بدعت دے".

**علامه قهستاني ليکي**

"وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ وَكَذَا أَكْلُهَا".[4]

"پهٔ دې ورځو کښې خلق ميلمانهٔ کول هم مکروه دي، او دَ دوي ډوډۍ خوړل هم مکروه دي".

**دَ "فتاوىٰ عالمگيريه" قول**

"وَلَا بَأْسَ بِأَن يُّتَّخَذَ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ طَعَامًا".

"هيڅ ګناه نشته دے، چې دَ مړي دَ کور والا دپاره خلق ډوډۍ ليږي".

---

(1) انظر: "خلاصة الفتاوى": (342/6).

(2) انظر: "فتاوى قاضيخان": (247/3).

(3) انظر: "فتح القدير" لابن همام: (142/2).

(4) انظر: "جامع الرموز" لعلامة قهستاني: (443/3).

دا بنهٔ خبره ده خو چې ته ئې خورې نو وائي: "وَلَا يُبَاحُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ عِنْدَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَكَذَا فِي التَّاتَارْخَانِيَّةِ".[1]

"دَ مړي دَ کور والؤ نه دا درې ورځې دوډۍ خوړل جائز نهٔ دي، دا مسئله فتاوٰی تاتارخانيه هم ليکلې ده".

## دَ "فتاوٰی بزازيه" قول

"فتاوٰی عالمکيري" دَ هندوستان دَ بادشاه عالمګير پهٔ زمانه کښې ليکلے شوې ده، "فتاوٰی عالمکيري" کمال ئې کړے دے، دې سره دوه فتاوې نورې پيوست شوي دي، دا "فتاوٰی عالمکيري" پهٔ مينځ کښې ده، او پهٔ اړخ کښې ئې دوه فتاوې لګيدلې دي: (۱) يو "فتاوٰی بزازيه"، (۲) دويمه: "فتاوٰی قاضي خان"، پهٔ درې جلدو کښې فتاوٰی بزازيه ده، او پهٔ درې جلدو کښې "فتاوٰی قاضي خان" ده، ټول کتاب پهٔ شپږو (٦) جلدو کښې ليکلے شوے دے.

نو "فتاوٰی بزازيه" کښې وائي: وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالثَّالِثِ وَبَعْدَ الْأُسْبُوعِ وَنَقْلُ الطَّعَامِ إِلَى الْقَبْرِ فِي الْمَوَاسِمِ، وَاتِّخَاذُ الدَّعْوَةِ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَجَمْعُ الصُّلَحَاءِ وَالْقُرَّاءِ لِلْخَتْمِ أَوْ لِقِرَاءَةِ سُورَةِ الْأَنْعَامِ أَوْ الْإِخْلَاصِ. وَالْحَاصِلُ أَنَّ اتِّخَاذَ الطَّعَامِ عِنْدَ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ لِأَجْلِ الْأَكْلِ يُكْرَهُ".[2]

"مکروه دي دَ مړي پهٔ کور کښې ميلمستيا کول..."، هغهٔ چې تا ته دوډۍ تيارَوي دا هم مکروه دي، او تا له ئې دا خوړل هم مکروه دي، نهٔ به ئې خورې؛ ځکه دا دوډۍ جائز ده خو دَ دوډۍ دَ خوشحالۍ پهٔ موقع جائز ده، چونکه دلته خو غم شوے دے، خوشحالي نشته دے، دا به نهٔ خورې او نهٔ به هغهٔ تا له دوډۍ تيارَوي، بيا وائي: "مکروه دي دوډۍ تيارول خلقو له پهٔ ړومبنۍ ورځ باندې، پهٔ دريمه ورځ، او پهٔ اوومهٔ ورځ باندې دوډۍ کول هم مکروه دي (پهٔ اخترونو کښې خلقو له دوډۍ ورکول چې دا زمونږ دَ مړي ړومبنے اختر دے دا هم مکروه دي)، مقبرې له پهٔ خاص موسمونو کښې خوراکونه اوړل دا هم مکروه دي، خلق راجمع کول چې ختم کوو او دعوت دَ طعام ورکول دا هم مکروه دي، قاريان راجمع کول دَ قرآن دَ ختم دپاره دا اجتماع دَ صحابو ﷺ نه ثابته نهٔ ده، نيکان خلق او قاريان دَ ختم دپاره راجمع کول يا دَ سورة الأنعام يا دَ سورة الإخلاص

(1) انظر: "فتاوی عالمکيري": (167/1).
(2) انظر: "الرد المحتار على الدر المختار" لابن العابدين الشامي: (240/2).

چې دا اولولئ او بيا پرې ډوډۍ خوري نو دا ناروا دي، حاصل دا رااوتلو: چې دَ دعوت دَ طعام دَ رجې نه قراءة دَ قرآن کول او پۀ هغې بيا خوړاک کول مکروه دي".

نو مطلب دا شو: چې مړي پسې کوم ختم کيږي نو پۀ هغې به خوراک نۀ کوي، او مړي پسې ختم کول دا طريقه چې مونږ کومه رائج ده دا دَ شريعت نه ثابته هم نۀ ده.

**دَ فتاوی شامي قول**

"وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ مِنَ الطَّعَامِ مِنْ أَهْلِ الْمَيِّتِ لِأَنَّهُ شُرِعَ فِي السُّرُورِ لَا فِي الشُّرُورِ، وَهِيَ بِدْعَةٌ مُسْتَقْبَحَةٌ".[1]

"مکروه دي چې دَ مړي دَ کور والا خلق ميلمانۀ کوي؛ ځکه چې دا دعوتونه جائز نۀ دي خو پۀ خوشحالو کښې جائز دي، پۀ غمونو کښې جائز نۀ دي، دا يَو قبيح او ناکاره بدعت دے".

او بيا شامي کښې ئې دغه دَ بزازيه ټول عبارت نقل کړے دے، او دا خبره شامي پۀ دويم ځل: 6/ 656 باندې هم ليکلې ده.

دا دومره کتابونه چې پۀ کهينټو بيانونه پرې کيږي او هغۀ مسئلې نۀ ختميږي او بيا هم مونږ وايُو: چې دا ښۀ شے دے!

**دَ ملا علي قاري رحمه الله قول**

"قَرَّرَهُ أَصْحَابُ مَذْهَبِنَا مِنْ أَنَّهُ يُكْرَهُ اتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ أَوِ الثَّالِثِ، أَوْ بَعْدَ الْأُسْبُوعِ".[2]

"زمونږ دَ مذهب ټولو علماؤ دا خبره ثابته کړې ده چې دَ مړي دَ کور والؤ خلقو له ډوډۍ تيارول دا مکروه دي پۀ اوله ورځ، پۀ دريمه ورځ او پۀ کۀ پۀ اوومه ورځ وي"، نو دا ټول مکروه دي.

**دَ مړي وصيت کول**

بعضې خلق وائي: يره جي! دا خو مونږ نۀ کوو کنه، خو دا کاکا چې وفات کيدو نو دۀ وصيت کړے وو، دۀ دا وئيلي وو: چې ما پسې به پۀ اوله ورځ خيرات کوئ، چې روميښے مانبام مې چرته نسپور نۀ شي، دَ دۀ دې وصيت سره څۀ چل اوکړو؟ دَ دې باره کښې حواله واورئ: کۀ مړے داسې وصيت اوکړي نو هغۀ وصيت به نۀ منې؛ ځکه فتاوی عالمګيري کښې ليکلي دي:

(1) انظر: "الرد المحتار على الدر المختار" لابن العابدين الشامي: (240/2).

(2) انظر: "مرقاة المفاتيح" لملا علي القاري: (3832/9).

**دَ دې باره کښې دَ "فتاوی عالمګيري" فتوی واورئ**

"وَعَنِ الشَّيْخِ الْإِمَامِ أَبِيْ بَكْرِ الْبَلْخِيِّ رَحِمَهُ اللهُ: رَجُلٌ أَوْصٰى بِأَنْ يُّتَّخَذَ الطَّعَامُ بَعْدَ مَوْتِهِ لِلنَّاسِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ قَالَ الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ".[1]

"دَ شيخ امام ابوبکر البلخي ﷺ نه نقل دي، هغهٔ وائي: يَو سړي وصيت اوکړو: چې زما دَ مرګ نه روستو درې ورځې به خامخه ما پسې خوراک پخوئ، او پهٔ خلقو به ئې خورئ نو دا وصيت به نهٔ شي منلے؛ ځکه چې دے وائي: "الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ"، وصيت ئې باطل دے".

نو دا وصيت به نشي منلے، دغه شان "درِ مختار شامي" کښې ئې عبارت هم دا عبارت راوړے دے: "رَجُلٌ أَوْصٰى بِأَنْ يُّتَّخَذَ الطَّعَامُ بَعْدَ مَوْتِهِ لِلنَّاسِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ قَالَ الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ".[2]

"چې يَو سړے دا... وصيت اوکړي نو دا وصيت ئې باطل دے".

بعضې خلق پکښې دا وائي: چې يره جي! دَ مړي پهٔ کور کښې ميلمستيا ناروا ده، چې هغهٔ تا له ميلمستيا کوي، او کهٔ هسې دعوت ئې درکړو او خوراک دې اوکړو نو ګناه نشته، دا دواړه خبرې غلطې دي، دَ مړي دَ کور نه خوراک هم ناروا دے، کهٔ تهٔ پکښې ميلمه کيږې، او کهٔ تهٔ پکښې کوربه کيږې، خوراک ناروا دے.

**دَ امام آلوسي ﷺ قول**

امام آلوسي ﷺ ليکلي دي: "چې استطعام او ضيافت يَو شے دے"، بعضې خلق وائي: يره جي! ضيافت ناروا دے، استطعام خير دے، امام آلوسي پهٔ تفسير دَ سورة الکهف کښې آيت نمبر ۷۷ دَ لاندې ليکلي دي: "لِأَنَّ الْاِسْتِطْعَامَ وَظِيْفَةُ السَّائِلِ وَالضِّيَافَةُ وَظِيْفَةُ الْمَسْئُوْلِ".

"استطعام هغهٔ دے چې يَو تن راشي او پخپله ئې غواړي او تهٔ ورله ورکړې نو دا استطعام دے، او چې يَو سړے راغے او تا ورله ډوډئ ورکړه او هغهٔ دَ دې سوال نهٔ وو کړے نو دا ضيافت شو".

نو چې کوم سړے راشي دَ هغهٔ باره کښې استطعام شو او او دَ مړي وارثان ئې چې خوري نو دا ضيافت شو.

**دَ علماء ديوبند حوالې**

دَ علماء ديوبند يَو څو حوالې واورئ؛ دا ځکه وايم: چې بعضې خلق وائي: يره جي! علماء

---

(1) انظر: "فتاوی عالمګيري": (95/5).

(2) انظر: "الدر المختار" لابن عابدين الشامي: (665/6).

ديوبند ورته جائز وائي او دا پنځ پيريان ديته ناروا وائي.

**مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله ليکلي دي**

"وَاصْطِنَاعُ أَهْلِ الْمَيِّتِ لِأَجْلِ اجْتِمَاعِ النَّاسِ عَلَيْهِ بِدْعَةٌ مَكْرُوْهَةٌ".(1)

"دَ مړي کور والا چې خلقو له ډوډئ تيارَوي چې دوي به راځي او مونږ کره به ډوډئ خوري غم دے، نو سهارنپوري صاحب وائي: دا مکروه بدعت د ے".

**شاه انورشاه کشميري رحمه الله ليکلي دي**

"وَفِي عَامَّةِ كُتُبِنَا: أَنَّ فِي زَمَانِنَا أَكْلُ الطَّعَامِ مِنْ أَهْلِ الْمَيِّتِ فَبِدْعَةٌ".(2)

"زمونږ پهٔ عامو کتابونو کښې دا خبره ده: چې دَ مړي کور والا چا له ډوډئ تيارَوي او خلق ئې خوري دا بدعت دے".

**علامه ظفراحمد عثماني رحمه الله ليکلي دي**

"بَابُ اسْتِحْبَابِ صُنْعِ الطَّعَامِ لِأَهْلِ الْمَيِّتِ وَكَرَاهَتِهِ مِنْهُمْ لِلنَّاسِ".(3)

"باب دے پهٔ بيان دَ دې کښې چې تهٔ به دَ مړي کور والا کره ډوډئ ليږې، خو ستا دپاره دَ هغوي دَ کور نه خوراک کول مکروه دي".

او پهٔ دې باب کښې بيا روايات راوړي، کوم چې ما تاسو ته مخکښې ذکر کړل، او لاندې ورسره دَ فقهاؤ هغهٔ اقوال ذکر کوي.

**قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله ليکلي دي**

دا لوئي عالم دے دَ علماء ديوبند، چا چې تفسير مظهري ليکلے دے، هغهٔ ليکلي دي: *"بعد مردن من رسوم دنياوي مثل دهم وبستم وچهلم، وشماهي، وبرسي هيچ نه کند".*(4)

وائي: "زما دَ مرګ نه بعد دا خلق چې کوم رسمونه کوي، لکه لسمه ورځ باندې پروګرام، پهٔ شلمه ورځ باندې پروګرام، پهٔ څلويښتمه ورځ باندې پروګرام، شپږ مياشتې پس پروګرام، دغه رنګې

(1) انظر: "بذل المجهود" لخليل أحمد السهارنفوري: (189/5).

(2) انظر: "عرف الشذي" لأنور شاه الكشميري: (262/1).

(3) انظر: "إعلاء السنن" لظفر أحمد عثماني: (329/8).

(4) انظر: "ما لا بد منه" لقاضي ثناء الله: (191).

کال پس پروګرام چې خلقو له ډوډۍ ورکوي دا به ما پسې هيڅ شے نۀ کوئ".

دا په دين کښې نشته دے؛ ځکه کۀ دا دين وو نو دومره لوئي عالم به وئيل چې ما پسې به ئې نۀ کوئ، بلکه هغۀ به بيا وئيلي وو: چې ما پسې به ئې خامخه اوکړئ.

**مفتي رشيد احمد لدهيانوي ﷫ ليکلي دي**

*"یہ دعوت مروجہ ناجائز اور بدعت ہے، بچند وجوہ:*

"دا دعوت مروجه ناجائز او بدعت دے، او دَ هغې څو وجې دي:

(۱) *"یہ دعوت حقیقت میں ہنود کی رسم ہے، پس اس میں تشبہ بالہنود ہے"*.

وائي: "دا په حقيقت کښې دَ هندوانو رسم دے، دا دَ مسلمانانو طريقه نۀ ده، نو په دې کښې دَ هندوانو سره مشابهت راځي"؛ نو لهٰذا دا کار به نۀ کوئ چې تاسو په غم کښې په خلقو ډوډۍ خورئ.

(۲) *"شریعت میں غمی کے موقع پر دعوت مشروع نہیں، کتب فقہ میں تصریح ہے کہ "إِنَّ الدَّعْوَةَ فِي السُّرُوْرِ لَا فِي الشُّرُوْرِ"*.

"شريعت کښې دَ غم په موقع دعوت جائز نۀ دے، بلکه غم والا کره به ئې خلق راوړي او دَ فقهې کتابونو هم په دې تصريح کړې ده چې يقينًا دعوت ورکول په موقع دَ خوشحالو کښې وي، نۀ که په موقع دَ غم کښې".

(۳) *"اس دعوت کو لازم سمجھا جاتا ہے اور "التزام ما لا يلتزم" بدعت ہے"*.

"دا دعوت خلق لازمي ګڼړي (په دې باندې په ځان قرضونه راوړي خو پروګرام خامخه کوي)، او کوم شے چې لازمي نۀ وي او تۀ ئې په ځان لازمي ګڼړي نو دا بدعت دے".

(٤) *"اس دعوت پر جو رقم صرف ہوتی ہے وہ اکثر نابالغ اور غائبین ورثاء کی ہوتی ہے، جس کا استعمال بغیر انکی اجازت کے حرام ہے، اور یتیم بچوں کی اجازت معتبر نہیں ہے"*.

"په دې دعوت کښې چې کومې پيسې خرچ کيږي نو دا دَ دغه مړي دَ ورثاؤ دَ مال نه خرچ کيږي، نو په هغې کښې نابالغه او غائبين وارثان هم وي چې دَ هغوي دَ مال نه دا خلق خيرات کوي، حالانکه دَ مړي چې کوم نابالغه وارث دے، دَ هغۀ اجازت معتبر نۀ دے". نو دا خلق دَ يتيم مال خوري، الله تعالى فرمائي: ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾.[1]

(1) [سورة النساء: 115].

"چې څوک دَ يتيم مال خوري په ظلم سره، په ناروا طريقو ئې خوري نو يقينًا دوي خيټو کښې اُور اچوي، دَ قيامت په ورځ به اُور ته دننه کيږي".

(۵) "اس دعوت سے مقصود ایصال ثواب نہیں ہوتا بلکہ ریاء ونمود مطلوب ہوتی ہے".

"په دې دعوتونو کښې مقصود ايصال ثواب نهٔ وي بلکه اکثر په دې کښې رياء کاري مقصود وي".

نو دَ ثواب حاصلول مقصد ئې نهٔ وي بيا ئې دَ هغې دپاره ډيرې وجې ليکلي چې ثواب ئې ولې مقصد نهٔ وي؛ نو فرمائي: چې دا ځکه کهٔ ته ورته اووائې: جومات کښې ئې اولګوه، جومات کښې ئې نهٔ لګوي، کهٔ ته ورته وائې: چې مدرسه کښې ئې اولګوه نو نهٔ ئې لګوي، کهٔ ته ورته وائې: يَو عالم له پرې کتابونه واخله نو نهٔ ئې اخلي، غريب له ئې دغه شان نقدې ورکړه، چې ځان له پرې څهٔ شے واخلي نو نهٔ ئې ورکوي، دوي به خامخه دغه کار کوي، نو دَ دهٔ مقصد خو ايصالِ ثواب نهٔ دے، دے خو خلقو له ځان ښائي، نو چې ځان ښائي دَ هغې ثواب به دَ کوم ځائے نه شي؟ بيا ئې اوږد وضاحت کړے دے، چونکه وخت مختصر دے، پوره وضاحت مې اونهٔ کړے شو، خو دا خبره تاسو ذهن کښې کيښنوئ چې دَ مړي کور والا کره به تاسو ډوډئ ليږئ، او په دې سنت به مضبوط عمل کوو، چې کلهٔ غم اوشو په رومبنئ ورځ به کوشش کوئ چې مړي کور ته ډوډئ اوليږئ، دويمې او دريمې ورځې ته ئې مهٔ پريږدئ، او بل دا چې په چا باندې غم راشي نو دا هغهٔ زمانه نهٔ ده، اوس هر ځائے هوټل شته، او نږدې نږدې علاقې دي، تلے راتلے هم شي، دا پروګرامونه په غمونو کښې پکار نهٔ دي، چې خلقو باندې ډوډئ خورئ، کهٔ يَو سړے اوږدے لار رو لار ر دې شي، خفه کيږي نو خفه دې شي، خو چې دَ نبي ﷺ دَ سنتو خلاف اونشي.

الله رب العزة دې دَ صحيح عمل کولو توفيق رانصيب کړي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بسم الله الرحمن الرحيم

أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ * حَتَّىٰ زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ * كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ۝

(سورة التكاثر: 1-3)

# موضوع

# زيارة القبور

**بتاريخ: 2021-06-25**

**مقام جلسئ**

**خطيب**

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله**

# زيارة القبور

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ * حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ * كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ * ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ، فَزُوْرُوْهَا؛ فَإِنَّهَا تُزَهِّدُ فِي الدُّنْيَا، وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ».(2)

قابلِ قدر، معزّز علماء كرام او زما عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړوا شريعت دَ هر يَو كار دَ يَو مقصد دپاره حكم كړے دے، چې هغه حكم كښې خپل مقصد وي نو دَ دغې حكم دَ تعميل ثواب به وي، او كهٔ هغهٔ مقصد پكښې نهٔ وي نو پهٔ هغې كښې بيا ثواب نهٔ وي؛ ځكه حكم دَ خپل مقصد نه خلاف شو، دَ شريعت ډير احكامات دي او پهٔ هر كار كښې ځانله ځانله حكمت وي، بعضې اشياء داسې وي چې اول جائز وي، روستو بيا ناجائز شي، او بعضې داسې وي چې اول ناجائز وي او روستو بيا جائز شوي وي، نو دا اول قسم چې دے چې اول جائز وي او روستو بيا ناجائز شوي وي نو دَ دې حكم تدريجًا راغلے وي، دا دَ دې دپاره چې خلقو ته دَ دې پرهېخودل آسان شي، او چې كله دا دويم قسم وي چې يَو شے اول ناجائز وي او بيا روستو جائز شوے وي نو دَ هغې جدا حكمت وي، كله پهٔ هغې كښې دا حكمت وي: چې اول خلق دَ هغې پهٔ مقام نهٔ پوهيږي، غلط مقصد دپاره ئې استعمالوي، نو الله دَ هغې نه منع

(1) [سورة التكاثر: 1-4].

(2) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، باب ما جاء في زيارة القبور، برقم: (1571).

اوکړي، کله چې پوهه شي نو بیا ورته دَ جواز اجازت ورکړي:

**مثال**

لکه مثال پهٔ طور شراب دي، ابتداءً جائز وو، پهٔ مزه مزه دَ شرابو حرمت راغلے دے، دغه شان دا پهٔ کورونو کښې چې مونږ کوم خرونه ساتو، خرې یا خرونه چې مونږ پرې بارونه راوړو، ابتداء کښې دَ دې خوراک جائز وو، دَ دې غوښه جائز وه، روستو بیا دَ دې دَ غوښې حرمت نازل شوے دے، صحابه کرامو ﷺ خرهٔ حلال کړي وو او پخول ئې؛ ځکه حرام خو لا نهٔ وو، چې کله اعلان اوشو: چې رسول الله ﷺ اعلان کوي چې دَ خرونو غوښې الله حرامې کړي او تاسو دَ دې نه منع شئ، نو صحابه کرام ﷺ پهٔ عمل کښې ایک نمبر خلق وو، پخې غوښې ئې اوغورځولې، کتوئ ئې ترې نه خالي کړې، وائي: چې حرامې شوي دي نو بیا پرې مونږ څهٔ کوو؟

**دَ شرابو حرمت**

شراب چې کلهٔ حرام شول نو خلقو سره پهٔ متکو متکو او چاټو چاټو شراب پراتهٔ وو، ځکه اغستل به ئې خرڅول به ئې، استعمالول به ئې، څښکل به ئې؛ ځکه اول کښې جائز وو، چې دَ شرابو دَ حرمت حکم راغلے نو هغه چاټئ او متکئ ئې پهٔ نالو کښې واړولې، دغه شان ئې توي کړل، دا نهٔ وائي: چې دا شتهٔ به خرڅ کړو، یا به ئې اوڅکو، نا! بلکه دَ هغې نه ئې توبه اوویسته، او هغه ټول ئې توي کړل، دا اشیاء پهٔ ابتداء کښې حلال وو بیا روستو حرام شول، داسې نور هم ډیر څیزونه دي.

**متعه کول**

پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې متعه جائز وه، دَ یوې زنانه سره دَ یوې شپې دپاره نکاح کول، یوې هفتې دپاره نکاح کول، یوې میاشتې دپاره نکاح کول، کال دپاره نکاح کول داسې دَ محدود وخت دپاره، مهر به دې ورکړو، نو داسې نکاح جائز وه چې متعه به ئې ورته وئیله، خو پهٔ آخر کښې دا شے منسوخ شو. داسې ډیر مسائل دي.

دارنګې پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې بعضې اشیاء حرام وو خو روستو بیا جائز شوي دي، لکه قبرونو ته تلل، پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې دا ناروا او حرام وو، اعلان اوشو چې مقبرو ته به نهٔ ځئ،

بالکل تلل بند، خوک به هم مقبرو ته نهٔ تلل، زمانه تیریده تیریده، چې څهٔ وخت تیر شو، بیا اعلان اوشو چې کهٔ اوس مقبرو ته ځئ نو لا رشئ؛ ځکه اوس تلل جائز شو، نو دَ عبرت دپاره تلے شئ.

**دَ زیارة القبور دَ منع کیدو او دَ جائز کیدو وجه**

دا زیارة القبور منع شوے ولے وو؟ او دا جائز ولې شو؟ اول اول کښې خلقو کښې دَ شرک ماده ډیره وه، کاڼړي ته به ئې هم سجده کوله او بوټي ته به ئې هم سجده کوله، مړي ته به ئې هم سجده کوله، ژوندي ته به ئې هم سجده کوله، نو قبرونو ته به خلقو سجدې کولې، دَ قبرونو نه به ئې حاجتونه غوښتل، نو دَ الله پیغمبر ﷺ مطلقًا حکم اوکړو: چې مقبرو ته به نهٔ ځئ؛ ولې؟ چې دَ دې شرک نه خلق منع شي، صحیح نیت باندې تلونکي او دَ شرک پهٔ نیت باندې تلونکي دَ هغې تمیز او جدائي دَ یَو بل نه نهٔ کیده نو ټول ئې منع کړل، کهٔ څوک دَ عبرت دپاره ځي نو هغوي به هم نهٔ ځي او کهٔ څوک دَ شرک دپاره ځي نو هغه به خو خود نهٔ ځي.

چې څهٔ وخت تیر شو، دَ صحابه کرامو ﷡ پهٔ زړونو کښې دا خبره کیښناسته چې قبرونو والا زمونږ دَ دعاګانو محتاج دي، او دوي مونږ ته نفع یا نقصان نشي رارسولے، سجده دَ الله حق دے، قبرونو ته سجده حرامه او ناروا ده، چې پهٔ دې پوهه شول نو بیا جواز راغلے، اوس حکمت دَ جواز مقبرې ته دَ تللو څهٔ وو؟

**مقبرې ته دَ تللو حکمت**

نو نبي ﷺ مقبرې ته دَ تللو جواز سره دَ حکمت دَ دې نه بیان کړو، رسول الله اوفرمائیل: "کهٔ اوس ځئ نو تلے شئ (خو دَ څهٔ دپاره به ځئ؟)؛ نو دَ دې دپاره به ځئ چې ځانله مرګ مخې ته کړئ"، او دَ دې دپاره به ځئ چې ځانله آخرت رامخې ته کړئ، او مړو ته هم دعاء دَ مغفرت اوکړئ، دا حکمت شو دَ مقبرې دَ تلو، مقبرې ته دَ دې دپاره لاړشه چې تا ته مرګ یاد شي، دَ دې دپاره لاړشه چې دَ مړي دپاره دعاء اوغواړې، دَ هغهٔ نه ئې نهٔ غواړې، بلکه دَ هغهٔ دپاره دَ الله تعالی نه دعاء اوغواړې، او دَ دې دپاره لاړشه چې تا ته آخرت رایاد شي او دَ عبادت شوق پهٔ تا کښې پیدا شي، چې مرګ راروان دے او ما خو هیڅ تیارے نهٔ دے کړے. نو دا تلل جائز دي.

**اختلافي مسئله**

دا یَو اختلافي مسئله ده: چې دا مقبرو ته تلل اول وخت کښې حرام وو بیا روستو جائز

شول نو دَ سړو دپاره يواځې جائز شو؟ کهٔ نا دَ زنانوٶ دپاره هم؟ نو دا مسئله مختلفٌ فيها ده، دَ سړو دپاره اجازت دَ ټولو علماؤ پهٔ اتفاق سره دے، او دَ زنانوٶ پهٔ باره کښې اختلاف دے، راجح کوم يَو دے؟ دَ هغې روستو وضاحت کوم.

## دَ سړو مقبروته تلل

محدثينو پهٔ دې باندې بابونه قائم کړي دي: چې دَ سړو دپاره مقبرې ته تلل دَ عبرت دپاره دا مستحب دي او ثواب دے، اجر پرې ميلاويږي، چې دَ عبرت دپاره مقبرې ته ځي، او ځان له مرګ رایاد کړي.

## دَ امام ابوداود رحمه الله باب قائمول

امام ابو داود رحمه الله باب قائم کړے دے: "بَابٌ فِي زِيارَةِ القُبورِ".

"باب دے پهٔ بيان دَ زيارت دَ قبرونو کښې".

پهٔ هغې کښې حديث راوړي دَ سيدنا ابوهريره رضي الله عنه، ابوهريره رضي الله عنه فرمائي: "چې يَو ځل رسول الله ﷺ دَ مور قبر ته راغلے نو اوونې ژړل، او چې نبي ﷺ اوژړل نو دَ نبي ﷺ دَ ژړا دَ وجې نه هغهٔ خلق هم نبي ﷺ اوژړول چې کوم ګير چاپيره دَ هغهٔ سره وو، ولې چې هغهٔ ئې اوليدو چې ژړل ئې نو دوي هم پهٔ ژړا شول، نبي ﷺ اوفرمائيل: چې دا مې څکه اوژړل چې ما دَ رب نه اجازت اوغوښتو چې يا الله! ما له اجازت راکړه چې زهٔ دَ دې خپلې مور دپاره ستانه بخښنه اوغوارم، وائي: «فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي».[1]

"الله تعالى ماله اجازت رانهٔ کړو".

نو دَ بخښنې غوښتلو اجازت ئې رانهٔ کړو؛ څکه دَ نبي ﷺ مور، پلار دا دَ پيغمبر ﷺ دَ نبوت دَ ميلاويدو نه مخکښې وفات شوي وو، پلار ئې خو دَ پيدائش نه هم مخکښې وفات شوے وو، او مور ئې نبي ﷺ لا وړوکے بچے وو چې مور ئې وفات شوه، نو دَ نبي ﷺ دَ مور او پلار باره کښې علماء توقُّف کوي او دا بهتر قول دے، مونږ څهٔ نهٔ وايُو: چې يا کافر وو يا مسلمانان وو خو بس الله تعالى ته پته ده، خو دَ احاديثو نه دا معلوميږي لکه دغه مخکښې حديث دے: چې نبي ﷺ فرمائي: چې ما الله تعالى ته اووئيل: "چې يا الله! زهٔ دَ دې خپلې مور دپاره بخښنه غوارم، اجازت راکړه! وائي: الله ما

(1) أخرجه أبوداود في كتاب الجنائز، باب في زيارة القبور، برقم: (3234).

له اجازت رانهٔ کړو؛ (ځکه چې هغهٔ دَ اسلام نه مخکښې وفات شوې وه، او چا چې اسلام نهٔ وي قبول کړے نو هغهٔ له بخښنه نشې غوښتے)، نو بیا مې دوباره دَ الله رب العزة نه اجازت اوغوښتلو چې یا الله! دا اجازت خو راکړه کنه: «أَنْ أَزُورَ قَبْرَهَا فَأْذَنْ لِي» چې زهٔ دَ خپلې مور دَ قبر ملاقات له خو کلهٔ کلهٔ ځم کنه"، نو نبي ﷺ فرمائي: «فَأَذِنَ لِي».

"نو الله تعالی ما لره اجازت راکړو".

چې څه خیر دے قبر ته څه، زیارت کوه؛ «فَزُورُوا الْقُبُورَ فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ بِالْمَوْتِ».[1]

"دَ قبرونو زیارت کوئ؛ ځکه دا دَ قبرونو زیارت چې دے نو دا سړي ته مرګ یادوي".

زمونږ خلق زیارت دې کمبت ته وائي، حالانکه زیارت معنٰی ملاقات دے، کمبت ته زیارت نهٔ وائي، زیارت: یَو سړے دَ چا ملاقات ته لاړ شي نو دا دَ دغه سړي زیارت شو چې تهٔ دَ چا خواته تلے ئې او کهٔ مقبرې ته لاړې نو تا دَ قبرونو زیارت اوکړو، دارنګې یَو کلي ته لاړې نو دا دَ دغې کلي زیارت شو، نو دَ قبرونو ملاقات ته ځئ؛ ځکه چې دا انسان له مرګ یادَوي، دَ دې مقصد دپاره به ځې.

زمونږ خلق مقبرې ته څهٔ له ځي؟ وائي: راځه! چې لږ ګپ شپ اولګوو، مقبرې ته دې دپاره ځي وائي: هلته کښې خاموشي وي، مقبرې ته دې دپاره ځي؛ چې بعضې خلق پکښې دَ شرکیاتو چلّې بخوي، مقبرې له ته دَ دې دپاره ځي چې (نعوذ بالله!) پهٔ هغې کښې زناګانې اوکړي، مقبرې له دَ دې دپاره ځي چې دَ مقبرې اُونې پهٔ غلا راکټ کړي، نورو نورو غرضونو دپاره ځي، پهٔ دې مقصد تلل بالکل ناروا او حرام دي، مکروه تحریمي دي، مقبرې ته لاړشه دَ دې دپاره چې تهٔ ځان ته مرګ مخې ته کړې، او بیا "صحیح ابو داود" کښې روایت ذکر کوي دَ ابن بریده ﷺ نه او هغهٔ دَ خپل پلار نه نقل کوي: چې نبي ﷺ فرمائیلي وو: «نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ، فَزُورُوهَا، فَإِنَّ فِي زِيَارَتِهَا تَذْكِرَةً».[2]

"ما تاسو پهٔ ابتداء کښې دَ قبرونو دَ زیارت نه منع کړي وئ، اوس دَ قبرونو زیارت کوئ؛ ځکه پهٔ دې کښې سړې ته مرګ یادیږي، آخرت پکښې یادیږي، دې مقصد له لاړشئ".

معلومه شوه: دَ دې باب نه چې پهٔ اتفاق سره سړو ته اجازت میلاؤ شو.

(1) أخرجه أبوداود في كتاب الجنائز، باب في زيارة القبور، برقم: (3234).

(2) أخرجه أبوداود في كتاب الجنائز، باب في زيارة القبور، برقم: (3235).

**دَ امام ترمذي رحمه الله باب قائمول**

امام ترمذي رحمه الله باب قائم کړے: "بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ".

رخصت دیته وائي: چې یَو شے منع وي او بیا جائز شي، نو معنٰی دا شوه: "باب دے په بیان دَ دې کښې چې راغلي دي په اجازت او په رخصت دَ قبرونو دَ ملاقات کښې".

نو په هغې کښې هم دغه حدیث راوړي: چې نبي ﷺ فرمائیلي دي: «قَدْ كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ، فَقَدْ أُذِنَ لِمُحَمَّدٍ فِي زِيَارَةِ قَبْرِ أُمِّهِ، فَزُورُوهَا فَإِنَّهَا تُذَكِّرُ الآخِرَةَ».(1)

"ما تاسو دَ زیارت دَ قبرونو نه منع کړي وئ، په تحقیق سره اجازت اوکړے شو محمد ﷺ ته دَ هغهٔ دَ مور دَ قبر دَ زیارت دپاره، دَ قبرونو زیارت ته اوس ځئ؛ ځکه دا سړي ته آخرت یادَوي".

بیا امام ترمذي رحمه الله ذکر کړي دي: "حَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ: لاَ يَرَوْنَ بِزِيَارَةِ القُبُورِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ".(2)

"حدیث دِ بریده رضي الله عنه دَ سند په اعتبار سره حسن او صحیح حدیث دے، او عمل کول په دې باندې دَ اهل علمو په نزد ثابت دے، چې قبرونو له تلل دَ عبرت دپاره په هغې کښې هغوي ګناه نهٔ ګنړي، او دا قول دَ ابن مبارک، امام شافعي، امام احمد او اسحاق رحمهم الله دے".

**دَ ابن ماجة رحمه الله باب قائمول**

ابن ماجة رحمه الله باب قائم کړے دے: "بَابُ مَا جَاءَ فِي زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ".

"باب دے په بیان دَ هغه روایاتو کښې چې راغلي دي په باره دَ زیارت دَ قبرونو کښې".

بیا دهٔ هم دغه روایت راوړے دے: چې رسول الله ﷺ وئیلي دي: دَ قبرونو ملاقات ته ځئ! ځکه دَ دې سره مرګ یادیږي.

دارنګې امام ابن ماجة رحمه الله باب قائم کړے دے: "بَابُ مَا جَاءَ فِي زِيَارَةِ قُبُوْرِ الْمُشْرِكِيْنَ".

"چې دَ مشرکینو قبرونو له هم دَ عبرت دپاره تلے شي".

او په دې باب کښې حدیث راوړي: دَ نبي ﷺ دَ خپلې مور دَ قبر دَ زیارت واقعه ئې ذکر کړې ده، چې نبي ﷺ دَ مور قبر له تلے وو، په ژړا شو وائي: ما دَ خپل رب نه اجازت اوغوښتلو

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب ما جاء في الرخصة في زيارة القبور، برقم: (1054).

(2) انظر: "سنن الترمذي"، أبواب الجنائز، باب ما جاء في الرخصة في زيارة القبور: (361/2).

چې زهٔ مور له بخښنه غواړم، اجازت راته دَ بخښنې اونشو، چې بخښنه به نهٔ غواړې، بیا مې اجازت اوغوښتلو چې دَ هغې دَ قبر ملاقات له لاړشم نو دَ دې اجازت راته میلاؤ شو. نو زیارت دَ کافرانو دَ قبرونو هم جائز دے.

نو پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې دَ قبرونو دَ زیارت نه منع وه بیا جواز بیان شوے دے.

**پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې دَ قربانۍ دَ غوښې دَ دریو ورځو نه سیوا ساتلو نه منع**

دغسې پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې دا هم منع وه چې دَ قربانۍ غوښه به دَ دریو ورځو نه سیوا پهٔ کور کښې نهٔ حصاروئ، دَ شریعت پهٔ هر کار کښې حکمت وي، بعضې خلق پهٔ دې حکمتونو خبر نهٔ وي، وائي: پهٔ دریو ورځو کښې به ئې خلاصوئ، او دَ دریو ورځو نه سیوا چا کره پاتې شوه هغه به غورځوئ، سیوا به ئې نهٔ استعمالوئ، نو چې یَو سړي لویه قرباني کړې ده، او کور کښې دوه، درې کسان دي، نو هغه به دا دومره غوښه څنګه خوري؟ پهٔ دې کښې مقصد دَ یَو خبرې وو، هغه دا وو: چې خلقو به قرباني اوکړه، او غوښې به ئې کور ته راوړې... هغهٔ زمانه کښې فریزرې او پریجونه نهٔ وو، نو هغوي به غوښه داسې نرۍ نرۍ کټ کړه ترشي به ئې ترې جوړې کړې، او پهٔ نمر به ئې اوچې کړې، بیا به ئې ډیره وخته پورې خوړې، خوا کښې به ورسره غریبانان وو، هغوي به قرباني نهٔ وه کړې، هغوي له به چا هډو غوښه نهٔ ورکوله، دَ الله نبي ﷺ اعلان اوکړو: چې کومه غوښه درې ورځو کښې خوړے شئ نو صحیح ده، دَ درې ورځو نه سیوا حصارول ګناه ده، نو درې ورځو کښې څوک غوښه خلاصولے شي، نو صحابه کرام ﷺ پوهه شول، چې درې ورځو کښې خو مونږ دومره خوړے شو او نوره رانه خرابیږي، نو زر زر به ئې غریبانانو له ورکړه، نو دَ دې حکمت دپاره دَ قربانۍ غوښه دَ دریو ورځو نه سیوا حصارول منع وو، چې پهٔ مسئلې هغوي خبر شول، او پوهه شول، چې دا قرباني خو دَ غریبانانو سره یَو قسم احسان دے، او بیا هغوي غوښې ورکول شروع کړل نو بیا دا حکم منسوخ شو، اوس حکم دے: "فَامْسِكُوْا مَا بَدَا لَكُمْ".

دَ دریو ورځو نه سیوا حصارول جائز شول، "حصاروئ تاسو دې لره څومره چې تاسو له مناسب ښکاري".

خو داسې نه چې بس قرباني دې اوکړه او غوښه دې توله راوړه، او فلیزر کښې دې کیخوده، او مسلمان بنده درنه ذره لیدلے نشي، او تهٔ وائي: چې غوښه خو ډیره ګرانه ده او تول کال به دَ دې نه لږه لږه راخلم، او خورم به ئې، بے شکه چې ستا خوښه ده کولے ئې شې، خو دا

کار غلط دے؛ ځکه تا دَ غریب سره څهٔ همدردي اونهٔ کړه، تهٔ ئې تول کال خوري، او هغې غریب باندې چا پهٔ اختر کښې هم اونهٔ خوړه، نو بهتره دا ده: چې غوښه درې حصې کړه: یَو حصه غریبانانو له ورکړه، او دوؤ حصو کښې یَو حصه ځان له کیږده، نو تول کال ئې خوره، جائز ده، او یَو حصه یارانو دوستانو باندې اوخورَوه، او کهٔ نا! یَو سړے بال بچ داره دے، او هغه وائي: کهٔ دا دریمه حصه زهٔ ورکړم نو دا نوره خو زما یَو وخت هم نهٔ کیږي، نو خیر دے لړه غوښه دې ورکړي، لازمه نهٔ ده چې خامخه دریمه حصه دې ورکړي. بهر حال پهٔ ابتداء کښې دَ دریو ورځو نه سیوا دَ قربانئ غوښه حصارول هم منع وو، بیا روستو جائز شو.

**دَ شرابو دَ لوښو نه منع**

او پهٔ ابتداء دَ اسلام کښې دَ شرابو دپاره چې کوم لوښي استعمالیدل پهٔ دې لوښو کښې سپینې صفا اوبهٔ څښکل هم منع وو، مطلب دا دے: چې کلهٔ شراب حرام شول نو دَ شرابو لوښي وو چې هغې کښې به شراب تیاریدل، پهٔ دې لوښو کښې اوبهٔ څښکل هم حرام شول، چې اوبهٔ به پکښې هم نهٔ څښکئ، دا به نهٔ استعمالوئ، دَ دې وجې نه چې دَ خلقو دَ شرابو نه مکمل نفرت پیدا شي، نو چې کله دَ خلقو ذهن دَ شرابو نه مکمل نفرت پیدا شو نو بیا ورته اووئیلے شو: چې شراب خو هسې هم تاسو نهٔ څښکئ، نو دا لوښي خو څهٔ پلیت نهٔ دي، ځان له ئې استعمالوئ، کهٔ اوبهٔ پکښې څښکئ، او کهٔ نور خوراکونه پکښې کوئ نو استعمالول ئې جائز شول، اول کښې دا لوښي استعمالول بند وو، روستو بیا دَ دې دَ جواز حکم میلاؤ شو.

نو مسلمانانو رونړو! خبره دا ده: چې دَ سړو دپاره مقبرو ته تلل پهٔ اتفاق دَ علماؤ مستحب دي، خو صرف دَ دې دپاره چې ځان له مرګ مخې له کړي، او مړي دپاره دعاء اوغواړي او آخرت ځان له رایاد کړي.

**اوس اختلافي مسئله**

اوس دویمه مسئله، چې هغه اختلافي مسئله ده، هغه دا ده: چې زنانه مقبرې ته تلے شي او کهٔ نا؟ دَ سړو باره کښې دَ هیچا اختلاف نشته، دَ زنانؤ پهٔ باره کښې دوه قوله دي: (۱) یَو قول دَ جواز دے، چې تلل جائز دي، او (۲) دویم قول دَ عدم جواز دے، چې تلل ناجائز دي، امام ترمذي ﷫ باب قائم کړے دے: "بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ لِلنِّسَاءِ".

"باب دے پۀ بیان دَ هغې روایاتو کښې چې راغلي دي پۀ مکروه والي دَ ملاقات دَ قبرونو کښې دَ زنانۀ دپاره".

نو بیا هغۀ پۀ دې باندې کښې حدیث راوړي: دَ ابوهریره ﷺ نه چې هغۀ وائي: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُورِ».[1]

"دَ الله رسول ﷺ لعنت وئیلے دے پۀ هغې زنانۀ باندې چې دَ قبرونو او زیارتونو له ډیرې ځي".

بیا امام ترمذي ﷫ وائي: "وَفِي البَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ".

"پۀ دې باب کښې نور روایات دَ ابن عباس ﷺ او د حسان بن ثابت نه هم نقل دي".

او بیا امام ترمذي ﷫ دَ دې مسئلې تفصیل کوي، وائي: بعضې علماء دَ دې حدیث پۀ بنیاد چې مخکښې اجازت میلاؤ شو، نو دا حدیث هم پۀ دغې باندې حمل کوي، چې پۀ ابتداء کښې څنګه دَ سړو دپاره تلل منع وو، نو دَ ښځو دپاره هم منع وو، ښځو پۀ باره کښې وو: چې کومه ښځه مقبرې ته کله ځي پۀ هغې به لعنت وي، خو وائي: چې کله سړو ته اجازت میلاؤ شو، نو پۀ دې اجازت کښې زنانه هم داخلې شوې، زنانه هم اوس تلے شي، یَو قول دَ اهل علمو دا شو: چې پۀ ابتداء کښې خو دَ ښځو او سړو ټولو دپاره تلل منع وو، چې سړو دپاره تلل جائز شول نو دغه حدیث دَ ښځو دَ جواز دپاره هم شو.

**دویم قول**

(۲) دویم قول دا دے: چې دَ قبرونو ملاقات دپاره تلل دَ نارینۀ او زنانۀ ټولو دپاره اول ناجائز وو، بیا صرف دَ سړو دپاره جواز راغلے چې سړي زیارت دَ قبرونو کولے شي او دَ ښځو دپاره تلل هم هغۀ شان ناجائز پاتې شو، چې زنانه به دَ قبرونو زیارت له نۀ ځي؛ او دَ هغې وجه دا ده: چې زنانۀ کښې دوه خبرې دي، چې هغۀ دَ سړو نه پۀ هغې کښې بدلې دي؛ نو لهٰذا دوي دپاره څکه اجازت نشته، هغۀ دوه خبرې دا دي:

(۱) "لِقِلَّةِ صَبْرِهِنَّ".

"یَو دَ دوي صبر کم دے".

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب ما جاء في كراهية زيارة القبور للنساء، برقم: (1056).

هلته چې لاړې شي، نو قبر ته په ژړا شي، او په قبر باندې ځان راغورځوي، او چغې به اوباسي، وائي: تا خو زمونږ نه ستركې پټې كړې او كور ته نه راځې، دوي له خو بيا خپلې ساندې هم ورځې كنه، نو يو په دوي كښې صبر ډير كم دے.

(۲) دويم: "وَكَثْرَةِ جَزَعِهِنَّ".(1)

"هلته ژړاګانې او فريادونه هم ډير زيات كوي"، نو په دې وجه دَ زنانو مقبرې له تلل منع او مكروه دي.

**دَ زنانو مقبرې ته نه تلل**

امام ابن ماجه ؒ په دې باندې باب قائموي: ، "باب دے په بيان دَ دې كښې چې راغلي دي په منع دَ ښځو دَ زيارت نه او دَ قبرونو دَ ملاقات نه"، چې ښځې له منع راغلې ده او هم دغه حديث راوړې چې: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُورِ».

"دَ الله رسول ﷺ لعنت وئيلے دے په هغې زنانو باندې چې دَ قبرونو او زيارتونو له ډيرې ځي".

**دَ علامه قرطبي قول**

علامه قرطبي ؒ په تفسير "قرطبي" كښې په تفسير دَ "سورة التكاثر" كښې ليكلي دي: جواز دَ زيارت دَ قبرونو خو دَ سړو دپاره متفقٌ عليه دے، دَ زنانو په باره كښې اختلاف دے، خو دا اختلاف دَ بوډئ كانو ښځو په باره كښې دے، نو دا خبره هم ياد اوساتئ هغه ليكي: "أَمَّا الشَّوَابُّ فَحَرَامٌ عَلَيْهِنَّ الْخُرُوجُ، وَأَمَّا الْقَوَاعِدُ فَمُبَاحٌ لَهُنَّ ذَلِكَ".

"هر چې جينكئ او ځوانې ښځې دي نو هغوي باندې مقبرو ته تلل حرام دي، او هر چې بوډئ كانې دي نو مباح دے دوي دپاره دَ قبرونو زيارت كول".

نو كومه ښځه چې ځان ته بوډئ وائي نو هغې دپاره تلل مباح دي، او هغه ښځې دَ شپيتو (۶۰) او اويا (۷۰) كالو نه اوړيدلې وي، او يوې بلې ته وائي: چې بوډئ شوې، وائي: "ته به بوډئ شوې ئې، زه خو پرونئ جينئ يم"، نو دا شابه ده، دا بيا بوډئ نه ده، نو داسې زنانه چې هغه ځوانه وي هغه به دَ قبرونو زيارت له نه ځي، هغوي دپاره تلل منع دي، هاں! چې كومې ډيرې بوډئ كانې دي چې هغوي باندې ستر او پرده هم نشته، لارو كوڅو كښې بغير دَ چيل او پروني نه

(1) انظر: "سنن الترمذي" في أبواب الجنائز، باب ما جاء في كراهية زيارة القبور للنساء: (363/2).

کرښي نو تفسير قرطبي کښې وائي: "فَمُبَاحٌ لَهُنَّ ذَلِكَ"، "نو هغوي دپاره جائز دي چې لاړې شي"، ځکه په هغوي خو هسې هم پرده نشته، خو اصل خيز پکښې پرده هم ضروري ده.

خو چې په کوم ځائے کښې فتنه وي نو دَ فتنې په ځائے کښې لکه سړي او ښځې که ورد دي، خاص کر دَ اولياؤ په قبرونو کوم خلق راغونديږي، هغې کښې خو سړي او ښځې که ورد وي نو داسې دَ فتنې په ځائے دَ زنانو مکمل ممانعت دے، چې زنانه به بالکل نهٔ ځي: "وَأَمَّا مَوْضِعٌ أَوْ وَقْتٌ يُخْشَى فِيهِ الفِتْنَةُ مِنِ اجْتِمَاعِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ، فَلَا يَحِلُّ وَلَا يجوز".

"هر چې داسې ځائے يا داسې وخت وي چې په هغې کښې يره کيدے شي دَ فتنې دَ يوځائے والي دَ نارينو او زنانو نه (زنانه او نارينه گډوډ دي) نو حلال نهٔ دي او جائز نهٔ دي ملاقات کول دَ قبرونو په داسې موقع کښې".

دا دَ يو عالم په نزد نه بلکه ټول علماء دا خبره کوي: چې دَ فتنې يره وي نو بيا زيارة القبور منع دے، او دے بيا وائي: "فَبَيْنَا الرَّجُلُ يَخْرُجُ لِيَعْتَبِرَ، فَيَقَعُ بَصَرُهُ عَلَى امْرَأَةٍ فَيُفْتَتَنُ، وَبِالعَكْسِ فَيَرْجِعُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ مَأْزُورًا غَيْرَ مَأْجُوْرٍ. وَاللهُ أَعْلَمُ".

"سړے مقبرې له تلے دے دَ دې دپاره چې لږ عبرت واخلم او ځان ته آخرت راياد کړم نو دَ هغهٔ نظر چې په پردئ ښځه باندې پريوځي نو دے فتنه کښې واقع شي نو دے خو دې سره گناه گار شو، څهٔ اجر هم ورته ميلاؤ نشو...".

نو چې لاړ شي عبرت اغستلو دپاره ا دَ دهٔ په ښځو نظر وي او وائي: ما شاء الله! دا به لا دَ چا ښځه وي! دا خو ډيره خائسته ده نو دهٔ خو ډير خائسته عبرت واغستلو، دَ دهٔ خو مرگ ډير ښهٔ رایاد شو! دَ دهٔ مرگ ياد نشو بلکه دَ دهٔ خو پردئ ښځې يادې شوې، هغوي له زيارت دپاره تلو نو دا سړے په فتنه کښې واقع شو او هيڅ اجر ورته ميلاؤ نشو بلکه الټه ورته گناه ميلاو شوه.

او بيا وائي: "وَبِالْعَكْسِ".

"او چې زنانه زيارت ته تلې ده دَ دې دپاره چې زهٔ به عبرت واخلم، دَ هغې په پردي سړي نظر پريوتو نو مرگ ترې هير شو، او دَ سړي په تماشه شوه، چې دا سړے به څوک وي؟ دا خو ماشاء الله ډير خائسته سړے دے! نو هغهٔ زنانه په دې سره فتنه کښې واقع شوه".

"فَيَرْجِعُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ مَأْزُورًا غَيْرَ مَأْجُوْرٍ. وَاللهُ أَعْلَمُ".[1]

"نو هر يو سړے كهٔ تلے دے داسې مقبرې او داسې زيارت له او كهٔ ښځه تلې ده دواړهٔ ګناهونو نه ډک راغلل، ذرّه ثواب ئې اونشو".

زمونږ پهٔ دې معاشره كښې چې خلق زيارت له ځي، نو دَ زيارت نه معنٰی خاص مراد اخلي چې يو قبر به وي او ګمبټ به پرې جوړ وي، وائي: دا دَ دې ځيز دپاره فائده مند دے، او دا فلانكے زيارت دَ دې ځيز دپاره فائده مند دے، ځوک وائي: بيماران ښهٔ كوي او ځوک وائي: اولاد ښهٔ كوي، ځوک مال او دولت وركوي، او دې دربارونو ته خلق روان وي او نمبر پرې نهٔ وي، سړي او ښځې ګډوډ وي، نو داسې زيارت له كهٔ سړي ځي نو هم ګناه ګار دي او دغه شان كهٔ ښځې ځي نو ښځې هم ګناه ګارې دي، ثواب پكښې نشته؛ ځكه زيارت خو ملاقات ته وائي او ملاقات دَ قبر دَ كلي پهٔ مقبره كښې هم كيږي، دَ كلي دَ مقبرې نه عبرت واخله كنه.

**دَ امام نووي رحمه الله قول**

امام نووي رحمه الله وائي: "چې زيارت دَ قبرونو خو دَ سړو دپاره سنت دے، خو: "وَهَلْ تُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ؟".

"آيا دَ ښځو دپاره هم سنت دے كهٔ نا؟".

نو پهٔ دې كښې دوه وجې دي: (۱) يوه وجه دا ده: اكثرو علماؤ قول كړے دے پهٔ كراهت باندې چې ښځې به مقبرې ته نهٔ ځي او بعضو پكښې دَ جواز قول هم كړے دے. خو اوس واورئ: دا دَ جواز او عدمِ جواز خبرې پخوانۍ دي...

**دَ علامه عيني رحمه الله قول**

زمونږ پهٔ دې دور كښې او زمونږ پهٔ دې زمانه كښې تلل څنګه دي؟ نو علامه عيني رحمه الله ليكلي دي: چې دا خو هغهٔ زنانه وې، چې كومې پخوانۍ زمانه كښې وې، او پخواني خلق وو: "وَحَاصِلُ الْكَلَامِ مِنْ هَذَا كُلِّهِ أَنَّ زِيَارَةَ الْقُبُورِ مَكْرُوهَةٌ لِلنِّسَاءِ، بَلْ حَرَامٌ فِي هَذَا الزَّمَانِ، وَلَا سِيَّمَا نِسَاءُ مِصْرَ لِأَنَّ خُرُوْجَهُنَّ عَلَى وَجْهٍ فِيهِ الْفَسَادُ وَالْفِتْنَةُ، وَإِنَّمَا رُخِّصَتِ الزِّيَارَةُ لِتَذَكُّرِ أَمْرِ الْآخِرَةِ وَلِلْاعْتِبَارِ بِمَنْ مَضَى وَلِلتَّزَهُّدِ فِي الدُّنْيَا".[2]

(1) انظر: "تفسير القرطبي" تحت سورة التكاثر: (171/20).
(2) انظر: "عمدة القاري" لبدر الدين العيني: (70/8).

"زمونږ په دې زمانه کښې دَ ښځو دپاره دَ قبرونو زيارت له تلل مکروه دي، بلکه په دې زمانه کښې حرام دي، او خاص کر دَ مصر زنانه (هغهٔ به دَ مصر زنانه ليدلې وې)؛ ځکه چې دَ دوي وتل دا دَ فساد او دَ فتنې نه خالي نهٔ وي، قبرونو له تلل خو دَ دې دپاره وو چې مرګ ځانله مخې له کړه، چې سړے په فتنو کښې واقع کيږي بيا خو بالکل تلل جائز نهٔ دي".

**دَ علامه ابن الحاج ﷺ قول**

وَيَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَمْنَعَهُنَّ مِنَ الْخُرُوجِ إِلَى الْقُبُورِ، وَإِنْ كَانَ لَهُنَّ مَيِّتٌ؛ لأَنَّ السُّنَّةَ قَدْ حَكَمَتْ بِعَدَمِ خُرُوجِهِنَّ «قَالَ ﷺ لِنِسَاءٍ خَرَجْنَ فِي جِنَازَةٍ أَتَحْمِلْنَهُ فِيمَنْ يَحْمِلُهُ قُلْنَ لَا قَالَ: أَفَتُنْزِلْنَهُ قَبْرَهُ فِيمَنْ يُنْزِلُهُ قُلْنَ: لَا قَالَ: أَفَتَحْثِينَ عَلَيْهِ التُّرَابَ فِيمَنْ يَحْثِي قُلْنَ: لَا قَالَ: فَارْجِعْنَ مَأْزُورَاتٍ غَيْرَ مَأْجُورَاتٍ».(1)

"کوم سړے چې سړے وي هغهٔ لره مناسب دي چې خپله ښځه مقبرې له دَ تلو نه منع کړي؛ (چې مقبرې له به نهٔ ځي، اګر چې دا مړے خپل مړے ولې نهٔ دے، بيا حديث ذکر کوي)؛ دا ځکه چې نبي ﷺ يَو ځل زنانه اوليدې، جنازې له تلې، نو نبي ﷺ هغې زنانو ته وائي: تاسو دا مړے اوچتولے شئ؟ نو ښځو اوو‌ئيل: نا! بيا ورته نبي ﷺ اوفرمائيل: تاسو ئې قبر له کوزولے شئ؟ نو هغوي اوو‌ئيل: نا، وائي: خاورې پرې راړولے شئ؟ نو هغوي اوو‌ئيل: نا، نو نبي ﷺ ورته اوو‌ئيل: کورونو ته واپس لاړې شئ، کهٔ مقبرې له ځئ نو خبردار! دَ ګناه نه ډکيږئ او ثواب مو ذره هم نهٔ کيږي، هغوي ئې واپس کړې".

**دَ نبي ﷺ خپلې لور فاطمې ﷺ ته فرمان**

يَو ځل نبي ﷺ خپله لور فاطمه ﷺ لاره کښې اوليدله چې راروانه وه، نو دَ هغې نه ئې تپوس اوکړو: "مِنْ أَيْنَ أَقْبَلْتِ يَا فَاطِمَةُ؟" فَقَالَتْ: "أَقْبَلْتُ مِنْ وَرَاءِ جِنَازَةِ هَذَا الرَّجُلِ...".

"فاطمه بچې! چرته تلې وې؟ نو هغې ورته اوو‌ئيل: زهٔ دَ دې کاونديانو دَ خوا نه راغلم (دوي کره مړے شوے وو، تسلي مې ورکوله)".

مړي له زنانه تلے شي، خو مړي ته دې نهٔ ګوري چې سړے مړ دے، دا دې يَو طرف ته کيښني، دوي څهٔ کوي؟ دوي به دَ مړي نه ګير چاپيره ناستې وي، وائي: داسې پروت وو چې تا به

(1) انظر: "المدخل" لابن الحاج: (250/1).

وئيل چې پهٔ خوب باندې اودهٔ دے، نو تا ورته څنګه کتل؟ پردي سړي ته کتل جائز دي؟ چې نهٔ ورته کورې، کله وائي: داسې خراب شوے ووا، نو دَ ښځو دپاره دَ مړي کور ته تلل جائز دي، تسلئ ورکولو دپاره دې لاړې شي، خو دَ مړې ليدو له دې نهٔ ځي، بيا کله چې څوک داسې مړشي چې پهٔ ږز اولګي، پهٔ هغهٔ خو نهٔ دَ سړو دَ ملاقات نمبر وي او نهٔ دَ ښځو دَ ملاقات نمبر وي، هر يَو به ئې کوري چې دے به پهٔ کوم ځائے لګيدلے وي؟ دے ئې دَ الله دَ رضاء دپاره نهٔ کوري بلکه دَ دې دپاره ئې کوري چې څنګه خراب شوے دے او کهٔ نهٔ دے خراب شوے؟ وائي آخري ملاقات ئې اوکړئ، آخري ملاقات ئې پهٔ ژوند نهٔ کوي، دَ مرګ نه پس ئې ملاقات کوي، دَ مرګ نه پس پهٔ ملاقات به څهٔ اوکړې؟، بهر حال فاطمه ﷺ ورته وائي: دَ دې ګاونډيانو کره غم شوے وو، دَ هغوي ښځو تعزيت له تلے اووم، نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: "هَلْ بَلَغْتِ مَعَهُمُ الْكُدَى؟" فَقَالَتْ: لَا وَكَيْفَ أَبْلُغُهَا وَقَدْ سَمِعْتُ مِنْكَ مَا سَمِعْتُ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ بَلَغْتِهَا مَعَهُمْ مَا رَأَيْتِ الْجَنَّةَ حَتَّى يَرَاهَا جَدُّ أَبِيكِ».[1]

"تهٔ ورسره مقبرې له هم تلې وې؟ (فاطمه ﷺ خو دَ الله دَ نبي ﷺ لور وه) وائي: اے دَ الله پيغمبره ﷺ! نا! زهٔ ورسره مقبرې ته نهٔ ووم تلې؛ او زهٔ به څنګه مقبرې ته اورَسم حالانکه ما ستا نه دَ دې باره کښې ډير لوئي وعيد او يره اوريدلې دهٔ، نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: کهٔ چرته نهٔ ورسره مقبرې ته تلې وې نو قسم مې دې وي پهٔ هغهٔ ذات چې زما روح دَ هغهٔ پهٔ لاس کښې دے تا به جنت هيڅ کله هم نهٔ وو ليدلے".

او يَو بل روايت کښې راځي: "لَمْ تُرِيْحِيْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ".

"تا به دَ جنت خوشبوئي کله هم نهٔ وه محسوس کړې".

نو دَ دې حديث نه معلومه شوه: چې دَ الله نبي ﷺ دَ زنانؤ تلل مکروه ګنړلي دي، چې زنانه به دَ مقبرو زيارت له نهٔ ځي، دَ احنافو پهٔ نزد مفتٰی به قول دا دے: چې زنانه دې زيارت دَ قبرونو له نهٔ ځي.

**دَ شاه محمد اسحاق رحمه الله قول**

"وزنانه رازيارت قبور بقول اصح مکروه است".(مسائل اربعين) بعضې خلق وائي: دا مسئله اختلافي ده، نو صحيح پکښې کوم قول دے؟ نو "اصح قول دا دے: چې دَ زنانؤ مقبرې ته تلل مکروه دي".

(1) أخرجه البيهقي "السنن الكبرى" في جماع أبواب البكاء على الميت، باب ما ورد في نهي النساء عن اتباع الجنائز، برقم: (7203).

**دَ علامه عیني ﷫ دویم قول**

"وَلَقَدْ كَرِهَ أَكْثَرُ الْعُلَمَاءِ خُرُوْجُهُنَّ إِلَى الصَّلَوَاتِ فَكَيْفَ إِلَى الْمَقَابِرِ؟ وَمَا أَظُنُّ سُقُوطَ فَرْضِ الْجُمُعَةِ عَلَيْهِنَّ إِلاَّ دَلِيْلاً عَلٰى إِمْسَاكِهِنَّ عَنِ الْخُرُوْجِ فِيْمَا عَدَاهَا".[1]

"عالمانو دَ زنانؤ تلل مونځونو له مکروه ګڼرلي دي، نو مقبرو ته تلل به څنګه جائز شي؟ او دا دَ جُمعې مونځ ته تلل ئې مکروه ګڼرلي نو زما پۀ علم کښې دا دَ دې وجې نه دي چې دا دليل اوګرځي پۀ دې چې نورو مواضعو او ځايونو ته وتل دَ زنانؤ منع دي (نو چې جُمعې له نشي تلے نو مقبرو ته به څنګه اوځي؟)".

**دَ علامه ظفر احمد عثماني ﷫ قول**

"قُلْتُ: تَأَمَّلْنَا فَرَئَيْنَا زِيَارَةَ الْقُبُوْرِ أَشَدُّ فِتْنَةً مِنَ الذَّهَابِ إِلَى الْمَسَاجِدِ".[2]

"مونږ چې سوچ اوکړو نو دَ ښځو مقبرو ته تلل دَ جوماتَ دَ تلو نه ډير نقصاني دي، چې يَوه ښځه جومات له نشي تلے نو مقبرې له هم نشي تلے".

دَ دې وجې نه صحيح قول دا دے: چې دَ زنانؤ مقبرو ته تلل مکروه دي، پۀ دې باندې دَ ډيرو علماؤ کتابونه شته، او پۀ دې دَ اُردو فتاؤجات هم شته:

**دَ مفتي رشيد احمد لدهيانوي ﷫ فتوی**

"جواب: عورتوں کی قبرستان جانا منع ہے؛ اسلئے کہ حدیث میں ایسی عورت پر لعنت وارد ہوئی ہے، خصوصا اس زمانے میں خرافات پر نظر کرتے ہوئے کسی حالت میں بھی اجازت کی گنجائش نہیں ہے".[3]

**دَ مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ قول**

"قبروں پر جانے کی حدیث میں ممانعت آئی ہے حضرت محمد ﷺ نے ایسی عورتوں پر لعنت فرمائی ہے".[4]

**دَ حضرت مولانا مفتي عزيز الرحمن ﷫ قول**

"صحیح بات یہی ہے کہ عورتوں کو قبرستان پر نہ جانا چاہئے".[1]

(1) انظر: "عمدة القاري" لبدر الدين العيني: (69/8).
(2) انظر: "إعلاء السنن" لظفر أحمد عثماني: (337/8).
(3) انظر: "أحسن الفتاوى" لمفتي رشيد أحمد لدهانوي: (157/4).
(4) انظر: "بہشتی زیور" لأشرف علي التهانوي: (50).

"صحیح خبره دا ده: چې دَ زنانؤ دپاره قبرستان ته تلل نهٔ دي پکار".

**دَ "فتاوی حقانیه" کښې لیکلي دي**

"اس پُر فتن دور میں خواتین حضرات کو مزارات یا قبرستان جانا جائز نہیں بلکہ حرام ہے". (2)

"پهٔ دې دَ فتنو نه ډک دور کښې دَ زنانؤ قبرستان او قبرونو ته تلل جائز نهٔ دي، بلکه حرام او ناروا دي".

نو دا مسئله اختلافي وه خو ښځوا، اوس زمونږ احناف او علماء دیوبند دَ هغوي پهٔ نزد باندې راجحه دا ده: چې ښځې به زیارتونو او قبرونو له نهٔ ځي، زیارت له تلل دا خو شرک دپاره ځي، او عامې مقبرې له تلل دَ سړو دپاره مستحب دي او دَ زنانؤ دپاره ناجائز دي، زنانه به مقبرو ته نهٔ ځي. الله رب العزة دې دَ عمل کولو توفیق رانصیب کړي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِیْنَ.

---

(1) انظر: "فتاوی حقانیة": (53/2).

(2) انظر: "عمدة القاري" لبدر الدین العیني: (69/8).

بسم الله الرحمن الرحيم

وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ

(سورة النساء: 3)

# موضوع

# وادهٔ کول سنت دي

**بتاريخ: 2007-04-15**

**مقام جلبئ**

**خطيب**

**فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله**

# وادۀ كول سنت دي

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ. بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا * وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «النِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِي، فَمَنْ لَمْ يَعْمَلْ بِسُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي».(2)

قابلِ قدر، معزّز علماء كرام او زما عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړوا ما ستاسو وړاندې دَ قرآنِ كريم نه دَ سورة النساء يَو دوه آيتونه تلاوت كړل او دَ احاديثو دَ رسول الله ﷺ نه ما ستاسو مخكښې يَو حديث مبارک عرض كړو، زمونږه او ستاسو راجمع كيدل دَ يَو وادۀ په باره كښې دي، عزتمندوا حقيقت دا دے: چې دا دَ الله يَو لوئي نعمت دے، په انسان باندې چې الله رب العزة په انسان باندې كړے دے، په نارينه باندې هم او په زنانه باندې هم يَو لوئي نعمت دے.

**دَ وادۀ فائده**

كۀ چرې وادۀ نۀ وے نو انسان به دغه شان نۀ وے لكه څنګه چې نن انسان په عزت او شرافت كښې دے، كۀ وادۀ نۀ وے نو پلار به نۀ وے، كۀ وادۀ نۀ وے نو مور به نۀ وه، كۀ وادۀ نۀ

(1) [سورة آل عمران:3-4].

(2) أخرجه ابن ماجة في كتاب النكاح، باب ما جاء في فضل النكاح، برقم: (1846).

وے نو خپلوان او رشته داران به نۀ وو، بیا به دا مینه او محبت نۀ وو، خو دا نن چې دَ مسلمانانو پۀ مینځ کښې خومره مینه او محبت دے، دَ پلار عزت دے او دَ مور عزت دے، دَ مشر عزت دے، دَ کشر سره شفقت دے؛ دَ دې ټولو وجه صرف وادۀ دے، هغه ملکونو کښې چې هغې کښې دَ وادۀ څۀ اهمیت نۀ وي نو هغې کښې زناکانې ډیرې عامې دي، بد عملۍ پکښې عامې دي، نو هغوي کښې دَ پلار حق نشته، دَ مور حق نشته، دَ ورور حق نشته، دَ ګاونډې حق نشته، دَ ځناورو پۀ شان زندګي ده چې بالغ کیږي نو خپل خواهش پسې ځي.

**پۀ مسلمان دَ الله رب العزة احسان**

دا پۀ مسلمان قوم باندې دَ الله ډیر لوئې احسان دے، چې دَ دوي دپاره پۀ اسلام کښې دَ وادۀ طریقه شته، او وادۀ دا صرف پۀ شریعت دَ نبي ﷺ کښې نۀ وو، بلکه وادۀ دا پۀ تمامو ادیانو کښې وو، انبیاء عليهم السلام هم ودونه کړي دي، صرف زمونږ پیغمبر ﷺ نا! دَ هغه نه مخکښې هم انبیاؤ عليهم السلام ودونه کړي وو، نو وادۀ یَواځې سنت دَ جناب رسول الله ﷺ نۀ دي، بلکه سنت دَ تمامو انبیاؤ عليهم السلام دي، حدیث کښې راځي، رسول الله ﷺ فرمائي: «أَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِينَ: الحَيَاءُ، وَالتَّعَطُّرُ، وَالسِّوَاكُ، وَالنِّكَاحُ».(1)

"څلور څیزونه دا دَ تمامو انبیاؤ عليهم السلام سنت دي: (۱) یَو: حیاء کول (او بعضې علماؤ دَ "الحیاء" پۀ ځائے "الحِناء" لیکلے دے، نکریزه لګول)، (۲) دویم: مسواک استعمالول، (۳) دریم: خوشبو لګول، او (٤) څلورم: نکاح کول".

نو دا نکاح دَ تمامو پیغمبرانو عليهم السلام سنت دي، او جناب نبيِ کریم ﷺ پخپله هم وائي: «النِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِي، فَمَنْ لَمْ يَعْمَلْ بِسُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي».(2)

"نکاح زما سنت دي، او چا چې زما پۀ سنتو عمل اونۀ کړو دا سړے زما امتي نۀ دے".

**دَ نبي کریم ﷺ کورله دَ څۀ کسا نوراتلل**

هغه مشهور حدیث دے: چې څۀ کسان دَ نبي ﷺ کور ته راغلل، دَ نبي ﷺ دَ بيبیانو نه ئې تپوسونه اوکړل، دَ نبي ﷺ دَ عبادت باره کښې ئې تپوسونه اوکړل، کله چې ورته هغوي دَ نبي ﷺ دَ

(1) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب ما جاء في فضل التزويج، والحث عليه، برقم: (1080).
(2) أخرجه ابن ماجة في كتاب النكاح، باب ما جاء في فضل النكاح، برقم: (1846).

عبادت طریقه اوښودله نو حدیث کښې راځي: "فَلَمَّا أُخْبِرُوا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوهَا".

"کله چې دوي خبر کړے شو نو ګویا که دوي دَ نبي ﷺ عبادت کم اوګڼړلو"؛ ځکه دَ هغوي په ذهن کښې خو دا وو: چې ګني نبي ﷺ به ډومره اوږده اوږده عبادتونه کوي چې هغه به مونږ نشو کولے، نو دا خو مونږ کولے شو نو مونږ به دَ دې نه زیات کوو، "فَقَالُوا: وَأَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ ﷺ؟ قَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ".

"سوچ ئې اوکړو: چې نبي ﷺ خو به لږ عبادت ځکه کوي؛ چې هغه ته خو الله مخکښې او روستو ګناهونه معاف کړي دي، نو مونږ خو دَ پیغمبر ﷺ پشان نهٔ یُو (چې مونږ له ئې هم مخکښني او روستني ګناهونه معاف کړي دي، مونږ خو به ډیر عبادت کوو)".

نو هغې درې واړو (۳) کسانو یَو عهد اوکړو او اتفاق ئې اوکړو چې راځئ! په ځان باندې څهٔ عبادتونه لازموو: "قَالَ أَحَدُهُمْ: أَمَّا أَنَا فَإِنِّي أُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا، وَقَالَ آخَرُ: أَنَا أَصُومُ الدَّهْرَ وَلَا أُفْطِرُ، وَقَالَ آخَرُ: أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا".

"نو (۱) یَو کس پکښې دا اوونیل: هر چې زهٔ یم نو توله شپه به زهٔ دَ الله په عبادت کښې ولاړ یم، همیشه به مونځونه کوم (خوب به نهٔ کوم هره شپه به زما دغه ډیوټي وي)، او (۲) دویم کس اوونیل: هر چې زهٔ یم نو هره ورځ به زما روژه وي، زهٔ به روژه نهٔ ماتوم (کوژه کوم به ناا بلکه ټول عمر به زهٔ روژه نیسم)، هغه (۳) دریم کس اوونیل: هر چې زهٔ یم نو زهٔ به بالکل دَ بیبیانو نه ځان اړخ ته کړم (بالکل به وادهٔ نهٔ کوم؛ ځکه وادهٔ سره دَ دین دَ کار نه انسان اوځي، بیا دَ دنیا مصروفیات سیوا شي)".

نو نبي ﷺ کور ته راغلے، بیبیانې ورته وائي: دَ الله پیغمبره ﷺ! څهٔ کسان راغلي وو، داسې داسې خبرې ئې اوکړې، نبي ﷺ نهایت پخپل امت باندې مئین وو، نبي کریم ﷺ هغوي پسې دَ کور نه راروان شو، کله چې راغے، لار کښې هغه کسان روان وو، نو نبي ﷺ ورته اوونیل: «أَنْتُمُ الَّذِينَ قُلْتُمْ كَذَا وَكَذَا، أَمَا وَاللهِ إِنِّي لَأَخْشَاكُمْ لِلهِ وَأَتْقَاكُمْ لَهُ، لَكِنِّي أَصُومُ وَأُفْطِرُ، وَأُصَلِّي وَأَرْقُدُ، وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ، فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي».[1]

(1) أخرجه البخاري في كتاب اللباس، باب تقليم الأظفار، برقم: (5892).

"تاسو هغه کسان يئ چې وختي تاسو داسې داسې خبرې کړې دي؟ (هغه صحابه کرام ﷺ ورته اووئيل: آو، دَ الله پيغمبره ﷺ! هغه مونږه يُو)، نبي کريم ﷺ ورته اوفرمائيل: قسم پهٔ الله، زهٔ پهٔ تاسو کښې دَ الله نه ډير يريدونکے يم، او زهٔ پهٔ تاسو کښې زيات تقوٰی دار يم (تاسو زما هومره دَ الله تعالی نه نهٔ يريږئ، تاسو کښې دومره تقوٰی نشته لکه څومره چې ما کښې ده)، ليکن زهٔ بيا هم روژه نيسم او کله کله کوژه کومه هم (داسې نهٔ ده چې کَني هر وخت زما روژه وي)، او زهٔ دَ شپې مونځ هم کوم او زهٔ اودهٔ کيږم هم، او زهٔ دَ بيبيانو سره نکاح هم کوم؛ دا زما سنت دي، او چا چې زما دَ سنتو نه مخ واړولو دغه سړے زما امتي نهٔ دے".

حديث نه معلومه شوه: چې پهٔ کوم شي کښې شريعت ثواب نهٔ دے ښودلے، کهٔ چرې يَو مسلمان ئې پهٔ ځان باندې لازم کړي نو هغې کښې ثواب نشته دے، اګر کهٔ هغه دَ ثواب کار دے خو چې شريعت نه نهٔ دے ثابت نو سړے پرې ګنانګاريږي.

### دَ هر عمل دَ قبوليت دپاره دوه شرطونه

دَ هر عمل دَ قبوليت دپاره دوهٔ (۲) شرطونه دي: (۱) يَو دا: چې خالص دَ الله دَ رضاء دپاره وي، او (۲) دويم دا چې پهٔ طريقه دَ جناب رسول الله ﷺ باندې وي.[1]

کهٔ ستا مقصد دا وي: چې ما دا خلق اووينې خلق زما اعمال اوګوري نو ستا دَ دې عمل دَ الله پهٔ دربار عاليه کښې هيڅ څهٔ قيمت نشته دے.

### شرک اصغر

حديث کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: "رياء شرک اصغر دے"، کوم سړے چې دَ دې دپاره عمل کوي چې خلقو له ځان ښائي، دا سړے شرک اصغر کښې مبتلاء شو، حديث مبارکه کښې راځي: نبي کريم ﷺ فرمائي: دَ قيامت پهٔ ورځ باندې به ورته الله وائي: ستا دَ عمل بدله زما سره نشته دے، چا دپاره چې دې عمل کړے وو دَ هغهٔ نه خپله بدله اوغواړه، ستا بدله زما سره نشته دے.

نو (۱) يَو شرط دا دے: چې عمل به خالص دَ الله دَ رضاء دپاره وي، (۲) دويم دَ عمل دَ قبليدو شرط دا دے: چې هغه کار به پهٔ طريقې دَ پيغمبر ﷺ باندې وي، کهٔ پهٔ طريقې دَ پيغمبر ﷺ نهٔ وي، کهٔ دا بيا ډير ښهٔ عمل ولې نهٔ دے خو نهٔ قبليږي، بعضې خلق وائي: يره دا ښهٔ کار دے، دَ دې څهٔ

(1) انظر: "تفسير ابن الكثير" تحت آية (7) من سورة هود: (308/4).

بدي نشته؟ نو ښهٔ کار خو دے، خو چې دَ پيغمبر ﷺ نه نهٔ دے ثابت نو دَ کوم ځائے نه ښهٔ شو؟ کهٔ ښهٔ وے نو پيغمبر ﷺ به کړے وے، خو چې هغهٔ نهٔ دے کړے نو پوهه شه چې ښهٔ نهٔ دے، ځکه تهٔ خو دَ پيغمبر ﷺ نه ښهٔ نهٔ پوهيږې، نو هر هغه کار چې دَ نبي ﷺ دَ شريعت نه خلاف دے نو کهٔ هغهٔ ظاهرًا تا ته ښهٔ کار ښکاري خو هغه ښهٔ کار نهٔ دے.

## دَ يَو صحابي ﷺ حالت

دَ "صحيح البخاري" روايت کښې راځي: أبو اسرائيل ﷺ يَو صحابي دے، دَ جُمعې ورځ ده او پيغمبر ﷺ خطبه وائي، دَ عربو خو مشهوره کړمي ده، هغه ابو اسرائيل ﷺ نذر کړے وو: چې زهٔ به ولاړ يم، کيښنم به نه، سوري ته کيږم به نه (نمر ته به ولاړ يم)، او خبرې به نهٔ کوم او زهٔ به نن توله ورځ روژه نيسم پهٔ دې کړمئ کښې، دا ئې نذر کړے وو؛ دَ دې دپاره چې زما نه الله خوشحاله شي، نبي ﷺ خطبه وئيله، چې بهر ئې اوکتل نو دغه صحابي ﷺ ولاړ وو، نو نبي ﷺ دَ صحابه کرامو ﷺ نه تپوس اوکړو: "دا بهر څوک ولاړ دے؟"، صحابه کرامو ﷺ ورته اووئيل: دا ابو اسرائيل ولاړ دے، وائي: دا ولې؟ ورته اووئيلے شو: چې دا دهٔ نذر منلے دے، چې زهٔ به ولاړ يم، کيښنم به نه، سوري ته کيږم به نه (نمر ته به ولاړ يم)، او خبرې به نهٔ کوم او زهٔ به نن توله ورځ روژه نيسم پهٔ دې کړمئ کښې، نو نبي ﷺ ورته اووئيل: نا! دا خو زما طريقه نهٔ ده، او حکم ئې اوکړو: «مُرْهُ فَلْيَتَكَلَّمْ وَلْيَسْتَظِلَّ وَلْيَقْعُدْ، وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ».(1)

"هغه ته حکم اوکړئ چې خبرې دې کوي او سوري ته دې شي او ناسته دې کوي او پکار ده چې روژه پوره کړي؛ دا دَ روژې دَ پوره والي حکم ورته ځکه کوي؛ چې دَ روژې عبادت دا دَ شريعت نه ثابت دے، خو نمر ته اودريدل دا زما پهٔ شريعت کښې نشته دے، نو ثواب پرې نشته، نو کيښنه او روژه ماښامه پورې پوره کړه".

نو هغه طريقه ورباندې نبي ﷺ ختمه کړه، نو مقصد مې دا دے: چې کومه طريقه دَ پيغمبر ﷺ نه ثابت نهٔ ده نو کهٔ تهٔ هغه ډير پهٔ اخلاص سره هم کوې، خو چې دين کښې دَ هغې څهٔ ثبوت نشته نو صحيح نهٔ ده، بلکه دا بيا غلطه طريقه ده.

## دَ عمر ﷺ نصراني پير ليدل

عمر ﷺ چې هغهٔ نصراني پير اوليدو چې هغهٔ نهايتې زړې جامې اچولې وې، ښَرَ سر ئې نيولے

(1) أخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور، باب النذر فيما لا يملك و في معصية، برقم: (6704).

وو، او ډیر زیات ئې ځان پهٔ تکلفاتو کښې اچولے وو، شپه او ورځ به ئې عبادتونه کول، چا ورته اووئیل: چې جي! دا خو نصراني پیر دے، عابد دے، ټوله شپه عبادتونه کوي، سیدنا عمر ﷺ چې اوکتل نو دَ سترګو نه ئې اوښکې رواني شوې او اوئې ژړل، چا ورته اووئیل: "يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، مَا يُبْكِيكَ؟".(1)

"اے امیر المومنین تاسو ولې ژاړې؟".

هغه اووئیل: دَ دهٔ دَ وجې نه نهٔ ژاړم خو دَ دهٔ پهٔ دې حال باندې ژاړم چې ځان ئې سترے کړو، او سره دَ هغې نه به جهنم ته روان وي، نو اوګورا! دهٔ خومره پهٔ اخلاص عبادت کولو خو چې پهٔ طریقه دَ نبي ﷺ نهٔ وو نو عمر ﷺ پهٔ ژړا شو.

نو نبي ﷺ هغه دریو صحابو ﷺ ته وائې: دا درې کارونه زما سنت دي، کله دَ شپې عبادت کول او کله اودهٔ کیدل او نکاح کول، دا زما سنت دي، چا چې زما دَ سنتو نه مخ واړولو دغه سړے زما امتي نهٔ دے.

**دَ الله تعالی نعمت**

الله رب العزة فرمائي: ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾.(2)

"بعضې دَ نخښو دَ قدرت دَ الله نه دا دي: چې الله ستاسو دپاره ستاسو پشان بیبیانې ستاسو دَ نفسونو نه پیدا کړې دي، (ستاسو دَ جنس نه ئې پیدا کړې دي)؛ دَ دې دپاره چې تاسو دَ هغې سره آرام اوکړئ".

نو الله وائي: دا زما لوئې نعمت دے دَ دې شکریه اداء کړئ، کهٔ چرته الله تعالی دَ انسان دَ شهوت دَ پوره کولو دپاره یو ځناور پیدا کړے وے نو بیا به خومره کرانه وه، الله تعالی وائي: ﴿مِنْ أَنْفُسِكُمْ﴾، "ستاسو دَ نفسونو نه، ستاسو دَ جنسونو نه"، ستاسو پشان دوه لاس او دوه خپې، ستاسو پشان بدن مې ورله ورکړے دے؛ دَ دې دپاره چې ستاسو پهٔ مینځ کښې مینه او محبت سیوا شي، دا دَ الله دَ قدرت نخښه ده.

او وریسې الله تعالی فرمائي: ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾،(3) "الله تعالی کرځولې ده ستاسو پهٔ مینځ کښې دوستانه او رحمت"، یعني پهٔ مینځ دَ ښځې او دَ خاوند کښې، ﴿مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ "دوستانه

(1) انظر: "تفسیر القرطبي": (27/20).
(2) [سورة الروم: 21].
(3) [سورة الروم: 21].

او رحمت"، علماء کرام دَ دې کنړې معاني کوي:

**(۱) اوله معنی**

﴿مَوَدَّةً﴾ دوستانه ظاهرًا، ﴿وَرَحْمَةً﴾ او رحمت باطنًا، معنی دا شوه: چې ظاهري خو دَ يَو بل سره مينه محبت دے، او زړهٔ کښې دننه هم دَ يَو بل سره مينه محبت دے، دا دَ الله دَ قدرت نخښه ده؛ ځکه کله کله داسې وي چې محبت وي خو صرف ظاهرًا محبت وي، ليکن زړهٔ کښې بُغض وي، هغه خو خوند نهٔ کوي، ظاهرًا يَو بل ته خوږې خبرې کوي ليکن دننه زړونو کښې يَو بل ته غُصه دي، نو هغه هم محبت نهٔ دے، الله تعالی فرمائي: ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾.

"الله تعالی دَ ښځې او دَ خاوند پهٔ مينځ کښې ظاهرًا هم مينه اچولې ده او باطنًا هم الله تعالی مينه اچولې ده".

**(۲) دويمه معنی**

﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾.

"اچولے دے الله ستاسو پهٔ مينځ کښې دوستانه او رحمت".

دا دَ الله دَ قدرت نخښه ده، دَ بل کلي جينئ دَ بل چا ځوي او دَ بل کلي دَ چا ورور وي نو دې دواړو دَ وادهٔ نه مخکښې يَو بل نهٔ وي ليدلي، ليکن دَ وادهٔ کولو سره، صرف دَ دوو تکو سره چې تا قبوله کړې وه او قبوله کړې دې ده، هغه وائي: آوا ما قبوله کړې وه او قبوله کړې مې ده، پهٔ دې دوو تکو وئيلو سره دومره محبت قائم شو چې تول دنيا دَ دې نظير نشي پيش کولے، دا دَ الله دَ قدرت نخښه ده، ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ "الله ستاسو پهٔ مينځ کښې مينه او محبت پيدا کړے دے".

**دَ "تفسير قرطبي" قول**

"تفسير قرطبي" کښې وائي: مودت او رحمت څهٔ ته وائي؟ نو هغه وائي: ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً﴾ "کرځولې ده الله ستاسو پهٔ مينځ کښې دوستانه دَ سړي دَ طرف نه دَ ښځې سره او مينه دَ ښځې دَ طرف نه سړي سره"، ﴿وَرَحْمَةً﴾ "او مينه دَ ښځې دَ خپل خاوند سره".[1]

کهٔ چرې داسې وے چې دَ خاوند دَ ښځې سره مينه وے او ليکن دَ ښځې دَ خاوند سره نهٔ وے نو بيا به څهٔ مصيبت وے، کهٔ ستاسو خيال وي، هغه نکاح نهٔ وي، هغه مصيبت وي

(1) انظر: "تفسير القرطبي": (17/14).

چې دَ خاوند خو دَ ښځې سره محبت وي خو دَ ښځې محبت ورسره نهٔ وي، کلهٔ ښځه پلار کره خفه لاړه شي، بیا وریسې جرګې بوځي، بیا ئې راولي نو بیا ترې لاړه شي، نو هغه وائي: څهٔ غضب باندې اوریدلے یم، وادهٔ نهٔ وي هغه دَ هغهٔ دپاره یَو مصیبت جوړ شي.

**دَ وادهٔ نه مخکښې چې کومې زنانه سره ستا دَ نکاح اراده ده نو هغې ته کتل**

چې کله پهٔ شریعت باندې عمل کیږي نو بیا به دا مسئلې نهٔ راځي، احادیث پهٔ دې باندې شته دے، او محدثینو پهٔ دې باندې باب قائم کړي دي، "باب دے پهٔ بیان دَ دې کښې چې کومې زنانه سره نکاح کوې نو هغې ته کتلے شې"، نو دَ شریعت مسئله خو دا ده، او الله رب العزة فرمائي: اووایه! اے محبوب! مومنانو سرړو ته: ﴿يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾.(1)

"چې خپل نظرونه ښکته کړي او دَ خپلو عورتونو حفاظت اوکړي".

او دغه شان حکم زنانو ته هم دے، الله تعالی فرمائي: ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾.(2)

"زما حبیبه! مومنانو زنانو ته اووایه: چې هغوي دې هم خپل نظرونه ښکته کړي او دَ خپلو عورتونو حفاظت دې اوکړي".

دا دَ شریعت حکم دے، مسلمان به پهٔ دې باندې عمل کوي، لیکن داسې وخت کښې پردئ ښځې له کتل جائز دي، محدثین ذکر کوي: "باب دے پهٔ بیان دَ دې کښې چې کومې زنانه سره نکاح کوې نو هغې ته کتلے شې"؛ نو دا څهٔ وجه ده؟ هغهٔ خو لا ستا پهٔ نکاح کښې نهٔ ده راغلې او تهٔ خو به هغې سره روستو بیا نکاح کوې؛ نو دا کتل دَ دې دپاره جائز دي: چې صبا بیا ستا زندګي دَ محبت والا وي، هسې نه چې ستا دا زندګي بیا دَ نفرت والا جوړه نهٔ شي، او بیا وائي: چې دا زهٔ پهٔ څهٔ غم اوریدلے یم، نو مخکښې نه کتل ورته جائز شو.

**نبي ﷺ ته دَ یَو صحابي راتلل**

دَ دې وجې نه نبي ﷺ ته یَو صحابي راغے، ورته وائي: زهٔ وادهٔ کوم، نبي ﷺ ورته فرمائي: تا لیدلې ده؟ نو هغه ورته وائي: نا!، نبي ﷺ ورته وائي: ورشه بیا ورته اوګوره!، ځکه «انْظُرْ إِلَيْهَا، فَإِنَّهُ

(1) [سورة النور: 30].

(2) [سورة النور: 31].

أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا».[1]

"اوګوره هغې ته؛ ځکه چې دا ډیره نزدې ده دې ته چې ستاسو دَ دواړو په مینځ کښې به محبت پیدا کړے شي".

بل روایت کښې راځي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ تَزَوَّجَ امْرَأَةً مِنَ الأَنْصَارِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَاذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، فَإِنَّ فِي أَعْيُنِ الأَنْصَارِ شَيْئًا».[2]

"ابو هریره ﷺ نه روایت دے: هغهٔ وائي: زهٔ دَ نبي ﷺ سره خوا کښې اوم چې یَو سړے راغے نبي ﷺ ته، نو نبي ﷺ ئې خبر کړو په دې خبره چې ما دَ یَو انصارې زنانه سره وادهٔ کړے، نبي ﷺ ورته فرمائي: تا لیدلې ده؟ نو هغه ورته وائي: نا!، نبي ﷺ ورته وائي: لاړشه او اوګوره هغې ته؛ یقینًا دَ انصارو په سترګو کښې څهٔ شے دے".

مطلب دا دے: چې ښهٔ ورته اوګوره، دَ دې وجې نه په دې باندې احادیث شته، چې کله سړے په شریعت عمل اوکړي نو بیا دا مسئلې نهٔ راځي، نو بیا خفګان هم نهٔ راځي.

اکثر په پښتنو کښې دا مصیبت وي: چې نهٔ دَ ځوي نه تپوس کوي او نهٔ دَ لور نه تپوس کوي، خو چې کوم ځائے کښې ئې دَ مور او پلار زړهٔ وي نو هلته کښې ورته کوژدن او وادهٔ اوکړي، او بیا ئې نهٔ مور تپوس کوي او نهٔ ئې پلار تپوس کوي، په دویمه ورځ ئې دَ ځان نه جدا کړي، او هغه په غم باندې واړوي، کهٔ نور هیڅ هم نهٔ وي نو دَ مور او پلار نه خو ئې جدا کړي؛ ځکه چې جینۍ او هلک یَو بل لیدلي نهٔ وي، یَو بل ئې خوښ شوي نهٔ وي، نو مجبوره ئې کړي، وائي: کهٔ دا کوې نو ښه ده، او کهٔ نهٔ ئې کوې نو مهٔ ئې کوه، اکثر خلق داسې وي، چې هغهٔ مور او پلار مجبوره کړي وي، نو هغه دَ کور نه اوتختي او خفه شي، نو په دې باندې دَ هغوي ټوله زندګي خرابه شي، هغه کوم مودت او رحمت ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ چې الله تعالی پیدا کوي

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب ما جاء في النظر إلى المخطوبة، برقم: (1087) واللفظ له، والنسائي في كتاب النكاح، باب إباحة النظر قبل التزويج، برقم: (3235).

(2) أخرجه مسلم في كتاب النكاح، باب ندب النظر إلى وجه المرأة وكفيها لمن يريد تزوجها، برقم: (1424) واللفظ له، وأحمد في "مسنده" في مسند أبي هريرة ﷺ، برقم: (7842).

نو هغه ختم شي، دَ شريعت خو ډيرې ښُکلې خبرې دي، ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ الله وائي: زما دَ قدرت نخښه دا ده: چې دَ پردي سړي او پردۍ ښځې په مينځ کښې مې داسې محبت پيدا کړو دَ وادۀ په وجه باندې چې ډير عظيم الشان محبت دے، ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾.

"کرځولے دے الله ستاسو په مينځ کښې دوستي او محبت".

دا کامله طريقه دَ محبت ده، کۀ دَ خاوند دَ ښځې سره محبت شته دے، خو چې دَ ښځې خاوند سره محبت نشته دے نو دا کامله طريقه دَ محبت نۀ ده، او کۀ دَ ښځې ورسره ډيره مينه ده خو چې دَ خاوند ورسره مينه نشته دے نو بيا هم هغه کور سمے نۀ خوري.

**(۳) دريمه معنی**

يا دريمه معنٰی علماء کرام ذکر کوي: "﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ کرځولې ده الله ستاسو په مينځ کښې مينه او محبت او رحمت، نو دا ﴿مَّوَدَّةً﴾ دوستانه دَ ځوانۍ په وخت کښې، چې کله ښځه او خاوند ځوانان دي نو په يَو بل باندې انتهائي مئين دي، يَو بل سره ئې انتهائي مينه ده، ﴿وَرَحْمَةً﴾ او دَ يَو بل سره محبت دَ بوډاوالي په حالت کښې"، دَ يَو بل سره ئې دوستانه ده نو په يَو بل خفه کيږي، دا دَ شريعت حکم دے، دا مينه او محبت په څۀ باندې راغلے؟ دا په وادۀ باندې راغلے، بل دا دے: چې دې وادۀ سره دَ انسان خاندان محفوظ دے، دَ انسان نسل محفوظ دے، دَ انسان تمامې رشته دارۍ دَ دې سره محفوظ پاتې شي.

**دَ وادۀ طريقه**

دَ شريعت چې څۀ حکم دے چې وادۀ به په کومه طريقه کوې؟ او کوم ځائے کښې به وادۀ کوې نو مونږ به دغه خبره منو، چې مونږ وادۀ کوو دا دَ پيغمبر ﷺ سنت دي، دا يَو سنت ئې خو منو او نور سنت مونږ دَ نبي ﷺ دَ خپو دَ لاندې کړې دي، چې دا به په کومه طريقه باندې کوو، نبي ﷺ په کومه طريقه ډولۍ راوړې ده؟ په کومه طريقه باندې ئې وادۀ کړے دے؟ څنګه طريقه ئې کړې ده؟ دَ کومې زنانه سره ئې نکاح کړې ده؟ نو بيا دغې ته مونږ نۀ ګورو.

**نکاح دَ څلورو وجو نه کولې شي**

«تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ: لِمَالِهَا، وَلِحَسَبِهَا، وَلِجَمَالِهَا، وَلِدِينِهَا، فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ».[1]

(1) أخرجه البخاري في كتاب النكاح، باب الأكفاء في الدين، برقم: (5090)، ومسلم في كتاب النكاح، باب استحباب نكاح ذات الدين، برقم: (1466)، واللفظ له.

"ښځه دَ څلورو وجو نه پهٔ نکاح کولے شي: يَو دَ مال دَ وجې نه، دويم دَ حسب او نسب دَ وجې نه، دريم دَ خائست او جمال دَ وجې نه او څلورم دَ دين دَ وجې نه، نو تهٔ کاميابي حاصله کړه پهٔ ديندارهٔ باندې، لاسونه دې خاورې شه!".

نو دَ څلورو وجو نه به زنانه سره نکاح کولے شي: يَو چې هغه زنانه مالداره وي نو خلق ورسره وادهٔ کوي، دويم چې دَ هغې نسب اوچت دے، اوچت خاندان والا ده، کمزورې نسب کښې وادهٔ ځکه نهٔ کوم چې بيا به خلق پيغور راکوي، او دريم دا چې سړے وادهٔ کوي وائي: چې ما دَ خائسته زنانه سره وادهٔ اوکړے! نو دَ خائست خيال کوئ او څلورم دا چې کله سړے وادهٔ کوي نو دے وائي: چې ما دَ ديندارې ښځې سره نکاح اوکړے، نبي ﷺ فرمائي: ځان کامياب کړه پهٔ هغې زنانه چې هغه ديندار ده، لاس دې خاورې شه! يعني دا تيزي ورکوي پهٔ دې باندې کهٔ وادهٔ کول غواړې او يَو داسې زنانه ده چې هغه مالداره هم ده او خائست والا هم ده او نسب ئې هم ښهٔ دے، ديندار هم ده نو بيا خو ډيره ښهٔ خبره ده، ليکن کهٔ داسې نهٔ ميلاويږي، کهٔ يَو زنانه ډيره خائسته ده، ليکن بے دينه ده، نو نکاح ورسره مهٔ کوه، ډيره زياته دَ اوچت نسب والا ده ليکن بے دينه ده، نو بيا هم ورسره نکاح مهٔ کوه، قرآنِ کريم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ﴾.(1)

"او خامخه وينځه مومنه غوره ده دَ مشرکې ښځې نه، اګر پهٔ تعجب کښې اچوي تاسو لره مال او خائست دَ هغې".

او کهٔ چرته يَو سړے خپله لور خور پهٔ نکاح باندې ورکوي نو هغې ځا ته دې ورکوي چې هغه ديندار دے، کهٔ غريب دے نو خير دے دا دومرهٔ مسئله نهٔ ده الله تعالی به ئې مالداره کړي، مال به ورله الله تعالی ورکوي؛ ځکه مال او دولت ورکول دَ الله تعالی اختيار کښې دي، خو کهٔ بے دينه دے نو د هغهٔ سره رشته داري اونهٔ کړئ؛ ځکه ستا لور خور به هم دَ ځان سره خرابه کړي، او تا به هم دَ ځان سره خراب کړي، الله تعالی فرمائي: ﴿وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ﴾.(2)

"خامخه غلام مومن غوره دے دَ مشرک کافر نه اګر کهٔ دَ کافر کادي تا لره ډير خوند درکوي، او هغه درته ډير مزيدار ښکاري"، او اګر کهٔ دَ کافر مشرک بے دينه کور تا ته ډير مزيدار ښکاري، اګر کهٔ

(1) [سورة البقرة: 221].
(2) [سورة البقرة: 221].

جائیداد ئې زیات دے، اګر کۀ پۀ اوچتو اوچتو عُهدو باندې دي، هغې ته مۀ ګوره، بلکه دین ته اوګوره، نو بیا ورته هلته لور ورکړه، صبا به تۀ هم خوشحاله ئې، او هغۀ به هم خوشحاله وي، ستا خاندان به هم خوشحاله وي او تۀ به ورسره هم دینداره شې؛ څکه خو یو شاعر وائي:

*صحبت صالح ترا صالح کند　　صحبت طالح ترا طالح کند*

"دَ نیکانو ملګرتوب سره به تۀ هم نیک شې او دَ بدانو خلقو ملګرتوب سره به تۀ هم بد او ناکاره شې".

نو دَ نیکانو خلقو سره ملګرتوب کوه، دَ دۀ سره به تۀ هم نیک شې، کۀ ناکاره خلقو سره ملګرتوب او صحبت کوې، دَ دۀ سره به تۀ هم ناکاره شې.

**دَ ناکاره دوست او دَ ښۀ دوست مثال**

رسول الله ﷺ فرمائي: «إِنَّمَا مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ، وَالْجَلِيسِ السَّوْءِ، كَحَامِلِ الْمِسْكِ، وَنَافِخِ الْكِيرِ، فَحَامِلُ الْمِسْكِ: إِمَّا أَنْ يُحْذِيَكَ، وَإِمَّا أَنْ تَبْتَاعَ مِنْهُ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيحًا طَيِّبَةً، وَنَافِخُ الْكِيرِ: إِمَّا أَنْ يُحْرِقَ ثِيَابَكَ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ رِيحًا خَبِيثَةً».[1]

"دَ ښۀ ملګري داسې مثال دے: لکه چې یو سړے عطر خرڅوي نو کوم سړے چې عطر خرڅوي نو یا خو به هغه تا له دغه شان هدیه درکړي، نو هم ستا دپاره فائده ده، او کۀ هسې تا له یو شیشه درنۀ کړي نو پیسې به ورکړې او ځان له به یو شیشه پۀ پیسو باندې واخلې، او کۀ چرې هغۀ ئې درله هسې هم درنۀ کړي او تا ځان له پۀ پیسو هم وانۀ غستل نو دَ هغې هغۀ خوشبوئي خو چرته تللې نۀ ده، دغسې هغۀ خوشبوئي خو پۀ تا باندې لګي".

دا دَ نیک ملګري مثال دے، دَ دۀ نه به درته خامخه څۀ نا څۀ فائده میلاوَ شي، او دَ بدعمله انسان مثال داسې دے، نبي ﷺ فرمائي: "لکه یو انسان دَ لوهار (اینګر) پۀ دوکان کښې ناست دے (دَ دې دا مطلب نۀ دے چې لوهار ښۀ نۀ دے)، بلکه دَ حدیث مطلب دا دے: لکه څنګه چې دَ لوهار پۀ دوکان کښې ناسته ناکاره ده، دَ هغۀ پۀ دوکان کښې ناست ئې او هغۀ هغه بټۍ (اینګټۍ) ګرموي کیدے شي دَ اُور یو سکروټه راشي او ستا پۀ کپړو باندې اولګي او کۀ دَ سکروټې نه بچ شوي نو یا به درباندې هغه بد بوئي اولګي"، معني: چې نقصان کښې به اخته شې کۀ دَ لوهار خواته کیښناستې یا خو به دې کپړې اوسوزي او کۀ کپړې دې بچ شي نو هغه بد بوئي خو به درباندې

(1) أخرجه مسلم في كتاب البر والصلة والآداب، باب استحباب مجالسة الصالحين، ومجانبة قرناء السوء، برقم: (2628).

اولکي، نو دغسې دَ غلط دوست مثال دے: کهٔ غلط دوست سره پاتې شوې نو خامخه به دَ هغهٔ نه تا ته څهٔ نا څهٔ نقصان ميلاويږي، لکه چې دَ لوهار سره ناسته کښې تا ته خامخه څهٔ نقصان رسي.

**دَ زنانو پيدائش**

حديث پاک کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: "چې زنانه دَ کږې پښتۍ نه پيدا دي"، يعني دَ دوي پهٔ طبيعت کښې قدرتي کوږ والے دے، کهٔ چرې تهٔ ئې نيغوې نو نهٔ ئې شې نيغولے، کهٔ تهٔ ئې نيغوې نو دا به ډيره پهٔ ګرانه نيغيږي؛ يَو ورځ زما خوا ته يَو کس راغلے هغې وخت کښې پهٔ "F.M" باندې درس وو، نو ما ته وائي: زهٔ به تا رضاء کړم خو نن دَ دې ښځو او دَ خاوند دَ حقوقو بيان اوکړه، زما کور والا ده چې هغه لږه سمه شي، نو چې تهٔ څهٔ غواړې نو زهٔ به ئې تا لره درکړم، ما ورته اووئيل: چې تهٔ ورته څهٔ اووايه او ځان له ئې پوهه کړه، ما ته وائي: زهٔ به نن ريډيو ځان سره خواته ايږدم او دَ ښځې او دَ خاوند پهٔ حقوقو بيان اوکړه، ما زړهٔ کښې اووئيل: چې دے اوس خپله ښځه نشي سمولے، نو ديندارہ ښځه اوکړه چې هغهٔ دَ الله نه يريږي او سمه وي، او چې بدعمله ښځه وي، نو هغې ته لګيا يه نو هغه به وائي: چې استاذان پکښې چا راوستي دي؟ هغه نهٔ سميږي، حديث پاک کښې راځي، رسول الله ﷺ فرمائي: «لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لأَحَدٍ لأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا».(1)

"کهٔ ما چا ته حکم کولو چې دَ الله نه علاوه بل چا ته سجده اوکړئ (کهٔ دَ الله نه علاوه بل چا ته سجده کول جائز وے)، نو زنانو ته به مې حکم کړے وو چې خپلو خاوندانو ته سجده کوئ"؛ ځکه دَ خاوند ډير لوئې حق دے پخپله ښځه باندې.

**دَ دريو کسانو عمل بره نهٔ خيژي**

رسول الله ﷺ فرمائي: "دري کسان داسې دي چې دَ هغوي عمل الله تعالى دَ هغوي دَ سر نه يَو ليشت هم بره نهٔ اوچتوي، نو دا درې کسان څوک دي؟

(۱) يَو هغه غلام دے چې هغه دَ خپلو مالکانو نه بغير دَ اجازت دَ هغوي نه اوتختي، نو دے چې ترڅو پورې واپس شوے نهٔ دے او دَ خپل مالک نه ئې معافي نهٔ ده غوښتې نو دَ دهٔ يَو عبادت هم نهٔ قبليږي.

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب ماجاء في حق الزوج على المرءة، برقم: (1159)، واللفظ له، وأبوداؤد في كتاب النكاح، باب في حق الزوج على المرءة، برقم: (2140).

(۲) دويم: هغه امام چې هغهٔ خلقو له امامتي ورکوي او قوم پرې ناراضه وي نو دَ هغهٔ عمل دَ هغهٔ دَ سر نه يَو ليشت هم نهٔ اوچتيږي.

(۳) دريم: هغه زنانه ده، چې دَ هغې نه خپل خاوند خفه دے نو دَ هغې مونځ دَ هغې دَ سر نه يَو ليشت هم نهٔ بره کيږي".

نو کهٔ ديندار ه ښځه وي او دا واوري نو هغه به خپل خاوند چرته هم خفه نهٔ کړي، چې زما خو يَو مونځ هم نهٔ قبليږي، او چې بدعمله ښځه وي ګناه به هم دَ ښځې وي ليکن خاوند به وريښې جرګې ليږي، چې دا خفه شوې ده، دا دې راشي نو جرګې وريښې ځي، او مور پلار ئې وائي: دا نهٔ شي تلے، حالانکه دا ښځه به پخپله خفه شوي وي، نو هغه به دَ خاوند حق څهٔ اوپيژني؛ ځکه چې ديندار ه نهٔ وي.

**کتې اوړل**

حديث کښې راځي، رسول الله ﷺ فرمائي: "چې دَ خاوند پخپله ښځه باندې دومره حق دے، کهٔ چرې خاوند خپلې ښځې ته حکم اوکړي: چې دا کتې دَ دې سپين غر نه واخله او زيَړ غر ته ئې يَوسه، او دَ زيَړ نه ئې واخله هغه تور غر ته ئې يوسه نو ښځې له پکار دي چې دغه حکم اومني"، دومره پورې دَ خاوند حق دے پخپلې ښځې باندې. نو کهٔ چرته عمر کښې يَو ځل يَو خپيره ورکړه نو کفر اوشو؟ چې هغه بيا پلار کره روانه وي.

قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿وَالَّلاتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ﴾.(1)

ربِّ کائنات فرمائي: "هغه زنانه چې تهٔ دَ هغې دَ بد اخلاقئ نه يريږې (بد اخلاقه ده، خاوند ته خبرې ورکرځوي، دَ خاوند خلاف کوي)، نصيحت ورته اوکړئ".

نو چې سړي نهٔ دَ قرآنِ کريم نه خبر وي، نهٔ حديث نه خبر وي، نهٔ چرته جومات له راځي، دا جګړې هم اکثر دَ هغې سړي سره راځي، چې هغهٔ جومات له نهٔ راځي، او نهٔ چرته قرآنِ کريم ته کيښني، دَ ديندار ه سړي نه خو چرته هم ښځه خفه نهٔ شوه، ديندار ه سړي لره داسې اخلاق الله تعالى ورکړي وي چې دَ هغهٔ نه ښځه نهٔ خفه کيږي، رومبنے حکم دا دے، چې: ﴿فَعِظُوهُنَّ﴾.

"نصيحت ورته اوکړئ!"، پهٔ قرآنِ کريم او سنتو دَ نبي ﷺ ئې پوهه کړه.

---

(1) [سورة النساء: 34].

دویم حکم دا دے: ﴿وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ﴾.[1]

"جدا شئ ترې نه په ځائے دَ ارخ لکولو کښې".

ځان ترې نه خفه کړه، دا مطلب نهٔ دے چې: کور ورته پرېږده او تهٔ ترې اوتخته، دا پهٔ شریعت کښې نشته، اکثر چې سړے کور خفه شي، نو سړے وائي: "زهٔ درنه لاړم، تهٔ پوهه شه، او بچي سنبهالول پوهه شه"، دَ کور نه به بهر نهٔ اوځې، کور کښې به ځان خفه کوې؛ دا ځکه چې دَ زنانه زړهٔ ډیر نرم وي چې کله سړے کور کښې ځان خفه کړي، نو ښځې باندې وخت نهٔ تیرېږي، خامخه به هغه دا خپل خاوند رضاء کوي، نو دویم حکم دا شو: ﴿وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ﴾ "چې جدا شئ ترې نه پهٔ ځائے دَ ارخ لکولو کښې".

دریم چې: پهٔ دې هم نهٔ سمیږي نو بیا وهل غواړي، الله رب العزة فرمائي: ﴿وَاضْرِبُوهُنَّ﴾، "اووهئ دوي لره"، خاوند لره الله دَ وهلو اجازت ورکړے دے، دا زیاتے نهٔ دے، الله رب العزة دې زمونږ پهٔ ملک کښې شرعي نظام راولي (آمین!)، اسلامي قانون نشته دے، کهٔ چرې ښځې له دې خپیره ورکړه او تهانې ته لاړه نو بیا خو دې کار خراب کړو، خرچه به هم ورکوې، پلار کره ناسته وي، بیا خو لویه مسئله جوړه شي حالات ډیر زیات خراب دي، اوس خو پکښې لا دَ ښځو حقوق پیدا شول، اوس نور نور خرابیږي، کهٔ چرې اسلامي قانون پهٔ مونږ نافذ شو نو هر څهٔ سم دي، الله وائي:

﴿وَاضْرِبُوهُنَّ﴾. "او ئې وهئ".

نو څنګه وهل؟ یَو خو زمونږ دَ پښتنو وهل دي، دے خو اول غصه کیږي نه او چې غصه شي نو بیا ئې ښځې له لاس مات کړے وي یا ئې ورله سر مات کړے وي، بیا دَ ښځې رونړه راشي او دَ هغې نه لویه دشمني جوړه شي.

حدیث مبارکه کښې راځي: «فَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ».[2]

"وهل ورته ورکړئ خو داسې وهل چې دَ هغې لاس خپې مات نهٔ کړئ".

---

(1) [سورة النساء: 34].

(2) أخرجه مسلم في كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ، برقم: (1218).

دَ هغې اندامونه مات نهٔ کړئ، صرف دَ ادب دپاره، وهل ورکړه، کهٔ چرې ستا تابعداري ئې اوکړه، نو الله تعالی بیا فرمائي: ﴿فَلَا تَبۡغُواْ عَلَيۡهِنَّ سَبِيلًاۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيّٗا كَبِيرٗا﴾.(1)

"نو بیا ئې له لار مهٔ لټوه؛ یقینًا الله تعالی اوچت او لوئي ذات دے".

نو بیا ورته نور څهٔ مهٔ وایه، او کهٔ نهٔ سمیږي، نو بیا طلاق ورکړه، دا دَ شریعت حکم دے.

نو چې واذهٔ کوې، دینداره ښځې سره نکاح اوکړه، تهٔ به دَ هغې خیال ساتې او هغهٔ به ستا خیال ساتي، دَ خاوند ډیر حق دے پخپلې ښځې باندې...

**دَ ښځې حق پخپل خاوند**

یاد ساته! هسې نه چې تهٔ ورته خپل حق یادوې، چې زما درباندې دومره حق دے، او دَ ښځې حقوق دې تول دَ خپو دَ لاندې کړې دي، الله تعالی فرمائي: ﴿وَلَهُنَّ مِثۡلُ ٱلَّذِي عَلَيۡهِنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِ﴾.(2)

"دَ دې زنانؤ دپاره هم حقوق دي پشان دَ هغې چې پهٔ دوي باندې دي پهٔ ښې طریقې سره".

دَ خپلې ښځې به هم خیال ساتې، دا نهٔ چې تهٔ ئې دَ ځناورو پشان ګنړې، نا! نا! هغهٔ هم دَ الله مخلوق دے، الله تا لره پهٔ نکاح باندې درکړې ده، الله تعالی فرمائي: ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِ﴾.(3)

"زندګي ورسره تیروئ پهٔ ښې طریقې باندې".

دَ هغوي دَ خرچې خیال کوه، دَ هغوي دَ جامو او دَ پیزار خیال ساته، دَ هغوي دَ هر څهٔ خیال به تهٔ ساتې؛ ځکه تهٔ ئې خاوند ئې، آخر کښې الله تعالی فرمائي: ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيۡهِنَّ دَرَجَةٞ﴾.(4)

"دَ سړو دپاره پهٔ ښځو باندې مقام او مرتبه ده".

دَ کور مشرت به دَ ښځې نهٔ وي، کور کښې مشرت به دَ سړي وي، الله رب العزة فرمائي: ﴿ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بَعۡضَهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖ وَبِمَآ أَنفَقُواْ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ﴾.(5)

"سړي حاکمان به وي پهٔ ښځو باندې"، ښځه پهٔ خاوند حکم نشي چلولے، خاوند به پهٔ ښځه باندې حکم چلوي، ښځه به خاوند له ادب نهٔ ښائي، خاوند به ښځې له ادب ښائي...

(1) [سورة النساء: 34].
(2) [سورة البقرة: 228].
(3) [سورة النساء: 19].
(4) [سورة البقرة: 228].
(5) [سورة النساء: 34].

**وجه څهٔ ده؟**

(۱) اوله وجه: الله رب العزة فرمائي: ﴿بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾، "دا فضلیت ورله الله تعالی ورکړے دے"، چې الله وائي: ما ورته فضیلت ورکړے دے نو بیا پکښې دَ چا څهٔ کار دے؟

(۲) دویمه وجه: ﴿وَبِمَا أَنفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾، "او پهٔ سبب دَ هغې چې دا خاوندان پهٔ دې خپلو ښځو باندې مال لګوي"، پهٔ دې وجه باندې دَ سړو مقام اوچت دے، نو دَ هغې ښځو به څکه پخپل خاوند حق اوچتیږي چې هغوي چرته پهٔ خاوند باندې مال لګوي، چرته نوکره وي او تنخوا اخلي، او هغه پیسې راوړي او خاوند باندې ئې لګوي، نو هغه به خود پخپل خاوند حکم چلوي، چې کله خاوند پهٔ ښځې مال لګوي نو دَ هغې حق پهٔ خاوند نهٔ اوچتیږي، سړے به پهٔ ښځه باندې مال لګوي، نو دَ ښځې دپاره دا نشته چې هغه دې پخپل خاوند مال اولګوي، دَ مال دَ ګټلو دپاره سړے دے.

سړي له الله ډیر لوئې مقام ورکړے دے، او دَ الله تعالی یو لوئې نعمت دے پهٔ انسان باندې، ما چې کوم آیت وئیلے وو، پهٔ هغې کښې الله تعالی فرمائي: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ﴾.[1]

"کهٔ چرې تاسو یریږئ چې تاسو به انصاف اونهٔ کړے شئ پهٔ باره دَ یتیمانانو جینکو کښې".

دا دَ دورِ جاهلیت رد دے، هغې دور کښې چې به زنانه ګُندې شوې، دَ اسلام نه مخکښې چې زنانه به ګُنده شوه، او دَ هغې یتیمانانې جینکئ به پاتې شوې، نو دَ هغوي به میراث کښې برخه وه نو چې هغهٔ به چا پهٔ نکاح اغسته، نو هغه برخه به هم بل چا اغسته، نو دې خلقو به پهٔ نکاح باندې واغستې، هغه میراث به ئې ترې چل ول کښې اوُوهلو، بیا به ئې ورسره زیاتے کولو، نو الله تعالی دَ هغې رد کوي، فرمائي: کهٔ یریږئ تاسو چې انصاف به اونهٔ کړئ دَ یتیمانانو جینکو سره، نو: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً﴾.[2]

"نکاح اوکړئ دَ هغې زنانو سره چې جائز دي ستاسو دپاره دَ زنانو نه (هغې زنانه سره نکاح اوکړه چې ستا ورسره نکاح جائزه ده)، دوه دوه اوکړئ، درې درې اوکړئ، څلور څلور اوکړئ، کهٔ یریږئ تاسو چې انصاف به اونهٔ کړئ نو بیا دَ یوې زنانه سره نکاح اوکړئ".

پهٔ شریعت کښې دَ امتي دپاره څلورو پورې ښځو سره نکاح کول جائز دي، کهٔ چرې یو سړے انصاف کولے شي نو دوه دې اوکړي، درې دې اوکړي، څلور دې اوکړي، دَ څلورو نه

(1) [سورة آل عمران:3-4].
(2) [سورة آل عمران:3-4].

سیوا نشي کولے، يَو ځائے پۀ نکاح کښې څلورو نه سیوا نشي کولے، پۀ څلورو کښې يوه مره شوه بله دې اوکړي، دَ څلورو نه سیوا نشي ساتلے، خو پۀ شریعت کښې څلور پورې جائز دي، خو دَ پښتنو پۀ قانون کښې دَ يَوې نه سیوا جائز نۀ دي، دا هم زیاتے دے.

**دَ مولانا اشرف علي تهانوي ؒ قول**

مولانا اشرف علي تهانوي ؒ ذکر کړې دي: "دویمې نکاح ته سپک کتل دا کفر دے".
هان! کۀ يَو سړے ورته پۀ دې نظر باندې بد ګوري چې بیا به انصاف نشم کولے نو خیر دے، دا تپوس څوک نۀ کوي چې تۀ به انصاف نشې کولے نو دا دویمه ښځه ولې کوې؟ او بله خبره دا چې پۀ يَو ښځه باندې دویمه ښځه څوک ورکوي هم نه، او نۀ ورله مور پلار دویمه ښځه کوي، دا ګناه ده. څلورو پورې ښځې پۀ شریعت کښې جائز دي؛ ځکه الله تعالی وائي: "دوه دوه اوکړئ، درې درې اوکړئ او څلور څلور اوکړئ، کۀ چرې تاسو یریږئ چې بیا به انصاف اونۀ کړئ نو بیا يَوه ښځه اوکړئ"، چې انصاف نشې کولے نو بیا يَوه اوکړه.

**انصاف نۀ کول**

خو دا مسئله ده چې دَ چا دوه ښځې دي، یا درې دي یا څلور دي، یعني دَ يَوې نه سیوا دي او دَ هغوي پۀ مینځ کښې انصاف نۀ کوي، نو حدیث مبارکه کښې راځي: دغه سړے به دَ قیامت پۀ ورځ راشي، او «وَشِقُّهُ سَاقِطٌ».(1)

"او پۀ داسې حال کښې چې پۀ دې يَو طرف بِه فالج وهلے وي".
نن صبا دا يَو لوئي مصیبت دے، چې دویم وادۀ اوکړي نو دَ هغې ښځې سره مینه شروع کړي او هغۀ رومبنۍ ښځه پرېږدي، دَ هغې پرواه نۀ ساتي، نو دا یاد ساته! نبي ﷺ فرمائي: صبا دَ قیامت پۀ ورځ به دې دا يَو طرف فالج وهلے وي، ټول خلق به دغه کس پیژني چې دا هغۀ سړے دے چې دوه ښځې ئې وې، او دَ هغوي پۀ مینځ کښې ئې انصاف نۀ وو کړے، نو انصاف به کوي.
پۀ پیغمبر ﷺ باندې دا نۀ وو لازم بیا هم پیغمبر ﷺ تقسیم کړے دے، او امتي باندې لازم دي چې دے به انصاف کوي، او تقسیم به کوي، کۀ انصاف نشې کولے نو يَوه اوکړه: ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾.(2)

"او یا نکاح اوکړئ دَ هغې چا سره چې مالکان دې ښې لاسونه ستاسو".
اصیلې ښځې سره نکاح نشې کولے نو وینځې سره نکاح اوکړه، ﴿ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَلَّا تَعُولُوا﴾،

(1) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب في التسوية بين الضرائر، برقم: (1140).
(2) [سورة آل عمران:3-4].

الله وائي: "دا نزدې د، چې تاسو به بيا زياتے نهٔ کوئ" ﴿وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً﴾.[1]

"ورکړئ زنانو له دَ هغوي مهرونه پهٔ خوشحالئ باندې".

الله تعالى وائي: دَ ښځې حق دے پخپل خاوند باندې چې کله وادهٔ دې اوکړو نو خپلې ښځې له به مهر ورکوې.

خو ډير خلق مهر نهٔ پيژني، او ډيرو خلقو صرف دَ مهر نوم اوريدلے دے، خو نور خبر نهٔ دي چې مهر څهٔ ته وائي؟ يَو سړي خپلې ښځې ته اووئيل: ما ته دې مهر بخښلے دے؟ نو ښځې ورته اووئيل: زهٔ به درته مهر اوبخښم خو اول خو ما پوهه کړه: چې دا مهر څهٔ ته وائي؟ نو خاوند ورته وائي: اول راته اووايه چې مهر دې راته بخښلے دے؟ بيا به دې روستو پوهه کړم، نو ښځې ورته اووئيل: چې ما درته مهر بخښلے دے، نو خاوند ورته اووئيل: چې مهر دي... ته وائي، نو ښځې ورته اووئيل: زهٔ درته خپله حصه نهٔ بخښم، نو اول مهر پيژندل پکار دي، مهر ديته وائي: چې تهٔ کوم عِوض او بدله ورکوې ښځې له دَ ښځې دَ عزت پهٔ بدله کښې، او بغير دَ مهر نه خو نکاح نهٔ کيږي، دا مهر ورکول پهٔ تا باندې لازم دي.

نو بيا کهٔ دوي کوم مهر مقرر کړے دے هغه به ورکوي، او کهٔ اول نه ئې مهر نهٔ دے مقرر کړے نو روستو به بيا مهر مثل ورکوي، دَ مهر مثل مطلب دا دے: چې دَ دې ناوې چې کومه خور يا ترور وغيره له څومره مهر ورکړے شوي وي هغه هومره مهر ديته ورکول.

دا بغير دَ مهر نه نکاح کول صرف دَ پيغمبر ﷺ خصوصيت وو چې کلهٔ يَو زنانه پيغمبر ﷺ ته ځان اوبخښي نو بيا هغهٔ زنانه دَ پيغمبر ﷺ لره بغير دَ مهر نه جائز وه، خو کهٔ امتي له يَوه زنانه اووائي: چې ما تا له ځان دربخښلے دے، نو بيا به هم مهر مينځ کښې مقررَوي؛ ځکه بغير دَ مهر نکاح کول دَ امتي دپاره بالکل نشته، او مهر به دغه ورکوي، کله چې نکاح تړلے کيږي نو هغې وخت کښې ورته استاذ وائي: پهٔ مقابله دَ دومره مهر کښې تا دَ فلانکي لور قبوله کړې وه او قبوله کړې دې ده، نو مهر کښې به ئې يا کوټه ليکلې وي او يا به ئې پکښې سرهٔ زر ليکلي وي، يا به نقدې پيسې وي، يا به نور څهٔ شے وي، دغه څيزونه دَ دې ښځې حق دے پخپل خاوند باندې، دغه څيزونه به دې ښځې ته حواله کوي او دا به دَ دې زنانه پهٔ ملکيت کښې وي.

مهر پهٔ دوه قسمه دے: (۱) يَو: مهر مؤَجَّل، (۲) دويم: مهر معجَّل، دَ مهرِ مؤَجَّل مطلب دا دے: چې موجوده وخت کښې درسره نشته دے، نو دا به پهٔ تا قرض وي بيا به ئې ورکوې، خو دا

(1) [سورة آل عمران:3-4].

دَ دې ښځې حق دے پۀ تا باندې؛ ځکه دَ دې مهر پۀ وجه تا نکاح کړې ده، نو دا به ورله ورکوې. او مهرِ معجل دیته وائي: چې هغه وخت کښې ورته دَ مهر آدائیګي اوکړې.

اوس دا مهرِ مؤجّل چې دے نو دا پۀ دۀ قرض دے، خامخه به دغه اداء کوي او کۀ اداء ئې نۀ کړو نو حدیث مبارکه کښې سخت وعید راغلے: حدیث کښې راځي نبي ﷺ فرمائي: "کوم سړے چې نکاح اوکړي او مهر مقرر شوے دے، او دۀ خپلې ښځې له مهر ورنۀ کړو (پۀ دې سوچ ئې ورنۀ کړو چې دَ دې ښځې پۀ ما څۀ حق نشته)، نو نبي ﷺ فرمائي: «لَقِيَ اللهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَهُوَ زَانٍ».(1)

دا سړے به دَ قیامت پۀ ورځ الله تعالی سره میلاؤ شي او دَ دۀ دَ نکاح چې څومره وخت شوے دے نو دا به پۀ دۀ باندې زنا حسابیږي"، نو دَ حدیث مطلب دا شو: چې نکاح شوې ده او مهر مقرر شوے دے او دۀ بیا هم دې خپلې ښځې له مهر ورنۀ کړو او دَ دۀ خیال دا وو چې زۀ ورله څۀ هم نۀ ورکوم او دَ دې پۀ ما باندې هیڅ حق نشته، او دَ ښځې مهر پۀ ظلم سره خوري، ښځې سره زیاتے کوي، چې مهر ورله نۀ ورکوم نو داسې کس به صبا دَ قیامت پۀ ورځ دَ الله تعالی سره میلاؤ شي پۀ داسې حال کښې چې دا څومره وخت چې دَ دۀ دغه نکاح کښې شوے نو دا به دَ قیامت پۀ ورځ پۀ دۀ باندې زنا حسابیږي، نو دا دومره لویه ګناه ده.

هاں! کۀ یَو سړے دے وس ئې نۀ کیږي، دَ ښځې ورباندې دَ مهر قرض دے او دے مړ شو نو بس چې څنګه ورباندې دَ نورو خلقو قرض پاتې شو نو دغه شان ورباندې دَ ښځې قرض هم پاتې شو، کۀ ښځې درته پخپله خوښه دَ مرګ نه روستو اوبخښو نو صحیح ده، کۀ نۀ ئې بخښي نو هم دا دَ دې ښځې حق دے، دا به ورته ورکوي دَ خاوند دَ مال نه.

او کۀ دنیا کښې ئې درته دغه مهر معاف کړو، نو الله تعالی فرمائي: ﴿فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَرِيئًا﴾،(2) "کۀ چرته پۀ خوشحالئ سره دوي تاسو ته معاف کړي څۀ څیز دَ مهر نه نو خورئ دې لره خوش مزه او ښۀ تیریدونکي"، نو چې مهر ئې درته معاف کړو نو بیا ئې پۀ ښۀ خوند او مزې سره خورئ، بیا درباندې ورکول نشته دے.

الله تعالی دې پۀ دې باندې مونږ له دَ عمل کولو توفیق نصیب کړي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

٥

(1) أخرجه الطبراني في "المعجم الصغير"، باب الألف من اسمه أحمد، برقم: (111).
(2) [سورة آل عمران:3-4].

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

وَإِنۡ خِفۡتُمۡ أَلَّا تُقۡسِطُواْ فِي ٱلۡيَتَٰمَىٰ فَٱنكِحُواْ مَا طَابَ لَكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ مَثۡنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ

(سورة النساء: 3)

# موضوع

# دَ وادهٔ رسم او رواج

بتاریخ: 2007-11-04

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ وادهٔ رسم او رواج

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامٰى فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ذٰلِكَ أَدْنٰى أَلَّا تَعُولُوا * وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيْئًا مَرِيْئًا﴾.(1)

وقال النبي ﷺ: «اَلنِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِي، فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي».(2)

قابلِ قدر، معزّز علماء کرام او زما عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړو! تفصيلًا بيانونه به زما نه روستو علماء کرام کوي، مونږ خو دا وئيل: چې مونږ به صرف بيانونه واورو، زمونږ مشران حضرت مولانا شير حسن صاحب مد ظله العالي او دارنګې زمونږ معزّز عالِمِ دين حضرت مولانا نور الحق صاحب مد ظله العالي هغوي به بيانات اوکړي، دَ داسې علماء کرامو پهٔ مخکښې زما دَ ناچيز بنده بيان به څهٔ حيثيت اولري، خو دا دَ دې ملګرو مينه او تمنّٰى وه چې دَ دوي دَ خوشحالولو دپاره يَو څو خبرې اوکړو، دا مونږ او تاسو چې پهٔ دې جامع مسجد کښې راجمع شوي يُو نو دَ دې اجتماع سببِ انعقاد تاسو ټولو ته معلوم دے، چې زمونږ يَو رور هغه وادهٔ کړے دے، نو دَ هغې پهٔ سلسله کښې دا پروګرام جوړ شوے دے.

---

(1) [سورة آل عمران:3-4].

(2) هٰذان حديثان أولهما أخرجه ابن ماجة في كتاب النكاح، باب ما جاء في فضل النكاح، برقم: (1846)، وثانيهما أخرجه البخاري في كتاب النكاح، باب الترغيب في النكاح، برقم: (5063).

وادهٔ سنت دَ جناب محمد مصطفی ﷺ دے، او دا دَ انسان پهٔ ژوند کښې يَوه لويه خوشحالي ده، چې پهٔ انسان باندې راشي، بلکه دَ هغهٔ ټول خپل خپلوان، رشته داران خوشحاله وي، شيطان پهٔ دوو موقعو کښې ډير کوشش کوي: يَو موقع دَ خوشحالئ، ښادئ او وادهٔ کښې، چې شيطان وائي: "راشه دے اوس پهٔ ځان نهٔ پوهيږي پهٔ دهٔ باندې خوشحالي راغلې ده، نو راشه پهٔ دې وخت کښې پهٔ دهٔ باندې خپل کار اوکړه"، کلهٔ به ورباندې ډمان راولي نو ډمان به ګډوي او کله به ورباندې ټي وي او وي سي آر راوړي چې دا خو خوشحالي ده، دا خو چرته کله کله راځي، کله به ورباندې ډزې کوي، پهٔ دهٔ خو خوشحالي ده پهٔ ځان نهٔ پوهيږي خو دَ بل پهٔ کور غم نازل کړي، چرته پهٔ ډزو بل څوک اولګي نو هغوي کره غم جوړ شي، دا دَ شيطان يَو لوئي جال دے، چې نن پهٔ دې جال کښې مونږ او تاسو راګير يُو، دويمه موقع دَ غم ده چې پهٔ دې کښې شيطان ډير زور لګوي، او دا دويم جال دَ شيطان دے، چې کله غم راشي نو بيا مونږ وايُو: "يره! زړهٔ خفه دے، صحيح ده چې دا کار جائز نهٔ دے خو اوس څهٔ اوکړو؟"، هغې وخت کښې مونږ او تاسو له شيطان دهوکې راکوي، او کله يَوه وسوسه رااچوي او کله بله.

**شيطانان پهٔ دوه قسمه دي**

دا خبره هم پيژندل غواړي: چې شيطانان پهٔ دوه قسمه دي: (۱) يَو جني شيطانان دي، او (۲) دويم انسي شيطانان دي.

(۱) **جني شيطان:** هغه وي چې ښکاري نه، خو انسانانو ته وسوسې اچوي، نو دَ دغې شيطانانو نه دَ حفاظت دپاره دَ الله تعالی ذکر دے، چې کله تهٔ اووائې: "أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ" نو هغه ستا نه روستو شي او کهٔ تهٔ هغه سره مقابله کوې نو پهٔ ټوپک او قوت باندې تهٔ دَ هغهٔ سره مقابله نشې کولے، نو دَ هغهٔ سره مقابله نهٔ کيږي بغير دَ دې نه چې تهٔ الله پورې فناه اوغواړې.

**دَ تفسير "قرطبي" قول**

امام قرطبي رحمه الله پهٔ تفسير "قرطبي" کښې ذکر کړي دي: "يَو استاذ خپل شاګرد ته اووئيل: چې يَو سپے تا چيچي نو تهٔ به څهٔ کوې؟ نو هغه ورته وائي: أُجاهِدُ، زهٔ به ورسره مجاهده کوم، دَ ځان نه به ئې شړم، نو ورته وائي: کهٔ چرې هغهٔ سپے دې نهٔ پريږدي، تا پسې درروان دے، نو بيا به څهٔ کوې؟ ورته وائي: بسْ زهٔ به مجاهده کوم او هغه به دَ ځان نه شړم، وائي: چې ته ئې شړې او

هغه نۀ ځي نو بيا به آخر څۀ کوي؟ نو ورته وائي: چې يَو آسان کار درته نۀ ښايم؟ چې دَ هغې سپي مالک ته اووائي: "چې دا سپے دې رانه اونيسه!"، نو هغه به درنه خپل سپے اونيسي، چې شيطان تا پسې شي نو کۀ تۀ هغه سره مقابله کوې، نو ترڅو پورې چې تۀ دَ هغۀ سره مقابله کول غواړې نو بس وايه: أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، الله! دَ دې شيطان نه مې خلاص کړې، نو الله به درته دَ شيطان نه پناه درکړي؛ ځکه چې کۀ تۀ شيطان سره مقابله کوې نو شيطان خو تا وينې او تۀ شيطان نشې ليدلے نو مقابله ورسره ګرانه ده، نو هغه ذات ته ئې حواله کړه چې کوم ذات شيطان وينې او.شيطان هغه ذات لره نشي ليدلے، چې هغه يَو دَ الله تعالی ذات دے؛ نو پۀ دې وجه الله! ته وايه: تۀ راته دَ دۀ نه پناهي راکړې"، نو پۀ دغه وخت کښې يَو جني شيطان دے، دَ هغه نه خو به پۀ "أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ" ځان خلاص کړې.

(۲) **دويم شيطان:** هغه "إنسي شيطان" دے، دا انسي شيطان پۀ شکل دَ انسان وي، ستا به دوست وي، ستا به ملګرے وي او ستا به ګاونډي وي، هغه به تا له پۀ دې موقعو کښې کار خرابوي، کله به درته وائي: "تې وي راوړل غواړي او کله به وائي: ډمان راوستل غواړي"، کله به پۀ وادۀ کښې ډزې کوي، نو داسې شيطان دپاره کۀ دا ټول قرآن ختم کړې نو هغه تا نۀ پرېږدي، دَ داسې شيطان نه آمان پکار دے، او دَ دۀ سره پۀ خبرو مقابله پکار ده، چې زۀ ستا دا کار نۀ منم. بهر حال وادۀ دَ نبي ﷺ سنت دے، او خوند هله کوي چې پۀ سنت طريقه باندې اوشي، او دَ شريعت برابر اوشي.

**دَ نورو قومونو ودونه**

هندوان هم ودونه کوي، سيکان هم ودونه کوي، نور غير مذهبه قومونه هم ودونه کوي، مسلمان هم ودونه کوي، خو پۀ دې ټولو ودونو کښې به فرق وي، دَ مسلمانانو ودونه به دَ شريعت مطابق وي او دَ هغوي ودونه دَ خپلې مرضئ مطابق وي، ليکن نن افسوس دے پۀ حال دَ مسلمان چې ځان ته مسلمان وائي او ښادي ئې ټوله دَ هندوانو او انګريزانو پۀ طريقه ده، الله رب العزة دې زمونږ او ستاسو پۀ حال رحم اوکړي (آمين!)، زمونږ اکثر ودونه دَ هندوانو پۀ طريقه دي، يَو سنت خو ژوندے شي خو پۀ زرګونو فرض دَ خپو لاندې شي.

**دَ نظر حفاظت**

دَ نارينۀ دپاره دَ نظر حفاظت ضروري دے، ښځو دپاره هم دَ خپل نظر حفاظت ضروري

دے؛ ځکه دا دَ قرآنِ کریم حکم دے، نارینه دې پردو ښځو ته نهٔ ګوري؛ ځکه دا کتل حرام او ناروا دي او زنانه به پردو سړو ته نهٔ ګوري؛ ځکه دا کتل حرام او ناروا دي، نو کله چې داسې موقع راشي نو مونږ نه دَ ایمان هغه جذبه هم لاړه شي او دا لا څهٔ دَ غیرت هغه جذبه هم رانه لاړه شي.

## دَ قرآنِ کریم حکم

دَ قرآنِ کریم حکم دا دے: ﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾.(1)

"اے زما حبیبه! اعلان اوکړه مومنانو سړو ته چې اے مؤمنانو! خپل نظرونه ښکته کړئ (پردو ښځو ته مهٔ ګورئ دَ خپلو نظرونو حفاظت اوکړئ)، او دَ خپلو عورتونو حفاظت اوکړئ".

دغه شان خطاب مؤمنانو ښځو ته هم دے: ﴿وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾.(2)

"اعلان اوکړه! مؤمنانو زنانؤ ته چې اے مؤمنانو زنانؤ! خپل نظرونه ښکته کړئ (پردو سړو ته مهٔ ګورئ) او دَ خپلو عورتونو حفاظت اوکړئ".

دا دَ قرآنِ کریم حکم دے، پرده فرض ده او وادهٔ پهٔ بعضو وختونو کښې فرض او واجب دے، لیکن علماء کرام ذکر کوي: چې وادهٔ پهٔ عامو اوقاتو کښې سنتِ مؤکده دے، نو اوس یَو طرف ته سنت ژوندے کوي چې وادهٔ دے او بل طرف ته دې فرض اوبائیللو، زما او ستاسو زنانه بهر لاړه، پردې وادهٔ له لاړه، او بیا چې کله دوي ډولۍ له ځي نو هغه حال خو بیا ټولو خلقو ته معلوم دے، چې بیا زما او ستا دَ زنانؤ حال څهٔ وي؟ چې پهٔ کوم ګاډي کښې ناستې وي او ښهٔ به ئې ځان برابر کړے وي، ښهٔ به ئې ځان سینګار کړے وي، پرده ختمه ده! چې چرته بازار راشي، هغه ځائے کښې هغوي پهٔ ګډاګانو شروع شي، هغه حکم دَ پردې چرته لاړو؟ چې الله وائي: ﴿وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾.(3)

بل ځائے کښې الله تعالی فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ﴾.(4)

"اے محبوبه پیغمبره ﷺ! اووایه خپلو بیبیانو او خپلو لوریانو ته دې او دَ تمامو مؤمنانو ښځو ته

(1) [سورة النور: 30].

(2) [سورة النور: 31].

(3) [سورة النور: 31].

(4) [سورة الأحزاب: 59].

چې: په ځان باندې غټې غټې څادرې راواچوئ (غټ غټ پړونړي رواچوئ چې پردو خلقو ته دې ځان نه ښکاره کوي)".

**دَ نبي ﷺ بيبيانې دَامت ميندې دي**

دَ نبي ﷺ بيبيانې دَ امت ميندې دي؛ ځکه الله تعالی فرمائي: ﴿النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ﴾.[1]

"محمد رسول الله ﷺ ډير مهربانه دے په مومنانو باندې دَ هغوي دَ نفسونو نه هم زيات او بيبيانې دَ نبي ﷺ دَ امت ميندې دي".

نو دَ نبي ﷺ بيبيانې زمونږ ميندې دي خو ليکن هغوي ته حکم وو: چې اے بيبيانو ځان باندې غټې غټې څادرې راواچوئ، دارنګې لوريانې دَ نبي ﷺ زمونږ او ستاسو روحاني خويندې دي خو هغوي ته حکم وو: چې ځانونو باندې غټې غټې څادرې راواچوئ، نو عبرت حاصلول پکار دي، مونږ او تاسو له:

**عبرت اغستل**

اے زما مسلمانانو رونړو! چې دَ نبي ﷺ بيبيانو ته او دَ هغهٔ لوريانو ته حکم دے نو بله کومه مومنه دَ دې حکم نه بچ کيدے شي؟ بلکه هغه خو لا هغه دور وو چې نبي ﷺ دَ هغه دور باره کښې فرمائي: «خَيْرُكُمْ قَرْنِي، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ».[2]

"په تمامو پيړو کښې بهتره پيړئ زما پيړئ ده او بيا هغه کسان بهتر دي چې دوي سره يو ځائے راځي او بيا هغه کسان چې دوي پسې راځي".

نو په تمامو پيړو کښې بهتره پيړئ هغه ده چې محمد رسول الله ﷺ پکښې وو، هغه خلق بهتر وو چې دَ الله پيغمبر ﷺ پکښې موجود وو او هغه کلے چې دَ امن والا کلے دے، او هغه کلے چې قرآنِ کريم پکښې نازل شوے دے، نو هغه ځائے کښې حکم دے چې په ځان باندې غټې څادرې واچوئ، نو زما او ستاسو زنانۀ ته حکم دے او کهٔ نا؟ چې دا دَ فتنو دور دے او دا نهايتې دَ فتنو دور دے، نو مونږ او تاسو خوشحاله يُو چې وادهٔ مو اوکړو او په سنتو

(1) [سورة الأحزاب: 6].
(2) أخرجه البخاري في كتاب الشهادات، باب لا يشهد على شهادة جور إذا شهد، برقم: (2651).

مو عمل اوکړو، خو فرض دې باثیلل، کله زۀ دې ملګرو ته وایم: چې لږ سوچ پکار دے چې سنت کتو خو فرض پرې رانه ځي:

**مثال**

بعضې داسې سړے وي چې ډیر عابد وي چې واړۀ بول اوکړي نو استنجاء خو دغه وخت کښې سنت یا مستحب وي او دۀ دپاره دَ پردې ځائے نۀ میلاویږي نو دے به خلقو ته مخامخ کښیني او استنجاء به شروع کړي، نو دا ساده ګل سنت ګتي خو بل طرف ته دۀ فرض باثیلل چې عورت ئې ښکاري، دَ خلقو مخکښې استنجاء کوي، نو دېخوا خو ما او تا وادۀ کوو، سنت دَ پیغمبر ﷺ ژوندي کوو لیکن بل طرف ته رانه فرض لاړل چې دَ میندو خویندو پردې مو ختمې شوې.

بعضې خلق وائي: "دا مُلیان تنګ نظره دي، پۀ دې کتو کښې خو څۀ کمیږي نه؟ څۀ چل اوشو، چې یَو بل اووینو ډیره موده پس؟"، ورته وایه: دا چل اوشو چې دَ الله حکم ماتیږي، او دَ الله خو پۀ هر کار کښې حکمت دے:

كُلُّ الْحَوَادِثِ مَبْدَأُهَا مِنَ النَّظْرِ وَمَعْظَمُ النَّارِ مِنْ مُسْتَصْغَرِ الشَّرَرِ

"ټول مصیبتونه خو رومبے دَ نظر نه شروع کیږي او دا غټ اُور هم دَ ورو کې سکروټې نه لګي".

نو ټولې خبرې خو دَ نظر نه روستو راځي، چې یَو هلک او یَو جینۍ یَو بل لیدلي نۀ وي نو هغوي به دَ یَو بل سره تعلق دَ کوم ځائے نه قائم کړي؟ تمام مصیبتونه دَ هغې شروع دَ نظر نه کیږي، او مثال ئې داسې دے لکه اوګوره! دا دومره لوي لوي لمبې دَ اُور چې خیژي دا دَ ورو کې بسَرکي نه لګي؛ نو ځکه دا رومبے نظر الله تعالی بند کړو چې اول شروع دَ دې نظرَ نه کیږي؛ دَ دې وجې نه روایاتو کښې راځي: "شیطان وائي: دا نظر زما دَ غشو نه یَو غشے دے اول ښکار زۀ پۀ دې باندې کوم"، نو دا دَ ناپوهه خلقو خبرې دي چې پۀ کتلو څۀ کیږي؟ دا تعلقات خو دَ نظر نه روستو جوړیږي، کۀ پۀ نظر څۀ نۀ کیدے نو الله به بیا نۀ بندولے، هغه بیبیانې چې هغوي ازواج النبي ﷺ دي نو دَ هغۀ بیبیانو باره کښې الله تعالی فرمائي: ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ﴾،[1] "کله چې تاسو دَ نبي ﷺ دَ بیبیانو نه څۀ څیز غواړئ (نو ښکه به ئې غواړې؟ هغه خو زمونږ او ستاسو میندې دي نو پکار ده چې مخامخ ئې ترې نه غواړو)، نا! نا! الله

(1) [سورة الأحزاب: 53].

فرمائي: پردې نه اُخوا به ئې ترې نه غواړئ، دَ پردې نه بهر به ولاړ يئ". :،

کله کله الله تعالی دَ نبي ﷺ بيبيانو ته وائي: ﴿يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ لَسۡتُنَّ كَأَحَدٖ مِّنَ ٱلنِّسَآءِ إِنِ ٱتَّقَيۡتُنَّ فَلَا تَخۡضَعۡنَ بِٱلۡقَوۡلِ فَيَطۡمَعَ ٱلَّذِي فِي قَلۡبِهِۦ مَرَضٞ وَقُلۡنَ قَوۡلٗا مَّعۡرُوفٗا﴾.[1]

"اے دَ پيغمبر ﷺ بيبيانو! تاسو دُ نورو زنانو پشان کورے نهٔ يئ، کهٔ چرې تاسو تقوٰی غواړئ (پرهيزکاري غواړئ، ځان دَ ګناه نه بچ کول غواړئ) نو نرمې خبرې مهٔ کوئ، (ولې؟) هسې نه چې دَ مرضي سړي طمع پيدا شي".

دومره پورې شريعت احتياط کوي، نو زمونږ او ستاسو دا ودونه څنګه دي؟ دَ پردې ختمول، پهٔ هغه ورځ دَ پردې چهتې وي، او ډنګ تکور، کانې بجانې دا ښکښې عام وي، دَ هغې خو ښکښې تپوس مهٔ کوه، ښکار دا ده چې وادهٔ کوو نو چې دا دَ شريعت پهٔ طريقه باندې اوکړو.

**دَشريعت طريقه**

دَ شريعت طريقه زده کول غواړې، چې دَ شريعت طريقه څهٔ ده؟ اول طريقه دا ده: چې وادهٔ کوئ نو څنګه به ئې کوئ؟ کوم ځائے کښې به کوئ؟ چا سره به وادهٔ کوئ؟ پهٔ څهٔ طريقه باندې به ئې کوئ؟

وادهٔ چې کوئ نو حديث پاک کښې راځي: پيغمبر کريم ﷺ فرمائي: «تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ: لِمَالِهَا، وَلِحَسَبِهَا، وَلِجَمَالِهَا، وَلِدِينِهَا، فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ».[2]

"ښځه دَ څلورو وجهو نه پهٔ نکاح کولے شي: يَو دَ مال دَ وجې نه، دويم دَ حسب او نسب دَ وجې نه، دريم دَ ښائست او جمال دَ وجې نه او څلورم دَ دين دَ وجې نه، نو تهٔ کاميابي حاصله کړه پهٔ دينداره باندې، لاسونه دې خاورې شه!".

نو کهٔ يَو زنانه کښې دا څلور واړه صفتونه دي نو دغه خو بيا ډيره ښه ده، خو کهٔ چرته يَو زنانه داسې نهٔ ميلاويده، ښائسته ده خو مشرکه ده، يا بدعتنړه ده، ښائسته ده خو بدعمله ده، ډيره زياته مالداره ده، ليکن عمل ئې ښهٔ نهٔ دے، مشرکه ده، عقيده ئې خرابه ده، نو بيا به څهٔ کوې؟ نو نبي ﷺ فرمائي: «فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ» "بيا پهٔ نکاح کولو دَ دينداره ښځه باندې خپل ځان کامياب

---

(1) [سورة الأحزاب: 32].
(2) أخرجه البخاري في كتاب النكاح، باب الأكفاء في الدين، برقم: (5090)، ومسلم في كتاب النكاح، باب استحباب نكاح ذات الدين، برقم: (1466)، واللفظ له.

کړه، لاس دې خاورو کښې ککړ شه"، محدثین وائي: په دې کښې تحضیض (تیزي ده) دے، بیا نورې ښځې پرېږدوه، بیا دغه مال او دولت او نسب پرېږدوه، دَ کمزوري نسب والا دې وي، توره دې وي خو چې دینداره وي نو دَ هغې سره نکاح اوکړه.

هسې نه چې وادهٔ اوکړې او دَ مشرکې ښځې سره نکاح اوکړې نو تهٔ به سحر مزدورئ له اوځې او هغه به پهٔ زیارتونو باندې کرځي، تهٔ به وائې: یا الله! مدد، نو هغه به وائي: یاپیره بابا! رامدد، نو بیا چرته کوزاره کیږي؟ دا یاد ساتئ! ښځه دَ خاوند دَ کور مشره ده، دَ خاوند دَ کور حفاظت به کوي، دَ بچو حفاظت به کوي، نو چې دَ مشرکې ښځې سره دې نکاح اوکړه، نو مال به دې ټول پهٔ غلطو طریقو باندې لګي، دَ بچو تربیت پهٔ دې نهٔ کیږي، ټول کور به دې برباد شي.

## دَ شریعت پهٔ حکم عمل

کهٔ مونږ او تاسو دَ شریعت پهٔ حکم باندې عمل اوکړو نو هر څهٔ سم دي، پهٔ شریعت کښې پردۍ ښځې ته کتل حرام دي، او کهٔ دې اوکتل نو ګناه کبیره ده، لیکن هغه زنانه چې ستا ورسره دَ وادهٔ اراده ده، هغې ته کتل جائز دي؛ ځکه پهٔ دې باندې محدثین باب قائموي: "بَابُ النَّظَرِ إِلى الْمَخْطُوْبَةِ".

"باب دے پهٔ بیان دَ دې کښې چې کومې ښځې سره ستا دَ نکاح اراده ده هغې ته کتلے شي"، ځکه دا خو دَ یوې ورځې خبره نهٔ ده، دا خو دَ ټول عمر خبره ده، نو چرته دَ مشرکې ښځې سره نکاح اونهٔ کړې، بیا به ورسره څهٔ کوې؟ چې نکاح کوې نو دَ دینداري زنانه سره ئې اوکړه.

## دَ وادهٔ طریقه

بیا چې کوېږدن اوشوه نو چې وادهٔ کوي نو پهٔ څهٔ طریقه به ئې کوې؟ بهتره طریقه دا ده: "چې دَ شپې ډولۍ راوړه او چې ډولۍ راوړې نو یَو څو زنانه او یَو څو سړي بوځه، ډیر خلق مهٔ بوځه، چې شپه تیره شي نو سحر خلقو له ډوډۍ ورکړه"، دا سنت طریقه ده، او زمونږ او ستاسو چې ودونه وي نو دَ یَو هفتې نه مخکښې به ډنک ټکور شروع وي، او دَ وادهٔ پهٔ ورځ خو نهٔ دَ کادو شمیر کیږي او نهٔ دَ زنانو، سړي ښځو ته کوري او ښځې سړو ته کوري دا ټول کارونه خلاف شرع وي، او دا زمونږ پهٔ ودونو کښې کیږي! او پنجاب طرف ته خو ودونه پهٔ شادي حالونو کښې کیږي نو پهٔ هغې کښې چې کوم ناروا کارونه کیږي نو دَ هغې نه دې الله تعالی ټول مسلمانان اوساتي! حدیثِ مبارکه کښې راځي: «إِنَّ

أَعْظَمَ النِّكَاحِ بَرَكَةً أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً».[1]

"پهٔ تمامو نکاحونو کښې بهترینه نکاح هغه ده چې هغې کښې دا دومره تکلُّفات نهٔ وي او چې دا ډير تکلفات پکښې وي نو هغې کښې خير او برکت نهٔ وي".

**دَ وادهٔ نه روستو زندګي**

چې وادهٔ دې پهٔ سنت طريقه اوکړو نو بيا روستو زندګي به څنګه تيرَوئ؟ ښځهٔ بهِ دَ خاوند دَ حقوقو خيال ساتي او خاوند به دَ ښځې دَ حقوقو خيال ساتي؛ ځکه قرآنِ کريم کښې الله رب العزة فرمائي: "دَ خاوند پهٔ ښځه باندې حقوق دي او دَ ښځې پهٔ خاوند باندې حقوق دي".

**دَ خاوند حق**

پهٔ ښځه باندې دَ خاوند دومره حق دے چې حديث مبارکه کښې راځي: «لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لأَحَدٍ لأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا».[2]

"کهٔ ما چا ته حکم کولو چې چا ته سجده اوکړئ، نو زنانوُ ته به مې حکم کړے وو چې خپلو خاوندانو ته سجده کوئ"؛ ځکه دَ خاوند دومره لوئي حق دے پخپله ښځه باندې، نو دَ الله نه علاوه بل چا ته سجده کول جائز نهٔ ده نو ښځه به هم خپل خاوند ته سجده نهٔ کوي.

حديث کښې راځي: "چې کهٔ خاوند خپلې ښځې ته اووائي: چې دا ګټې دَ دې سپين غر نه واخله او زيَړ غر ته ئې يَوسه، او دَ زيَړ نه ئې واخله هغه تور غر ته ئې يوسه نو ښځې له پکار دي چې دغه حکم اومني"، دومره پورې دَ خاوند حق دے پخپلې ښځې باندې.

خو بل طرف ته شريعت او اسلام خاوند ته هم تعليمورکوي چې تهٔ به هم داسې نهٔ کوې چې تهٔ وائې: "زما وربانديې دومره دومره حقوق دي..." او هغه غريبه دې داسې زوَرَنده کړې ده، تهٔ به هم دَ هغې خيال ساتې: ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾.[3]

"دَ دې ښځو حقونه دي پشان دَ هغې باندې چې پهٔ دوي باندې دي پهٔ ښې طريقې سره".

لکه څنګه چې دَ خاوند حق دے پهٔ ښځه باندې نو دغه شان دَ ښځې هم حقوق دي پخپلو

(1) أخرجه البيهقي في "شعب الإيمان"، برقم: (6146).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب ماجاء في حق الزوج على المرءة، برقم: (1159)، واللفظ له، وأبوداؤد في كتاب النكاح، باب في حق الزوج على المرءة، برقم: (2140).

(3) [سورة البقرة: 228].

خاوندانو باندې، نو دَ دوارو په يو بل باندې حقوق شته، خو دا حقوق څنګه دي؟

نو دا حقوق دَ شريعت دَ حکم دَ لاندې دي: ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾.[1]

"دَ سړو دپاره په دې ښځو باندې غوره والے دے".

دَ سړو مقام پرې الله اوچت کړے دے، هسې نه چې ښځه بيا دَ سړي سره ځان برابروي او په خاوند باندې حکمونه چلوي، داسې به نۀ وي.

**مشري دَ سړي ده**

قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنْفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾.[2]

"سړي حاکمان (مشران) دي په زنانو باندې په سبب دَ هغې چې الله غوره والے ورکړے دے بعضې دَ دوي ته په بعضې باندې...".

دا ولې دا غوره والے ورله الله ورکړے دے؟ نو دا دَ الله فيصله ده څوک پکښې څۀ نشي وئيلے ، دويم دا: ﴿وَبِمَا أَنْفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ﴾ "(سړے ځکه غوره دے)؛ چې سړي به مال لګوي په دې خپلو زنانو باندې"؛ ځکه ښځه کور کښې دننه ناسته ده، سړے بهر مال اوګټي، راوړي ئې او په ښځې باندې ئې خوري؛ نو ځکه دَ سړو مقام اوچت دے.

په دې باندې علماؤ ډير تفصيل کړے دے، چې سړے ولې په زنانو باندې غوره دے، ابن کثير رحمه الله ذکر کړي دي: چې سړي به بادشاهان وي او حاکمان به وي په ښځو باندې نو دا ولې؟ ځکه چې "وَلِهٰذَا كَانَتِ النُّبُوَّةُ مُخْتَصَّةً بِالرِّجَالِ وكَذٰلِكَ المُلْكُ الأَعْظَمُ؛ لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوا أَمْرَهُم امْرَأَةً»".[3]

"دَ دې وجې نه پيغمبري او لويه بادشاهي دَ سړو پورې خاص ده، دَ لويُو لويُو عهدو اختيار دَ سړو دے؛ چې حديث پاک کښې راځي: هر ګز هغه قوم به کامياب نشي چې هغوي دَ خپلې مشرئ اختيارات ښځې ته حواله کړل".

---

(1) [سورة البقرة: 228].

(2) [سورة النساء: 34].

(3) انظر: "تفسير ابن كثير": (292/2).

نو دَ ښځو حق دَ لختيار نشته دے، نن خو افسوس دا دے چې خلق وائي: "مساوات پکار دي دَ سړو او دَ ښځو په مينځ کښې؛ ځکه دا سړے هم دَ الله بنده دے او ښځه هم دَ الله بنده ده نو ولې دا يَو اوچت دے او دا بل ښکته دے؟"، نو ورته وايه: "چې دا تپوس دَ الله نه اوکړه، چې داسې دې ولې کړي دي؟"، مونږ خو په دې باندې مکلف يُو چې دَ الله حکم دے او وې منو ئې، چې الله مساوات نهٔ دے راوستے نو تهٔ ئې څنګه راولې؟ مساوات نشته اوګوره! دوه ښځې دَ يَو سړي برابر دي:

**دوه ښځې دَ يَو سړي برابر**

په بيان دَ شهادت کښې اوګوره! دَ شهادت مسئله چې راځي، نو الله تعالى فرمائي: ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ أَنْ تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى﴾.(1)

کهٔ چرې يَو مسئله کښې دَ ګواهانو ضرورت راغلے نو الله فرمائي: "ګواهان اونيسئ دوه ګواهان دَ سړو نه نو کهٔ چرته دوه سړي نهٔ وي نو يَو سړے او (او دَ دې دويم سړي په ځائے) دوه ښځې هم کافي دي دَ هغه چا نه چې تاسو ئې دَ ګواهانو نه خوښوئ؛ کهٔ چرې يَوې زنانه نه خبره هيره شي نو دا بله به ورته خبره ورياده کړي"؛ چې دا خبره داسې ده، ځکه چې ذهن ئې کمزورے دے.

**په ميراث کښې ښځه او سړے برابر نهٔ دے**

الله رب العزة فرمائي: ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ﴾.(2)

"الله کلک حکم کوي تاسو ته په باره دَ اولاد ستاسو کښې چې دَ سړي دپاره پشان دَ حِصې دَ دوو زنانو ده".

دوه زنانه چې په ميراث کښې څومره حصه اخلي نو دومره به يَو سړے يَواځې اخلي، دوه خويندې په يَو ورور حساب دي، نو بيا څنګه مساوات پکار دے؟ چې الله څنګه وئيلي دي نو هم هغه شان پکار دي.

نو بهر حال مونږ او تاسو له پکار دي: چې مونږ او تاسو خپل ودونه، خپل غمونه، خپل لين دين، کهٔ هر څهٔ دي خو چې دا ټول په طريقه دَ نبي ﷺ باندې اوکړو، او په هر حال کښې مونږ دَ نبي ﷺ تابعداري اوکړو.

---

(1) [سورة البقرة: 282].

(2) [سورة النساء: 11].

## دَ نيکانو بندګانو حال

الله رب العزة دَ نيکانو خلقو حال ذکر کوي: ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ﴾.[1]

"کار دَ هغوي دا وو: چې دوي به جلدي (تلوار) کوله په کارونو دَ نيکو کښې، او په غم کښې او په ښادئ کښې، په هر حال کښې به ئې مونږه رامدد کولو (هر حال کښې ورته مونږ ياد وو)، او هغوي به مونږ ته عاجزي کوله".

ما چې کوم آيتونه لوستلي وو، نو په دې کښې هم الله تعالی دَ نکاح بيان کوي: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَىٰ فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ﴾.[2]

"کهٔ چرې تاسو يريږئ چې انصاف به اونهٔ کړے شئ دَ يتيمانانو جينکو سره په نکاح کښې پس نکاح اوکړئ دَ هغې زنانو سره چې جائز دي ستاسو دپاره دَ زنانو نه، دوه دوه اوکړئ، درې درې اوکړئ، څلور څلور اوکړئ".

دې آيت کښې رد دے په دورِ جاهليت باندې، چې هغوي له به يتيمه پاتې شوه نو هغې سره به ئې ظلمونه کول، دَ مال او دولت دپاره به ئې په نکاح واغسته او بيا به ئې ورسره انصاف نهٔ کولو، نو الله اووئيل: "چې کهٔ تاسو ودونه کوئ نو دَ څلورو پورې ئې کولے شئ"، نورو زنانو سره نکاح اوکړئ، خاڅه يتيمې زنانو سره څهٔ دپاره ظلم کوئ، کهٔ چرې يَو سړے دوه ښځې کوي نو جائز دي، ګناه پکښې نشته دے خو چې کله حقوق اداء کولے شي، دارنګې درې کوي يا څلور کوي نو ګناه نشته او په دې کښې دَ رومبۍ ښځې نه دا جازت اغستل هم نشته: "چې زهٔ بله ښځه کوم ستا اجازت دے او کهٔ نا؟"، نو دا نشته چې رومبۍ ښځه دې په دې دويمه باندې خوشحاله نهٔ ده نو تهٔ به ئې نهٔ کوې، دا پکښې چا وئيلي دي؟ زما او ستا دَ ملک په قانون کښې دا دي: "چې کهٔ چرې يَو سړے دويم وادهٔ کوي نو دَ رومبۍ ښځې نه به اجازت غواړي"، دا دَ الله قانون نهٔ دے، دا خو دې خلقو دَ ځان نه جوړ کړے دے، مونږ به دَ الله قانون منو، الله خو وائي: دوه دوه اوکړئ، درې درې اوکړئ او څلور څلور اوکړئ، دا درله جائز دي.

(1) [سورة الأنبياء: 90].
(2) [سورة آل عمران:3-4].

## د اشرف علي تهانوي رحمه الله قول

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ذکر کوي: "چې دويمه نکاح عيب ګنړل کفر دے"، که چرې يَو سړے دَ دې دَ وجې نه عيب ګنړي چې حق ئې نشي اداء کولے نو دا جدا مسئله ده، او که چرې يَو سړے ئې هسې نقصان او عيب ګنړي نو دې سره سړے کفر ته رسي؛ ځکه الله جائز کړي دي او ته ئې عيب ګنړې؟، په دې ملک کښې دا يَو لوئي غضب دے چې که چرې يَو سړي يَو واده کړے وي او دَ دويم واده نوم اخلي نو تول ورباندې لعنت وائي، وائي: "دا دے دَ مستئ نه دويم واده کوي"، الله ورله جائز کړے دے او ته ئې ورله ناجائز کوې؟

## دَ ډيرو نکاحونو حکمت

او په دې کښې حکمت دا دے: چې هر سړے يَو ښځه کوي نو ډيرې زنانه به بے دَ خاوندانو پاتې شي، او دا دَ قيامت نخښه ده؛ ځکه حديث پاک کښې راځي: "دَ قيامتَ دَ نخښو نه يَوه نخښه دا ده: چې سړي به کم شي او ښځې به زياتې شي"، نو بيا به دا ښځې څۀ کوي؟ نو دَ څلورو پورې ښځې دَ امت دپاره جائز دي.

ها! ﴿فَإِنۡ خِفۡتُمۡ أَلَّا تَعۡدِلُواْ فَوَٰحِدَةً أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُكُمۡ﴾.(1)

"که چرې يريږئ چې انصاف به نشي کولے نو بيا دَ يَوې زنانه سره نکاح اوکړئ، او يا دَ وينځې سره نکاح اوکړئ"؛ ځکه په امتي باندې انصاف لازم دے، په پيغمبر ﷺ باندې تقسيم لازم نۀ وو، او په امتي باندې لازم دے، دوه ښځې دې اوکړې نو بيا به پکښې فرق نۀ کوې، دا به نۀ کوې چې يَوه پلار کره اوشړه او بله ځان سره ساته، دا ناجائز دي، يوې ته مال او خرچه ورکوه او بلې ته خرچه او مال مۀ ورکوه، يَوې ته ښځه وايه او بلې ته ښځه مۀ وايه، دا حرام او ناجائز دي.

## دَ يَوې ښځې سره ظلم کول

حديث پاک کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: «إِذَا كَانَ عِنْدَ الرَّجُلِ امْرَأَتَانِ فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ سَاقِطٌ».(2)

"چې دَ چا دوه ښځې وي او دے دَ دې دواړو مينځ کښې انصاف نۀ کوي نو دے به په

(1) [سورة آل عمران:3-4].

(2) أخرجه الترمذي في أبواب النكاح، باب في التسوية بين الضرائر، برقم: (1140).

ورځ دَ قيامت راشي او پهٔ داسې حال کښې چې دَ دهٔ دا يَو طرف به غورځيدلے وي".

نو چې دَ چا دوه ښځې دي او دَ هغې دواړو مينځ کښې انصاف نهٔ کوي، يَوې باندې ظلم او زياتے کوي او بلې سره مينه محبت او خوشګواره زندګي تيرَوي نو دَ قيامت پهٔ ورځ به دے راشي او فالِج به وَهلے وي پهٔ دې يَو طرف باندې، هر سړے به ئې پيژني چې دا هغه ظالم دے: چې پهٔ دنيا کښې ئې دوه ښځې وې او دَ هغوي پهٔ مينځ کښې ئې انصاف نهٔ کولو، پهٔ محبت کښې فرق کول، چې يَوې سره دې مينه زياته ده او بلې سره دې مينه کمه ده، پهٔ هغې کښې دې الله نهٔ نيسي؛ ځکه هغه دَ زړهٔ خيز دے، خو ظاهري پهٔ خوراک کښې، پهٔ نمبر کښې، پهٔ نورو حقوقو کښې به تهٔ دَ دواړو يَو شان خيال ساتې، دا پهٔ تا باندې لازم دي. نو کهٔ يريږې چې انصاف به اونهٔ کړم نو بيا دَ يَوې ښځې سره نکاح اوکړه او يا دَ وينځې سره نکاح اوکړه.

﴿ذَٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَلَّا تَعُولُوا﴾.(1)

"دا نزدې ده چې تاسو به زياتے نهٔ کوئ".

او چې کلهٔ دې نکاح اوکړه نو الله فرمائي: ﴿وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً﴾.(2)

"ورکړئ زنانوُ له دَ هغوي مهرونه پهٔ خوشحالئ باندې".

دَ نکاح پهٔ وخت کښې چې کوم مهر مقرر شوے دے نو هغه ورته ورکړه، مهر ديته وائي: چې کله درله نکاح تړي او درته وائي: "چې دا زنانه دَ فلانکي لور ده، پهٔ دې نوم ئې بله لور پهٔ کور کښې شريکه نشته، پهٔ مقابله دَ دومره دومره روپو مهر کښې (يا کهٔ سرهٔ زر وي او يا کهٔ سپين زر وي، يا کوټه او کمره وي او يا جائيداد وي او يا بل څهٔ وي) تا قبوله کړې وه او قبوله کړې دې ده؟"، نو دغه مهر پهٔ تا باندې لازم دے، دغه مهر به دې خپلې ښځې ته ورکوې، يَو مهر معجَّل وي چې مخکښې نه ئې ورته ورکړې او يَو مهر مؤجَّل وي چې روستو ئې ورته ورکړې، دغه مهر ورکول پهٔ تا باندې قرض دے، هغه به ورله ورکوې او کهٔ چرته يَو سړے مړ شو او دَ هغې مهر پرې پاتې وو، ورکړے ئې نهٔ وو نو اول به دَ هغهٔ دَ مال نهٔ دَ ښځې مهر ورکولے کيږي پس دَ تکفين او تدفين اشياؤ دَ خرچې نه او بيا به روستو نور مال تقسيميږي.

(1) [سورة آل عمران:3-4].

(2) [سورة آل عمران:3-4].

يَو حديث كښې راځي: "چې کوم سړي نکاح اوکړه، وادهٔ ئې اوکړو او دَ هغهٔ دَ ښځې مهر دَ دهٔ پهٔ غاړه باندې وو، ورکړے ئې نهٔ وو او دَ دې سړي اراده وه چې نهٔ ئې ورکوم نو دا سړے به الله سره مخامخ شي او دا نکاح به پهٔ دهٔ باندې زنا حسابيږي"، نو دَ ښځې مهر چې مقرر دے نو هغه ورله ورکړه. هاا ﴿فَإِن طِبْنَ لَكُمْ عَن شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَّرِيئًا﴾.[1] "کهٔ دې ښځو درته بخښنه اوکړه دَ خپل مهر نه دَ څهٔ څيز دَ زړهٔ نه نو بيا تاسو خورئ دې لره پهٔ خوش مزه او ښهٔ تيريدونکې"، نو بيا درله دغه خوراک جائز دے.

ما چې کومې خبرې اوکړې نو الله رب العزة دې مونږ او تاسو ته پهٔ دې دَ عمل کولو توفيق رانصيب کړي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

(1) [سورة آل عمران:4-3].

بسم الله الرحمن الرحيم

كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

(سورة آل عمران: 110)

# موضوع

# دَ محرم رسم او رواج

**بتاريخ: 2008-01-01**

**بمقام جلسئ**

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ محرم رسم او رواج

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحِبَّنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللهِ﴾.[1]

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ ﷺ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ: «مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيْمَانِ».[2]

عزت مندو مسلمانانو رونړو! دا دَ محرم میاشت ده، دَ محرم په میاشت کښې بعضې امور دَ شریعت نه ثابت دي او بعضې امور خلقو دَ ځان نه شروع کړي دي، بدعات، رسمونه او رواجونه دي، په دې جمعه کښې دا ذکر کوو، چې په محرم کښې شرعي امور کوم دي؟ او غیر شرعي امور کوم دي؟ او دَ محرم میاشت څنګه ده؟؛ څکه بعضې خلق دا میاشت سپیرهٔ ګڼړي، په دې کښې وادهٔ خوشحالي بده ګڼړي، نو دَ بدعاتو او دَ شریعت دَ احکامو وضاحت پکار دے.

دَ محرم په میاشت کښې نبي ﷺ دَ محرم دَ روژې نهایت ترغیب ورکړے دے، دَ محرم میاشت دَ عزت او شرافت میاشت ده.

### په محرم کښې روژې نیول

دَ دې وجې نه نبي ﷺ به په دې میاشت کښې روژې نیولې، په میاشت کښې به ئې هم

(1) [سورة آل عمران: 110].

(2) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب بيان كون النهي عن المنكر من الإيمان... وأن الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر واجبان، برقم: (49).

نیولې او بیا پهٔ یو خاص ورځ وه هغې ته به ئې "یوم العاشوراء" وئیله دَ هغې روژه به ئې هم نیوله، نو مسلمانان کهٔ دَ خپل پیغمبر ﷺ پهٔ طریقه عمل کوي نو دَ دې میاشت روژې دې اونیسي خومره چې نیولے شي.

**دَ سیدنا ابوهریره رضی الله عنه روایت**

پهٔ "مسلم شریف" کښې دَ سیدنا ابو هریره رضی الله عنه روایت راځي: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «أَفْضَلُ الصِّيَامِ، بَعْدَ رَمَضَانَ، شَهْرُ اللهِ الْمُحَرَّمُ».

"ابو هریره رضی الله عنه فرمائي: نبي ﷺ فرمائیلي دي: غورې او بهترینې روژې هغه دَ رمضان نه پس دَ میاشتې دَ الله دي چې هغه محرم ده".

چې دَ دې میاشتې پهٔ روژو کښې ډیر ثواب دے او بیا نبي ﷺ فرمائي:

«وَأَفْضَلُ الصَّلَاةِ، بَعْدَ الْفَرِيضَةِ، صَلَاةُ اللَّيْلِ».(1)

"او غوره مونځ پس دَ فرض مونځ نه هغه مونځ دَ شپې دے (چې تهجُّد دې)".

**دَ سیدنا جندب بن سلیمان رضی الله عنه روایت**

دا صحابي فرمائي: "چې نبي ﷺ به فرمائیل: چې دَ فرض مونځ نه پس بهترین مونځ هغه دَ شپې مونځ دے او دَ رمضان نه پس بهترینې روژې دَ هغې میاشتې دي چې هغې ته تاسو محرم وائي"، دا خو دَ محرم دَ میاشتې فضیلت وو.

**دَ عاشوراء دَ ورځې روژه**

دَ عاشوراء دَ ورځې روژه هم دَ احادیثو نه ثابت ده، دَ عاشوراء دَ ورځې روژه هغه وه چې کله نبي ﷺ مدینې ته تشریف یوړو، نو پهٔ مدینه منوره کښې یهود هم اوسیدل، یهود اهل کتاب وو، دَ موسی علیه السلام اُمّتیان وو، نو یهودو به دَ عاشوراء دَ ورځې (دَ عاشوراء معنی: لسم محرم) روژه نیوله، نبي ﷺ دَ هغوي نه تپوس اوکړو: "تاسو دا دَ محرم روژه ولې نیسئ؟"، نو هغوي ورته اووئیل: "مونږ دا روژه ځکه نیسو؛ چې زمونږ پیغمبر سیدنا موسی علیه السلام او دَ هغه ملګري بني اسرائیل الله تعالی پهٔ دې ورځ دَ فرعون نه خلاص کړي وو، دشمن ئې ورله تباه کړے وو"، قرآنِ کریم کښې دَ هغوي واقعه ځائے پهٔ ځائے تفصیلًا راځي،

(1) أخرجه مسلم في كتاب الصيام، باب فضل صوم المحرم، برقم: (1163).

چې الله تعالى وائي: "ما موسى ﷺ او دَ هغه ملګري پهٔ سمندر پورې کړي وو، او فرعونیان مې تباه کړل"، نو پهٔ کومه ورځ چې موسى ﷺ او دَ هغه ملګرو ته نجات میلاؤ شو او دشمن تباه شو، نو دا دَ بني اسرائیلو دپاره لويه دَ خوشحالۍ ورځ وه؛ ځکه هغوي به دَ فرعونیانو نه ډیر تنګ وو، نو دَ دشمن پهٔ تباهۍ به هغوي خوشحالي مناووله، نو دَ شکریې پهٔ طور به هغوي پهٔ دغه ورځ روژه نیوله.

نو نبي ﷺ صحابه کرام ﷺ ته اووئیل: "چې دوي دَ عاشوراء دَ ورځې روژه نیسي نو مونږ هم لائق یُو چې دَ عاشوراء دَ ورځې روژه اونیسو؛ ځکه دا خو زمونږ دپاره هم خوشحالي ده، چې موسى ﷺ او دَ هغه قوم بچ شو"، نو نبي ﷺ او صحابه کرامو ﷺ به هم دَ عاشوراء دَ ورځې روژه نیوله.

سیدنا ابو قتاده ﷺ وائي: چې نبي ﷺ نه تپوس شوے وو: چې اے دَ الله پیغمبره ﷺ! دَ عاشوراء دَ روژې فضیلت خومره دے؟، نو نبي ﷺ ورله جواب ورکړو: «يُكَفِّرُ السَّنَةَ الْمَاضِيَةَ».[1]

"چې دَ یو عاشوراء دَ روژې دومره فضیلت دے او دومره ثواب ئې دے چې دَ یو کال تیر شوي ګناهونه پرې الله معاف کوي".

**دَ سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ روایت**

وائي: چې نبي ﷺ به بخپله هم دَ محرم روژه نیوله او صحابه کرامو ﷺ ته به ئې هم حکم کولو چې دا روژه اونیسئ.

بل روایت کښې دَ سیدنا عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دي: "چې رسول الله ﷺ به دَ عاشوراء دَ ورځې ډیره مبالغه به ئې کوله، معلومات به ئې کول: چې هغه ورځ کله ده؟"، دومره معلومات ئې دَ بلې ورځې دپاره نهٔ دي کړي، نبي ﷺ چې به دَ لسم محرم روژه نیوله، نو ډیر زیات اهتمام به ئې کولو.

**یو ضروري خبره**

دَ "مسلم شریف" پهٔ روایت کښې یو خبره راځي، دَ عبد الله بن عباس ﷺ نه روایت دے: "نبي ﷺ او صحابه کرامو ﷺ چې به کله دَ عاشوراء روژه نیوله، دَ محرم دَ لسمې ورځ روژه به ئې نیوله، نو یوه ورځ صحابه کرامو ﷺ نبي ﷺ ته اوفرمائیل: چې اے دَ الله پیغمبره ﷺ! تاسو خو مونږ ته وایئ چې دَ یهودو سره مشابهت مهٔ کوئ، دَ هغوي سره خپل ځان مهٔ یو شان کوئ، نو اے

(1) أخرجه مسلم في كتاب الصيام، باب استحباب صيام ثلاثة أيام من كل شهر وصوم يوم عرفة وعاشوراء...، برقم: (1162).

پيغمبره ﷺ! دَ دې ورځې روژه خو يهود هم نيسي او نصارئ ئې تعظيم کوي، نو کۀ مونږ دا روژه نيسو نو دا خو دَ هغوي سره مشابهت دے؟...".

او نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ».[1]

"چا چې دَ کوم قوم سره ځان مشابه کړو نو دے هم دَ هغوي نه دے".

او کله نبي ﷺ داسې فرمائي: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا، لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ وَلَا بِالنَّصَارَى».[2]

"زمونږ نه بغير دَ نورو قومونو سره ځان مۀ مشابِه کوئ، دَ يهودو او نصارئ سره ځان مۀ مشابِه کوئ".

نو دې صحابه اووئيل: "چې دَ الله پيغمبره ﷺ! دې کښې خو دَ هغوي سره مشابهت دے"،

نو نبي ﷺ اوفرمائيل: «لَئِنْ بَقِيتُ إِلَى قَابِلٍ لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ».[3]

"کچرې زۀ دَ آئنده کال دپاره ژوندے پاتې شوم (نو زۀ به ورسره يَو روژه سيوا کوم)، دَ نهم محرم روژه به ورسره نيسم".

**دَ محدثينو اختلاف**

(۱) اول قول: دَ امام طيبي رحمه الله دے، هغه وائي: "نبي ﷺ بل کال ته پاتې نۀ شو، او دَ دنيا نه رخصت شو"، نو امام طيبي رحمه الله وائي: "چې دَ نهم محرم روژه نيول سنت شول"، او نبي ﷺ وئيلي وو: «لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ»، "زۀ به دَ نهم محرم روژه خامخه نيسم"، نو دَ نهم محرم روژه نيول غواړي.

(۲) دويم قول: امام توربشتي رحمه الله وائي: "چې نبي ﷺ اووئيل: «لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ»، "زۀ به پۀ نهمه ورځ دَ محرم باندې روژه نيسم"، معنی ئې دا ده: چې زۀ به ورسره نهمه ورځ يَو ځائے کوم، زۀ به دوه ورځې روژه نيسم، دَ نهم محرم او دَ لسم محرم".

نو دَ يهودو سره مشابهت ختم شو؛ ځکه هغوي صرف دَ لسم محرم روژه نيسي او مونږ به دوه روژې اونيسو؛ دَ دې وجې نه "مرقات" کښې ملا علي قاري رحمه الله يَو روايت ذکر کړے دے، چې دا صحابي "ابن عباس رضي الله عنه" وائي: «صُومُوا التَّاسِعَ وَالْعَاشِرَ، وَخَالِفُوا الْيَهُودَ».[4]

---

(1) أخرجه أبو داود في كتاب اللباس، باب في لبس الشهرة، برقم: (4031).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب الاستئذان والآداب، باب ما جاء في كراهية إشارة اليد بالسلام، برقم: (2695).

(3) أخرجه مسلم في كتاب الصيام، باب أي يوم يصام في عاشوراء، برقم: (1134).

(4) انظر: "مرقاة المفاتيح" (1412/4)، رقم: (2041).

"تاسو دَ محرم میاشت دَ نهم تاریخ روژه هم اونیسئ او دَ لسم تاریخ هم اونیسئ او دَ یهودو مخالفت اوکړئ".

هغوي صرف دَ لسم (۱۰) محرم روژه نیسي نو تاسو دا دواړه (نهم او لسم محرم) اونیسئ چې دَ هغوي مخالفت راشي.

**قول دَ امام ابن همام رحمه الله**

امام ابن همام رحمه الله وائي: "یستحب صوم یوم العاشوراء ویستحب أن یصوم قبل یَومه أو بعد یَومه"، "مستحبه ده چې دَ عاشوراء دَ ورځې روژه هم اونیسي او دا هم مستحبه ده چې دَ دې نه یَو ورځ مخکښې روژه اونیسي، او یا دَ دې نه یَو ورځ روستو روژه اونیسي"، یعني دوه روژې به نیسي، فقهاؤ ذکر کړي دي: "چې یَواځې دَ لسم محرم روژه نیول هم مکروه دي، کۀ څوک روژه نَیسي نو نهم او لسم محرم یا لسم او یَوولسم محرم به ئې نیسي..."، او بیا فقهاء وائي: "فإن أفردوا فهو مکروه للتشبه بالیهود"، "کچرې یَواځې دَ لسم محرم روژه ئې اونیوله نو دا مکروه ده؛ دَ وجې دَ مشابهت نه یهودو سره (بیا دَ یهودو سره مشابهت راځي کۀ یواځې دَ لسم محرم نیسي)".

نو دا مسئله معلومه شوه: "چې پۀ لسم محرم روژه نیول دَ شریعت نه ثابته ده، یهودو به دا روژه نیوله، خو مسلمانان به صرف پۀ لسم محرم باندې روژه نۀ نیسي"، بلکه دَ یهودو مخالفت به کوي؛ ځکه نبي ﷺ فرمائیلي وو: "کچرې زۀ دَ آئنده کاله پورې ژوندے ووم نو زۀ به دَ نهم محرم روژه نیسم"، نو علماء کرام ذکر کوي: چې مقصد ئې دا وو: چې زۀ به دَ نهم محرم روژه نیسم. بعضې علماء وائي: چې مقصد ئې دا وو چې نهم محرم به هم نیسم او لسم محرم به ورسره سیوا کوم.

نو کۀ امت پۀ دغه طریقه باندې عمل کوي، نو طریقه ئې دا شوه: چې دَ نهم محرم او دَ لسم محرم دَ دواړو روژه به نیسي، او یا به دَ لسم او یَوولسم محرم روژه نیسي، یَواځې دَ لسم محرم روژه به نۀ نیسي.

**پۀ محرم کښې نور اعمال**

پۀ محرم کښې نور اعمال څنګه دي؟ لکه اکثر خلق دا سپیرۀ ګڼړي، اول خو پۀ دوي کښې دومره جهالت دے چې دَ محرم نوم ته هم نۀ ګوري، چې دَ دې نوم څۀ معنی ده؟ دَ دې نوم معنی دا ده: "دا عزتمنده میاشت ده"، او خلق وائي: "دا سپیرۀ ده"؛ ځکه کله به تاسو اورئ چې دَ چا وادۀ

وي نو وائي زر وادهٔ اوکړئ بیا محرم راځي، بیا محرم کښې خو گناه ده، دا میاشت سپیره ده، او په دې کښې وادهٔ نهٔ دے پکار، نو مخکښې وادهٔ اوکړئ، او که دَ چا دَ وادهٔ نیته محرم ته راځي، نو وائي: دَ محرم نه ئې روستو کړئ، دَ محرم نه روستو به وادهٔ اوکړو، دَ صفر میاشت او دَ محرم میاشت دا خلق سپیرهٔ گڼړي دا دَ خلقو لوئي جهالت دے.

نبي ﷺ فرمائي: "سپیرهٔ والے گڼړل پهٔ یو شي کښې دا شرک دے"، هر څهٔ چې کوي نو الله تعالی ئې کوي، ورځو کښې څهٔ سپیرهٔ توب نشته دے، دا ټول دَ الله تعالی مخلوقات دي، ورځې او شپې ټولې یو شان دي، نو محرم دې ته سپک کتل او سپیرهٔ کتل دا جائز نهٔ دي، دا دَ شیعه گانو سره مشابهت دے، شیعه گان دې میاشت ته سپیرهٔ میاشت وائي؛ ځکه چې پهٔ دې میاشت کښې سیدنا حسین ﷺ شهید شوے دے، نو پهٔ دې وجه ورته سپیرهٔ میاشت وائي (نعوذ بالله)، زما پهٔ خیال دې شیعه گانو ته به دا شهادت سپیرهٔ ښکاري، چې حسین ﷺ پکښې شهید شوے دے نو دا خو نوره دَ عزت میاشت وه؛ ځکه شهادت خو لوئي مقام لري، نو پهٔ ایمان ئې اووایئ چې شهادت سره یو میاشت سپیرهٔ کیږي او کهٔ عزتمنده کیږي؟

**دَ شهیدانو مقام**

قرآنِ کریم خو دَ شهیدانو ډیر لوئي مقام ذکر کړے، احادیثو کښې نبي ﷺ دَ شهداؤ ډیر لوئي مقام ذکر کړے دے، قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ﴾.(1)

"اے خلقو! کوم خلق چې زما پهٔ لاره کښې شهیدان شي نو دا دَ عامو خلقو پشان مړي ورته مهٔ وایئ (چې مړهٔ شو او دنیا ترې نه پاتې شوه، دا مهٔ وایئ چې مړهٔ شول او ښځه او بچي ترې نه پاتې شول) بلکه دَ الله تعالی پهٔ نزد ژوندي دي، خو تاسو پهٔ هغې ژوند نهٔ پوهیږئ".

نو مړهٔ نهٔ دي بلکه دَ دې دنیا نه بلې دنیا ته منتقل شو، جنت ته تلي دي، حدیث مبارکه کښې راځي: "دَ شهید روح الله تعالی دَ شنو مارغانو پهٔ ځځرو کښې دننه کړي، کوم ځائے چې ئې خوښه وي پهٔ جنت کښې نو ځریږي او مزې کوي".

**دَ نبي ﷺ دَ شهادت ارمان**

شهادت دومره لوئي مقام دے، چې رسول الله ﷺ فرمائي: «وَلَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ

---

(1) [سورة البقرة: 154].

ثُمَّ أُحْيَا، ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا، ثُمَّ أُقْتَلُ﴾.(1)

"خامخه زهٔ غواړم، زما ارمان دے چې زهٔ دَ الله پهٔ لار ه کښې شهید کړے شوے وے، بیا ژوندے شوے وے، بیا شهید شوے وے، بیا ژوندے شوے وے او بیا شهید شوے وے"، معنی دا چې دَ الله په لار کښې شهید کیدے او بیا ژوندے کیدے، خو شیعه کان بدبخته ورته بد وائي، نو دا میاشت دَ حسین ﷺ دَ وجې نه بدبخته شوې نهٔ ده، او هغه ته شهادت میلاویدل دا څهٔ نقصان نهٔ دے بلکه دا خو نوره هم دَ شرافت خبره ده؛ ځکه دَ شهادت ډیر لوئي مقام دے.

**شهادت سره دَ ګناهونو معافي**

رسول الله ﷺ فرمائي: «يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ إِلَّا الدَّيْنَ».(2)

"دَ شهید دپاره ټول ګناهونه معاف کیږي سیوا دَ قرض نه".

او دا قرض ورته ځکه نهٔ معاف کیږي؛ چې دا پردے حق دے او الله تعالی دَ مخلوق حق چا ته پخپله نهٔ معاف کوي او خپل حق معاف کوي.

بهر حال دا میاشت سپیرهٔ نهٔ ده بلکه دا عزتمنده میاشته ده، نو بعضې مسلمانان چې دَ شیعه ګانو پرې اثر شوے وي نو هغوي خو نهٔ پوهیږي؛ ځکه دې میاشت ته سپک کوري او وادهٔ پهٔ دې میاشت کښې نهٔ کوي، پهٔ دې کښې کویژدن نهٔ کوي، پهٔ دې کښې خوشحالي نهٔ کوي، وائي: "دا سپیرهٔ میاشت ده"، دا کورے دَ شرک عقیده ده، مسلمانانو رونړو! دَ شیعه ګانو مخالفت اوکړئ، دا میاشت نهایته دَ برکت او خیر نه ډکه میاشت ده، خپل ودونه کویژدنې او ودونه پهٔ دې میاشت کښې کوئ، او کلهٔ چې تهٔ دَ یو رسم ماتول غواړې نو پهٔ هغه کار کښې به الله تا لره ډیر خیر او برکت اچوي.

**دَ نبي ﷺ طریقه ژوندئ کول**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ تَمَسَّكَ بِسُنَّتِي عِنْدَ فَسَادِ أُمَّتِي فَلَهُ أَجْرُ مِائَةِ شَهِيدٍ».(3)

"چا چې زما یو سنت طریقه راتینګه کړه (ژوندئ کړه) چې پهٔ کوم وخت کښې خلقو سنت طریقې ماتولې، پریښودې ئې نو دهٔ ته به دَ سلو شهیدانو اجر میلاویږي".

(1) أخرجه البخاري في كتاب الإيمان، باب: الجهاد من الإيمان، برقم: (36).

(2) أخرجه مسلم في كتاب الإمارة، باب من قتل في سبيل الله كفرت خطاياه إلا الدين، برقم: (1886).

(3) انظر: "مشكوة المصابيح" (62/1)، برقم: (176).

نو خلق یریږي وائي: "دا میاشت سپیرهٔ ده"، اکثر خلق ما ته ټیلیفون اوکړي، وائي: "چې مونږ وادهٔ کوو نو دا میاشت څنګه ده؟ یره چې بعضې خلق وائي: چې دا سپیرهٔ میاشت ده؟"، دیته سپیرهٔ وئیل دا دَ شیعه ګانو طریقه ده، دا دَ مسلمانانو طریقه نهٔ ده، او شیعه ګان هم پهٔ دې کښې غلط شوي دي، او هغوي څکه غلط شوي دي؛ چې وائي: "دا دَ حسین ﷺ دَ شهادت دَ وجې نه سپیرهٔ ده"، شکر دے چې هغه پکښې شهید شوے دے، سپیرهٔ نه وه بلکه دا خو مبارکه میاشت وه، شهادت هم لوئي مقام دے.

بهر حال دا میاشت سپیرهٔ نهٔ ده؛ دا خو مخکښې نه هم عزتمنده وه او بعضې خلق نهٔ پوهیږي هغوي وائي: "دیته دا محرم څکه وائي؛ چې دې کښې حسین ﷺ شهید شوے دے دَ هغې دَ وجې نه عزتمنده شوه"، نا! بلکه دې ته دا عزت دَ مخکښې نه میلاو دے او دا روژه چې ده نو دا هم دَ پخوا نه راروانه ده، دَ نبي ﷺ دَ دور نه هم مخکښې ده، دا میاشت خو دَ هغې وخت نه دَ عزت والا حسابیږي چې کلهٔ نه الله تعالی موسی ﷺ او دَ هغهٔ ملګرو له نجات ورکړے وو، چې دَ فرعون ظالم نه ئې هغوي خلاص کړي وو نو دا خوشحالي دَ هغهٔ وخت نه راروانه ده او دا روژه هم دَ هغه وخت نه راروانه ده، نو دا عزت ورته دَ سیدنا حسین ﷺ دَ وجې نه نهٔ دے، بلکه دا دَ مخکښې نه راروان دے.

او بله دا خبره چې پهٔ دې میاشت کښې دَ حضرت حسین ﷺ دَ شهادت مرثیې وائي، او عوامو کره کور کښې کتابونه پراتهٔ وي هغې ته "شهادت نامې" وائي، هغه به لولي او څوک ورته ژاړي، او وائي: "دا لوئي ظلم شوے دے"، نو دا شے خلاف شرع دے، پهٔ دې خاص ورځ باندې دا دَ شهادت قیصې اورول او دا دَ محرم پورې خاص کول دا ناروا او ناجائز دي.

بعضې خلق وائي: "پهٔ تاریخ اسلام کښې دا یَو لویه دردناکه واقعه شوې ده"، دَ دې نه زیاتې دردناکې واقعې شوي دي، پکار دے چې دَ هغې تاریخ راځي نو خلق هغه هم بیانوي کنا دَ هغې دې هم یاد او تذکره کوي.

## دَ دریم خلیفه حالت

سیدنا عثمان ﷺ دَ مسلمانانو دریم خلیفه وو، او پهٔ دهٔ دَ نبي ﷺ دوه لوریانې وادهٔ وې، یَو لور پرې دَ نبي ﷺ وادهٔ وه چې هغه کله وفات شوه نو نبي ﷺ ورته بیا بله لور پهٔ نکاح باندې ورکړه، او چې کله دا دویمه لور دَ نبي ﷺ هم وفات شوه نو نبي ﷺ اوفرمائیل: "کچرې زما بله لور ژوندۍ وے

نو ما به هغه بله لور هم دهٔ ته پهٔ نکاح باندې ورکړې وې"، دومره ترې نه نبي ﷺ خوشحاله وو، دا عثمان ؓ خو هغه جليل القدر صحابي وو، چې حديث پاک کښې راځي: "سيدنا عثمان ؓ دومره حياناک دے چې فرښتې دَ هغهٔ نه حياء کوي"، دَ سيدنا عثمان ؓ واقعه دَ شهادت خو ډيره دردناکه واقعه ده، چې دَ سيدنا عثمان ؓ نه کسان چاپيره دي، هغه مقابله نهٔ کوي، هغه فوج ته حکم نهٔ کوي، چې څوک ورشئ تاسو حمله پرې اوکړئ، دَ عثمان ؓ پخپل لاس کښې هم توره نشته، هغه توره نهٔ راخلي، مقابله نهٔ کوي، بلکه هغه دَ قرآنِ کريم تلاوت کوي، دشمنان راځي او پهٔ سيدنا عثمان ؓ باندې دَ تورې ګزار کوي، دَ سيدنا عثمان ؓ دَ بدن وينې پهٔ قرآنِ کريم غورځيږي، دَ قرآنِ کريم تلاوت ئې کولو او دَ وينې څاڅکي پهٔ دې آيت باندې پرېوځي: ﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللهُ﴾.[1]

"زر دے چې کافي به شي ستا دَ طرف نه دوي ته الله".

الله وائي: "ستا بدله به زهٔ واخلم"، نو دَ سيدنا عثمان ؓ وينه دَ قرآن پهٔ آيت باندې پرېوځي، دا دَ مسلمانانو دپاره نهايته دردناکه واقعه ده، نو دَ هغهٔ دَ شهادت واقعه يَو ورځ هم چا بيان نهٔ کړه؛ ځکه دَ شيعه ګانو ورسره نالګي وه، دا پهٔ مونږ او تاسو چې څهٔ اثرات دي نو دا دَ شيعه ګانو دَ طرف نه دي.

## دَ إمام الأنبياء محمد مصطفى ﷺ حالت

دَ نبي ﷺ سر مبارک پهٔ "جنګِ احد" کښې مات شوے وو، وينې ترې نه رواني دي، سيده فاطمه ؓ پوزکے سوَزوي، دَ نبي ﷺ پهٔ سر مبارک باندې ئې اچوي، چې وينه اودرَوي؛ ځکه نور څهٔ دَ وينې اودرولو دپاره نهٔ وو، سيده فاطمه ؓ فرمائي: "چې ما دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پهٔ زخم کښې هغه پوزکے اچولو، نو دَ هغې سره هغه وينه اودريده"، نو دَ نبي ﷺ صفت څوک نهٔ کوي.

شيعه ګان دَ نبي ﷺ پهٔ صفت باندې غُصه کيږي، نو پهٔ دې مسلمانانو کښې هم دَ شيعه ګانو هغه اثر راشي نو چې دا محرم شي نو وائي: "ماتم مناؤو، غم دے"، نو هغوي څهٔ کوي؟ پهٔ دې محرم کښې ګاني به نهٔ غږيږي، ټي وي به نهٔ غږيږي وائي: ځکه دا محرم دے، مونږ وايُو: "دا دې ټول عمر نهٔ غږيږي، او دا دې الله ټول عمر بند کړي، مونږ خو پهٔ دې خوشحاليږو خو دا تهٔ ئې چې پهٔ کوم خيال بندَوې نو دا خيال دې صحيح نهٔ دے، مثلاً ټي وي، وي سي آر يا ريډيو دے نو صرف مرثيې

(1) [سورة النور: 63].

پرې روانې دي او کانې بجانې نهٔ دي نو دَ هغوي دَ شهادت مرثيې به وي"، دا حکومت هم دَ هغوي نه متأثره دے، وائي: "دا ځکه چې سيدنا حسين ﷺ پهٔ دې کښې شهيد شوے دے، نو پهٔ دې کښې غم کول پکار دي، نو اول خو دا سوچ پکار دے چې دا غم تازه کول جائز دي؟..."

## پهٔ شريعت کښې غم تازه کول

رسول الله ﷺ فرمائي: "دَ يَو زنانه دپاره دا جائز نهٔ دي چې دَ هغې پهٔ الله تعالی باندې ايمان وي او دَ الله پهٔ پيغمبر ﷺ ئې ايمان وي چې غم خپل مړي باندې دَ دريو ورځو نه سيوا غم تازه کړي، صرف دا واجب دي چې دَ يَوې زنانه خاوند وفات شو نو څلور مياشتې او لس ورځې به دا زنانه خفگان ښکاره کوي"، پهٔ دې زنانه باندې عدّت تيرول واجب دي، دا زنانه به پهٔ دې عدت کښې دننه دننه خوشحالي نهٔ کوي، سترکې به نهٔ تورَوي، ډول، سنګار به نهٔ کوي، دَ کور نه به بهر نهٔ اوځي، او نورو مسلمانانو دپاره دَ دريو ورځو نه سيوا غم نشته دے، دا تپوس نن پکار دے چې تاسو دا کال پهٔ کال غم تازه کوئ نو دا پهٔ کوم دين کښې دي؟

## دَ سيده ام حبيبه حالت ﷺ

حديث کښې راځي: ام حبيبه ﷺ دا دَ نبي ﷺ بي بي ده، دَ هغې پلار ابوسفيان ﷺ وفات شو، نو چې کله ئې پلار وفات شو، درې ورځې وريسې خفه وه، چې درې ورځې کله ختمې شوې او څلورمه ورځ شوه نو وائي: "ورشئ ما لره خوشبو وغيره (دنداسه او رانجهٔ) راوړئ"، خوشبو او دنداسه او رانجهٔ ئې رااوغوښتل، خوشبو ئې اولګوله، شونډې ئې سرې کړې او سترکې ئې پهٔ رنجو تورې کړې بيا ئې سر غوَړ کړو نورو ښځو ته ئې اووئيل: "وَاللهِ مَا لِي بِالطِّيبِ مِنْ حَاجَةٍ غَيْرَ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ، إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا»".(1)

"قسم پهٔ الله ما ته دَ خوشبو څهٔ ضرورت دے؟ خو صرف دا خبره ده چې ما دَ نبي ﷺ نه اوريدلي دي، چې وئيل ئې: چې رواه نهٔ دے دَ يَو زنانه دپاره چې پهٔ الله او پهٔ ورځې روستنئ ايمان لري دا ورله حلال نهٔ دي چې غم ښکاره کړي پهٔ يَو مړي باندې دَ دريو شپو نه سيوا هاں مګر پهٔ خاوند څلور مياشتې او لس ورځې".

(1) أخرجه البخاري في كتاب الطلاق، باب تحد المتوفى عنها زوجها أربعة أشهر وعشرا، برقم: (5334).

نو ام حبیبه ﷺ مونږ تولو ته دا تعلیم راکوي چې دَ دریو ورځو نه سیوا غم ښکاره کول نشته دے؛ ځکه خو دنداسه او خوشبو وغیره راغواړي او زنانو ته هم وائي: چې زما ډول او سنګار ته څهٔ حاجت دے؟ پهٔ شوندو سرې کولو، پهٔ سر غوړولو او پهٔ خوشبو لګولو زما څهٔ کار نشته دے؛ ځکه زهٔ خو بوډۍ ښځه یم، خو دا مې ځکه اوکړل چې ما دَ نبي ﷺ نه اوریدلي دي: "چې یَوې مسلمانې زنانه دپاره دا رواه نهٔ دي چې پخپل مړي دَ دریو ورځو نه سیوا غم اوکړي..."، نو غم صرف درې ورځې دے، تیک ده زړهٔ خو تول عمر خفه وي خو ظاهري شکل به دَ غم نهٔ جوړوې، طریقه دَ غم به نهٔ جوړوې، دا دَ نبي ﷺ بي بي وه او داسې ئې اوکړل، نو مونږ له هم دَ هغې اقتداء پکار ده چې دَ دریو ورځو نه سیوا غم پهٔ مړي نهٔ کوو.

پهٔ بعضې علاقو کښې اوس هم دا طریقه شته دے، چې غم اوشي او رومبنے اختر راشي، نو خلق به نوې کپړې اچوي او دَ مړي وارثان به زړو کپړو کښې ګرځي، او ژړاګانې کوي، وائي: "زمونږ پلار نشته!"، او مور وائي: "زما بچے نشته!"، وائي: "اختر راله خوند نهٔ راکوي".

او پهٔ بعضې علاقو کښې داسې وي: چې کتونه واچوي، خلق ورته بیا غم رازي کوي، ورته وائيَ: "خورې! خفه کیږه مه، دا ئې رومبنے اختر دے"، هغوي له بیا غم رازي کوي، او بیا دعاګانې شروع وي، ورته وایه: "چې کهٔ چائے ته مو زړهٔ شوے وي چائے اوڅښکئ خو غم بیا مهٔ تازه کوئ".

مسلمانانو رونړو! زمونږ اکثر کارونه دَ شرع خلاف دي، هسې تش وئیل دي عمل چرته دے؟ دا مونږ چې کوم تعزیت کوو، دا هم خلافِ شرع دے، مثلًا جنازه کښې شریک شوے ئې، چې دَ یَو مسلمان جنازه دې اوکړه نو بیا پهٔ تا باندې حُجرې ته دعاء دپاره تلل نشته دے، مونږ او تاسو جنازه هم اوکړو او دفن ئې هم کړو او بیا هم دریو ورځو پورې حُجره کښې دَ دعاء دپاره ناست یُوا.

دَ شریعت مسئله دا ده: چې مړے اوشو، مقبره کښې دفن شو، دَ مړي وارث به کور ته راشي، هغه سړے به ورته تعزیت له راځي چې کوم سړي جنازه نهٔ ده کړې، هغه چې راشي نو دَ مړي وارث ته به وائي: "الله تعالی دې صبر جمیل درکړي، او ستا مړي له دې الله تعالی مغفرت نصیب کړي"، او بیا زمونږ او ستاسو څهٔ طریقه ده؟ صرف دَ مړي هغه وارث ته به ځان ښایُو؛ ځکه چې دوه کسان لا رشي نو یَو به هم وائي: "دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ"، بیا به دا بل کس هم دعاء دپاره آواز اوکړي، نو چې څومره کسان تلي وي نو هر یَو به دغه آوازونه کوي او

لاس به اوچتوي، دا دعاء کول نهٔ وي خو بس صرف یَو عادت دے دَ خلقو جوړ شوے دے، اوس دَ دې خپل عادت نه مجبوره دي دا پرېږدولے نشي.

او زهٔ وایم: "چې دا چائے پهٔ دې حُجرو باندې بنده شي دا هم یَوْ خلافِ شرع طریقه ده، چائے خو پهٔ هغه چا ښکل غواړي چې پهٔ چا باندې غم دے"، هغه غریب دَ غم دَ وجې نه پرېشانه دے نهٔ ئې خوراک ته زړهٔ کیږي او نهٔ ئې ښکاک ته زړهٔ کیږي، او چې اودهٔ شي نو تپوس ترې نه اوکړه نو هغه دَ تولو نه زیات ستړے وي؛ ځکه هر یَو کس سره میلاویدل، هغه ته سلام کول دا خو آسان کار نهٔ دے، دَ پلار پهٔ غم دومره نهٔ وي پرېشانه څومره چې پهٔ دې دریو ورځو ناسته باندې پرېشانه وي، خو بس دا زمونږ رواج دے چې چائے به ورته هم اوړو او درې ورځې ناسته به ورسره هم کوو، لوئي حشر نشر وي دا ټول خلافِ شرع طریقې دي، دَ الله دَ رضاء دپاره عمل کوئ، خلق پرېږدَوئ چې څهٔ وائي نو وائي دې، چې جنازې ته تلے ئې نو دعاء له مهٔ ځه، او چې یَو ځل دعاء دپاره تلے ئې نو بیا دوباره دعاء دپاره مهٔ ځه، نو مونږ به پوره درې ورځې حاضري کوو، دَ دې هیڅ څهٔ ثبوت پهٔ شریعت کښې نشته دے، نو مقصد مې دا دے چې دا غم تازه کول پهٔ شریعت کښې نشته دے، شیعه ګان هر کال غم تازه کوي.

### دَ شیعه ګانو غلط کار

شیعه ګان غم څنګه تازه کوي؟ نو طریقه ئې دا ده: "څوک ګریوانونه شلَوي او څوک ځان تکوي"، دا خلاف شرع طریقه ده.

### ځان ټکوَل، ګریوانونه شلول او چغې اوباسل

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَطَمَ الخُدُودَ، وَشَقَّ الجُيُوبَ، وَدَعَا بِدَعْوَى الجَاهِلِيَّةِ».[1]

"زما امتي نهٔ دے هغه کس چې هغه (دَ غم پهٔ وخت کښې) مخونه پهٔ سپیړو وهي او ګریوانو نه شلَوي او چغې وهي پشان دَ چغو دَ جاهلیت".

نو اوګوره! نبي ﷺ دا درې صفاتو والا خلق یاد کړل چې دا زما امتیان نهٔ دي:

(۱) اول: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَطَمَ الخُدُودَ» زما امتي نهٔ دے، زهٔ به ئې شفاعت نهٔ کوم دَ هغه کس دپاره چې هغه باندې غم راشي او دے دَ غم پهٔ وخت کښې خپل مخ پهٔ سپیړو وهي او تکوي ئې،

---

(1) أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب ليس منا من شق الجيوب، برقم: (1294)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الإيمان، باب تحريم ضرب الخدود وشق الجيوب والدعاء بدعوى الجاهلية، برقم: (103).

دا عادت شیعه ګان هم کوي او دا عادت مسلمانان هم کوي، نو دا مخ تکول ناروا دي.

**(۲) دویم:** نبي ﷺ فرمائي: «وَشَقَّ الجُيُوبَ».زما امتي نهٔ دے، زهٔ به ئې شفاعت نهٔ کوم چې هغه پهٔ غم کښې کریوانونه شلَوي.

**(۳) دریم:** نبي ﷺ فرمائي: «وَدَعَا بِدَعْوَى الجَاهِلِيَّةِ» زما امتي نهٔ دے هغه څوک چې غم ورباندې راشي او هغه دَ جاهلیت چغې وهي، دورِ جاهلیت کښې به ئې دَ دې چغو دپاره پهٔ پیسو باندې ښځې راوستې او پهٔ دې دور کښې خو تولو زنانو ته چل یاد دے، نو اوس پهٔ پیسو راوستو ته ضرورت نشته، بعضې شیعه ګان هم داسې وي چې هغوي پهٔ پیسو باندې خلق راولي.

**دَ علامه ابن قیم ؒ قول**

علامه ابن قیم ؒ لیکلي دي: "ژړا پهٔ لس (۱۰) قسمه ده، یَو قسم ژړا پکښې ژړا بالأجرة ده، پهٔ پیسو باندې ژړل".

نو شیعه ګان ځان سره ډیر خلق پهٔ پیسو باندې راولي، ورته وائي: "حضرت حسین ؓ پسې اوژاړه"، نو هغوي ژاړي او ځان تکوي او مرثیې وائي. زهٔ وایم: "چې دَ چا زړهٔ خفه وي نو دَ هغوي دَ زړهٔ نه آواز نهٔ راوځي او چغې نهٔ اوباسي، او چې زړهٔ خفه نهٔ وي نو بیا به خامخه چغې اوباسي"، نو دا غم تازه کول پهٔ شریعت کښې نشته، دا بالکل خلافِ شرع دے، دَ شیعه ګانو اثر پهٔ بعضې مسلمانانو هم وي، مسلمانانو لره پکار دي چې دا اثر دَ خپلو ځانونو نه ختم کړي.

**دَ مولانا رشید احمد لدهیانوي ؒ قول**

پهٔ "احسن الفتاوی" کښې لدهیانوي ؒ تردې پورې ذکر کړې دي چې: "ډیر تأثرات دَ شیعه ګانو پهٔ مسلمانانو باندې شته، شیعه ګان امام حسین "عليه السلام" وائي نو بعضې مسلمانان هم هغه شان وائي"، لفظ دَ "امام" خو یَو زما او ستا پهٔ نزد باندې دے او یَو دَ هغوي پهٔ نزد لفظ دَ "امام" دے، ما او تا امام دَ حق پرستو مشر او پیشوا ته وایُو، دَ عزت لفظ ئې ګنړو او شیعه ګان چې دَ "امام" لفظ استعمالوي نو دَ شیعه ګانو مقصد دا وي: "چې دے عالِم دے پهٔ غیبو باندې، عالِم پهٔ ماکان او مایکون دے"، نو هغوي دیته "امام" وائي، نو ما او تا چې امام وایُو نو پهٔ یَو معنی ئې وایُو او هغوي چې امام وائي نو پهٔ بله معنی ئې وائي، نو کهٔ ما او تا خامخه لفظ دَ امام دَ حسین ؓ دپاره استعمالوو

نو پکار ده چې نورو صحابؤ ﷺ دپاره ئې هم استعمال کړو چې دَ شیعه ګانو دَ معنی هغه بوئې هم نرې ختم شي، نو مونږ له بیا داسې وئیل پکار وي: "امام ابوبکر ﷺ امام عمر فاروق ﷺ امام عثمان بن عفان ﷺ امام علي ﷺ، امام امیر معاویه ﷺ"، نو نورو صحابؤ ﷺ سره هم وئیل پکار دي، خو نورو سره زما او ستا خلهٔ عادت نهٔ ده علاوه دَ حسین ﷺ نه؛ ځکه چې دا اثر اصل کښې پهٔ مونږ کښې دَ شیعه ګانو نه راغلے دے.

شیعه ګان دَ حسین ﷺ سره "علیه السلام" وائي؛ ځکه هغوي حسین ﷺ له دَ پیغمبر درجه ورکوي نو بعضې ساده مسلمانان هم دَ حسین سره "علیه السلام" وائي، نو علماؤ ذکر کړي دي: "چې ادب دا دے چې دَ پیغمبر نوم یادَوئ نو "علیه السلام" ورسره وایئ، چې دَ صحابي نوم یادَوئ نو "ﷺ" ورسره وایئ او چې دَ أئمه نوم یادَوئ نو "رحمه الله" ورسره وایئ"، نو چې دَ سیدنا حسین "ﷺ" نوم یادَوئ نو "ﷺ" ورسره وایئ؛ مولانا رشید احمد لدهیانوي رحمه الله پهٔ "احسن الفتاوی" کښې یَو باب پهٔ دې دے "منکراتِ محرم"، پهٔ هغې کښې ئې دا هم ذکر کړي دي: "دَ شیعه ګانو پهٔ مسلمانانو باندې دومره پورې اثرات دي چې دوي خپل نوم هم دَ هغوي طرف ته منسوب کوي"، لکه مونږ او تاسو چې خپل نوم کیږدو نو دَ هغې سره تبرُّک دپاره دَ "محمد" نوم راوړو مثال پهٔ طور "محمد حسن"، "محمد حسین"، "محمد ابراهیم" او دغه شان نور نومونه شول هغې سره خلق "محمد" نوم راوړي دَ تبرک دپاره او شیعه ګان دَ خپلو نومونو سره دَ "سیدنا علي ﷺ"، "دَ حسن ﷺ"، او دَ "حسین ﷺ" نوم راوړي دِ تبرک دپاره، لکه هغوي وائي: "الطاف حسین"، الطاف پوره نوم دے خو دا حسین ورسره هغوي دَ تبرک دپاره راوړي، "فضل حسین"، دارنګې "فضل حسن"، "فیض الحسن"، "فیض الحسین"، او "عبد الحسن"، وغیره شو، داسې نومونه راجمع کول دا شرکي نومونه دي، دا پهٔ اصل کښې پهٔ مونږ باندې اثر دَ شیعه ګانو دَ طرف نه دے، نو داسې نومونه کیخودل جائز نهٔ دي.

**دَ محرم پهٔ ورځو کښې خیرات کول**

اکثر مسلمانان پهٔ دې ورځو کښې خیرات کوي، نو خیرات دا وي: "څوک شربتونه تقسیمَوي او څوک پیٔ تقسیمَوي" دا کار خلافِ شرع دے؛ او دهٔ دې غټه وجه دا ده: دا تخصیص دَ ایام (ورځو) پیغمبر ﷺ نهٔ دے کړے، پهٔ ټولِ کالِ کښې خیرات نهٔ کوي، نهٔ پیٔ ورکوې او نهٔ بل

څۀ... نو نن ئې ولې ورکوې؟ دا خو دَ مشرکانو سره مشابهت دے؛ پۀ دې وجه دا ټول کارونه خلافِ شرع دي نو تۀ ئې پۀ کوم خیال ورګوې؟ کۀ تۀ وائې: "پۀ دې ورځو کښې سیدنا حسین ﷺ او سیدنا حسن ﷺ دَ کربلا پۀ میدان کښې دَ تندې نه مړۀ شوي دي"، نو کۀ تۀ اوس هر څومره شربتونه اوڅښګوې نو هغوي له به ئې څۀ فائده اورَسوې؟ نا هیڅ فائده ئې ورله نۀ رسیږي بلکه دا خو ورته تا ډاکخانه جوړه کړې ده او تۀ ئې څښکې او دَ هغوي خیټې ته نۀ رسیږي، نو چې دَ تندې هغوي مړۀ دي نو تۀ څۀ له شربت څښکې؟ تۀ هغه شان ځان بهادر کړه او ځان پۀ دین شهید کړه، نو تا دلته شربت له زور ورکړے دے او هغوي هلته کښې دَ تندې مړۀ دي نو دَ دې څۀ فائده ده؟ بعضې خلق پېۓ تقسیمَوي، پۀ دې ورځو کښې خیرات کول جائز نۀ دي.

یَو حدیثِ مبارکه کښې راځي، اګر چې دا روایت ضعیف دے، نبي ﷺ فرمائي: "چا چې دَ عاشوراء پۀ ورځ روژه اونیوله، ځپل اولاد باندې ئې وسعت اوکړو یعني ډیر خوراک ئې پرې اوکړو نو دۀ له الله تعالی ټول کال فراحه رزق ورکوي"، شیخ القرآن ﷫ پرې "ضیاء النور" کښې رد کړے دے، مفتي رشید احمد لدهیانوي پۀ "احسن الفتاوی" کښې ذکر کړي دي: "چې دا روایت ضعیف دے"، پۀ دې کښې دَ شیعه ګانو سره مشابهت دے؛ لهٰذا پۀ دې ورځو کښې خپل کور ته عمده، عمده خوراکونه راوړل، پۀ دې خیال چې ما له به الله تعالی ټول کال فراحه رزق راکوي دَ شیعه ګانو سره مشابهت راځي، نو داسې کول نۀ دي پکار، روژه کښې نبي ﷺ دَ هغوي سره دَ مشابهت نه منع کړې ده نو پۀ نورِ څۀ کښې به مونږ څنګه دَ شیعه ګانو سره مشابهت اوکړو؟ دَ کولو نه ئې نۀ کول بهتر دي.

دا یَو څو منکرات ما ستاسو مخکښې ذکر کړل، منکرات دَ محرم خو ډیر زیات دي چونکه وخت لږ دے پۀ دې به اکتفاء کوو، الله دې زمونږ او ستاسو ټول کارونه دَ شریعت برابر کړي (آمین).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ

(سورة آل عمران: 31)

# موضوع

# دَ صفر دَ مياشتي رسومات

بتاريخ: 2005-12-23

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ صفر دَ میاشتې رسومات

اَلْحَمْدُ للهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾.(1)

وقال الله تبارك وتعالى في مقام آخر: ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾.(2)

وقال النبي ﷺ: «لَا عَدْوَى وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صَفَرَ».(3)

قابلِ قدر حاضرینو، عزتمندو مسلمانانو رونړوا دینِ اسلام بالکل کامل او مکمل دین دے، کومه یَوه خبره چې دَ دین ده او هغه دَ مسلمانانو دپاره ضروري ده نو قرآنِ کریم او احادیثو دَ رسول الله ﷺ دَ هغې وضاحت ئې مسلمانانو له کړے دے، او هغه مسئله ئې مسلمانانو له ښکاره کړې ده، هغه کارونه چې دَ هغې په کولو کښې مسلمانانو له اجر او ثواب وو نو هغه ئې هم ښودلي دي او هغه مسئلې او عقیدې او کارونه چې هغې کښې مسلمانانو له خیر وو نو هغه ئې هم ښودلي دي، او دَ کوم کارونو او عقیدې نهٔ ساتلو کښې چې دَ مسلمانانو خیر وو نو هغه ئې هم ښودلي دي،

(1) [سورة آل عمران: 31].
(2) [سورة الحشر: 7].
(3) أخرجه مسلم في كتاب السلام، باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح، برقم: (2220)

کهٔ عقائدو کښې يَو عقيده ساتل شو يا اعمالو کښې څهٔ عمل کول شو چې مسلمان ئې کوي نو شريعت کښې به ئې ګوري: چې دا کار زهٔ کوم نو دا پهٔ شريعت کښې شته او کهٔ نا؟ نو کهٔ وي نو کول ئې پکار دي او کهٔ نهٔ وي نو ځان ترې نه ساتل پکار دي، او کهٔ يَو کار نهٔ کولو سره متعلق وي، يَو سړے دے هغهٔ وائي: زهٔ دا کار نهٔ کوم نو دا نهٔ کول به ئې هم پهٔ شريعت کښې ګوري: چې دا کار نبي ﷺ نهٔ دے کړے نو ځکه ئې زهٔ هم نهٔ کوم، مطلب دا دے: چې الله رب العزة مونږ او تاسو پيدا کړي يُو، زمونږ او ستاسو مالک او خالق هغه الله تعالى دے، څهٔ چې الله رب العزة اوغواړي نو هغه کيږي، چې دَ الله تعالى اراده نهٔ وي نو هيڅ هم نشي کيدے.

**يَوغلط رسم**

يَو غلط رسم پهٔ دې خلقو کښې مشهور دے، چې الله تعالى پهٔ کال کښې دولس مياشتې پيدا کړي دي، بعضې ناپوهه مسلمانان يَو مياشتې ته سپيرهٔ وائي، چې دَ هغې نوم دَ "صفر" مياشت ده، ديته پهٔ سپک نظر ګوري، او دېته سپيرهٔ مياشت وائي، دا مسئلې ښخوا ډيرې وې الحمد لله ثم الحمد لله دَ قرآنِ کريم پهٔ درسونو او تعليماتو سره او دَ حق پرستو علماؤ پهٔ محنتونو سره ډير خلق پوهه شوي دي، او هغوي اوس دَ صفر دَ مياشتې سپيرهٔ والے نهٔ ګڼري، خو بعضې جاهلان اوس هم شته چې هغوي هغه دَ جاهليت خبرې راتينګې کړي دي، او پهٔ دې مياشت کښې شپيرهٔ والے ګڼري.

**دَ صفرې پهٔ مياشت کښې دوه کارونه**

پهٔ دې مياشت کښې ناپوهه مسلمانان دوه کارونه کوي: (۱) يَو دا: چې دا مياشت سپيرهٔ ګڼري تر يَوولسم تاريخه پورې، (۲) دويم دا چې دَ دې مياشتې پهٔ آخري چارشنبه، دَ شروع پهٔ ورځ باندې دوي دَ چورئ التزام کوي، چې مونږ به خامخه چوري کوو او هغه به خورو او خپلوانو کره به ئې هم ليږو، خوک نور خوارهٔ راوړي او هغه تقسيموي، دا دواړه کارونه، دا يَو عقيده او دا بل عمل دواړه دَ شريعت خلاف دي.

**اسلامي مياشتې**

اسلامي دولس مياشتې دي، پهٔ دې کښې يَو هم سپيرهٔ نشته، دَ هفتې اووهٔ ورځې دي او پهٔ دې کښې يَوه ورځ هم سپيرهٔ نشته، سپيرهٔ والے پهٔ مياشتو کښې نهٔ دے، سپيرهٔ والے پهٔ ورځو کښې نهٔ دے، سپيرهٔ والے دَ انسان دَ عمل پورې دے، کهٔ يَو انسان ښهٔ دے نو هغهٔ له به بدله ښه

میلاویږي او که دَ یو انسان عمل بد دے نو بدله به ورته خرابه میلاویږي، نو دا انسان پخپله سپیرۀ دے چې دا شرکي عقیده لري، پکار دا ده: چې مسلمانان دَ دې عقیدې نه ځان اوساتي، ځومره چې مسلمانان دي نو دا خبره دې دَ زړۀ نه اوباسي چې دَ صفرې میاشت سپیره ده.

## دَ نبي ﷺ دَ بعثت نه مخکښې دَ تورو تیرو جال

زمونږ او ستاسو محبوب پیغمبر محمد رسول الله ﷺ دَ راتلو نه مخکښې پۀ دې دنیا یَو تک تور جال دَ شرکیاتو او رسوماتو خور وو، پۀ هغه شرکیاتو کښې یَو شرک دا هم وو چې هغوي به دا دَ صفرې میاشت سپیرۀ ګڼړله، نو چې کله نبي ﷺ دنیا ته راغلے او دَ دعوت کار ئې شروع کړو، نو نبي ﷺ دَ دغه جاهلانو دا غلطه عقیده رد کړه او نبي ﷺ اوفرمائیل: "چې صفره میاشت سپیرۀ نۀ ده، پۀ صفره میاشت کښې هیڅ سپیرۀ والے نشته".

## دَ صفرې میاشت وجه تسمیه

دې ته به ئې دَ صفرې میاشت دې وجې نه وئیله؛ چې صفر دَ صِفر او خالي والي نه دے، هغوي به وئیل: "چې دَ صفرې میاشت کښې کورونه او جارې (دَ اوښانو ځایونه) دَ اوښانو نه خالي کیږي، او لوښي دَ پیو نه خالي کیږي"، نو نبي ﷺ پخپل زبانِ مبارکه دَ هغې رد اوکړو او نبي ﷺ اوفرمائیل: چې «وَلَا صَفَرَ» [1] "پۀ صفره میاشت کښې هیڅ قسم سپیرۀ والے نشته".

## دَ جاهلیت یَو څو کارونه

دَ جاهلیت یَو څو کارونه وو، چې هغه به هغوي کول:

(۱) یَو کار دَ هغوي دا وو: چې هغوي به دَ مرض دَ تعدیت نه ډیر زیات متأثره وو، او دا به ئې عقیده وه: چې یَو سړے بیمار شيَ نو دا بیماري دَ هغۀ نه بل ته لګي، او دا پۀ ملک کښې خوَریږي، نبي ﷺ دا عقیده رد کړه او نبي ﷺ اوفرمائیل: «لَا عَدْوَى». [2]

"دَ مرض لګیدل یَو بل ته نشته".

دَ یَو نه بل ته مرض نۀ لګي، نو احادیثو کښې خو دا راځي: چې نبي ﷺ کله کله دَ مریض سره دَ

(1) أخرجه مسلم في كتاب السلام، باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح، برقم: (2220).
(2) أخرجه مسلم في كتاب السلام، باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح، برقم: (2220).

اختلاط نه منع کړې ده، لکه حديث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «وَفِرَّ مِنَ المَجْذُومِ كَمَا تَفِرُّ مِنَ الأَسَدِ».[1]

"دَ هغې سړي نه چې دَ هغهٔ پهٔ بدن باندې جذام بيماري لګيدلې ده نو دَ هغهٔ نه داسې تيخته کوئ لکه څنګه چې تهٔ دَ زمري نه تيخته کوې".

دَ دې وجې نه تيخته کوه چې چرته تا ته دغه مرض اونهٔ لګي، جذام: يَو بيماري ده، چې دَ انسان دَ بدن نه غوښه غوَرځيږي، نو نبي ﷺ فرمائي: ځان ترې نه ساته.

## دَ محدثينو تشريح

محدثينو دَ دې تشريح کړې ده: چې اصل کښې خلق پهٔ دوه (۲) قسمه دي: يَو قسم هغه خلق چې دَ هغوي عقيده مضبوطه ده، بل قسم هغه خلق دي چې دَ هغوي عقيده کمزورې ده، نو دا ارشاد نبي ﷺ هغه خلقو ته کوي: چې دَ عقيدې پهٔ لحاظ کمزوري دي، نو نبي ﷺ فرمائي: چې جذامي نه ځان ساته.

## مضبوطه عقيده

او چې کله عقيده مضبوطه ده نو حديث کښې راځي: نبي ﷺ جذامي سړے راوستو او ځان سره ئې ډوډئ ته کښينولو، ورته وائي: ما سره ډوډئ ته کښينه، زما پهٔ الله تعالى اعتماد دے، خو دَ نبي ﷺ عقيده مضبوطه وه، اوس کهٔ چرې يَو سړي باندې الله تعالى تکليف او مصيبت راولي نو چې کله دهٔ دَ بيمار سړي سره کډون کړے وي نو دے وائي: دا راته دَ هغهٔ نه دا مرض اولګيدو، نو زړهٔ کښې به ئې شک پيدا کيږي او عقيده به ئې خرابيږي نو ځکه نبي ﷺ فرمائي: چې ځان ترې نه ساته، چې دَ يَو سړي زړهٔ کښې شک نهٔ راځي نو بالکل دې ورسره خوراک کوي، هيڅ ګناه نشته.

## دَ باندې دَ يَو سړي راتلل

يَو حديث کښې راځي: نبي ﷺ اوفرمائيل: دَ مرض لګيدل يَو بل ته نشته، دَ باندې يَو سړے راغلے وو، نبي ﷺ ته ئې اووئيل: "دَ الله پيغمبره ﷺ! زمونږ پهٔ باندو کښې ډير مزيدار مزيدار اوښان دي، او هغه دومره مزيدار اوښ وي لکه هوسئ نو کله چې مونږ دَ هغې اوښانو سره يَو پمن اوښ يَو ځائے کړو، نو دا پمن توب هغه نورو اوښانو ته هم اولګي، نو دَ دې پمن اوښ مرض دې نورو ته منتقل شي؟"، نبي ﷺ پهٔ ډير پهٔ آسانه باندې هغه پوهه کړو، ورته وائي: "دا ړومبنے اوښ چا پمن کړے دے؟

(1) أخرجه البخاري في كتاب الطب، باب الجذام، برقم: (5707).

چې دَ دې يَو اوښ نه ستا دا نور اوښان پمنان کيږي"، نو دا ړومبي اوښ چا پمن کړے وو؟ هغه له دا بيماري دَ کوم ځائے نه راغله؟ يعني کوم ذات چې دا ړومبي اوښ پمن کړے دے نو هغه ذات دا نور اوښان هم پمنان کولے شي، خو صرف دومره ده چې دَ چا عقيده کمزورې ده نو ځان دې ساتي، او کۀ عقيده ئې مضبوطه ده نو کۀ دَ هغه سره يَو ځائے هم خوراک کوي نو څۀ خبره نشته.

## دَ جاهليت دويم کار

(۲) دويمَ دَ جاهليت کار دا وو: چې خلق به پۀ لاره باندې تلل، څۀ کار له به تلل نو هغوي به پۀ اشياؤ کښې سپيرۀ والے کتلو، څۀ مطلب؟ سفر له به تلل، نو چې لاره کښې به ورته مرغۍ مخې له راغله نو کۀ مرغۍ به پۀ ښي طرف باندې لاړه نو دۀ به وئيل: "زما کار اوس کيږي"، او کۀ پۀ کڼ طرف باندې به لاړه نو دۀ به وئيل: چې "زما کار اوس نۀ کيږي"، نو دَ مرغۍ کڼ طرف ته تلل به ئې سپيرۀ ګڼړل، دَ دې وجې نه به بيا پۀ سفر نۀ تلو.

## دَ جاهليت دريم کار

دَ جاهليت به دريم کار دا وو: چې يَو سړے به پۀ لار روان وو، مخې له به ورله سپے راغلے يا به پيشو راغله يا به يَو بل سپک ځناور راغلے، چې هغه به دَ خلقو ذهن کښې سپک ښکاريدو نو پۀ سفر به بيا نۀ تلو وئيل به ئې: "نن راته مخې ته فلانکے ځناور راغلے دے، زما دا سفر دَ خير نۀ دے، دا بے خيره دے"، دا شرکي عقيده وه، نبي ﷺ اوفرمائيل: «وَلاَ طِيَرَةَ».[1]

"سپيرۀ والے به پۀ يَو څيز کښې هم نۀ ګڼړې".

## دَ عبد الله بن مسعود ﷺ روايت

عبد الله بن مسعود ﷺ وائي: چې نبي ﷺ درې ځله اوفرمائيل: «الطِّيَرَةُ شِرْكٌ، الطِّيَرَةُ شِرْكٌ».[2]

"پۀ څيزونو کښې سپيرۀ والے ګڼړل دا شرک دے، پۀ څيزونو کښې سپيرۀ والے ګڼړل دا شرک دے".

کۀ چرې تۀ وائې: "چې مصيبت ما له دَ فلانکي دَ وجې نه ميلاؤ شو"، نو دا دې شرک اوکړو؛ ځکه مصيبت صرف يَو الله راولي او صرف يَو الله ئې لرې کوي.

## دَ خلقو غلط اعمال

ډير داسې اعمال دي چې پۀ خلقو کښې غلط رائج دي، دَ هغې وضاحت:

(1) أخرجه البخاري في كتاب الطب، باب الجذام، برقم: (5707).
(2) أخرجه أبوداود في كتاب الطب، باب في الطيرة، برقم: (3910).

(۱) **یو عمل:** کارغهٔ چې راشي او آواز کوي، نو خلق وائي: "کارغهٔ! دَ ښو زیرے اوکړه"، یعني مطلب ئې دا وي: چې کهٔ کارغهٔ آواز کوي، نو وائي: کیدے شي چې څهٔ چل شوے وي، نو چې بیا څهٔ مصیبت راشي نو بیا وائي: "کوره! ما وئیل نه؟ چې څهٔ چل خو دے هسې خو کارغهٔ آوازونه نهٔ کول، اوکوره! هغهٔ شان اوشول کنه؟"، نو دا شرکي عقیده ده.

(۲) **دویم عمل:** کلهٔ کلهٔ څوي له وادهٔ اوکړي او اِنکور کور ته راولي، او چې کور ئې سمے اونهٔ خوري، جهګړي او اختلافات شروع شي نو بیا وائي: "زما دا اِنکور سپیرهٔ ده، چې مونږ کور ته راوستې ده نو زمونږ کور سمے نهٔ خوري"، دا دَ شرک عقیده ده، چې سپیرهٔ وه نو تا هغه وخت ولې کوله؟

(۳) **دریم عمل:** کلهٔ کلهٔ داسې وي چې کور واخلي نو وائي: "دا کور سپیرهٔ دے، چې مونږ دې کور ته راغلي یُو نو مونږ چرته روغه ورځ اونهٔ موندله"، دا دَ شرک عقیده ده.

(٤) **څلورم عمل:** وائي: "یره جي! چې دا فلانے سړے چې ما سره ملګرے شوے دے نو دے سپیرهٔ دے نو دَ دهٔ دَ لاسه زهٔ هم خراب شوم"، دا شرکي عقیدې دي.

(۵) **پنځم عمل:** ډیر دوکانداران هغوي هم داسې کوي، چې سحر وختي دوکان کولاؤ کړي نو ړومبے تا له پهٔ قرضو باندې سودا نهٔ درکوي، وائي: "دا ړومبے سودا ده خیر دے یَو پنځهٔ روپئ پکښې راکړه خو پهٔ قرضو باندې ئې مهٔ اوړه؛ ځکه بیا به زمونږ نه ټوله ورځ پهٔ قرضو باندې سودا کوي"، دارنګې پهٔ ړومبئ بوجئ چې شروع کوي، دَ دالو وي او کهٔ دَ چینئ وي او کهٔ دَ هر څهٔ وي، نو وائي: "دا ړومبئ شروع ده ما له نقدې پیسې راکړه، کهٔ پهٔ قرضو باندې ئې اوړې نو بیا به ټوله ورځ خلق پهٔ قرضو باندې سودا چلوي"، دا ټولې عقیدې دَ شرک دي، دَ دې نه ځان ساتل پکار دي. دارنګې چرته به خوابښې یا اِنکور ځائے جارو کولو نو دَ انسانانو او دَ بیزو دَ خپو سره به ئې جارو نهٔ لګوله؛ وائي: "جارو مهٔ لګوه دا خو سپیرهٔ ده ټول کور به کورے جارو شي، او ټول څاروي به رانه ختم شي او مړهٔ به شي".

سوتې به ئې دَ څاروو دَ ځائے نه جارو کولې نو څاروو ته به ئې پهٔ جارو ګُزار نهٔ ورکولو، وئیل به ئې: "چې کهٔ پهٔ جارو ئې وهې نو دې سره به ټول مال جارو شي"، دا شرکي عقیدې دي او دا غلطې عقیدې دي، جارو څوک نشي جارو کولے، دا میدان نشي جارو کولے نو څاروي به دَ

کوم ځائے نه جارو کړي؟ دا غلطې خبرې دي، ځکه خو نبي ﷺ اوفرمائیل: «وَلاَ طِيَرَةَ»،[1] "سپیرهٔ والے به پهٔ یو خیز کښې هم نهٔ کنړي"، نو پهٔ دې خیزونو کښې سپیرهٔ والے گنړل دا شرک دے.

**دَ کافرانو عقیده**

چې کله به کافرانو ته انبیاؤ بیان شروع کړو، نو هغه کافرانو به انبیاؤ ته وئیل: "تاسو سپیرهٔ يئ، ستاسو دَ وجې نه مونږ هم سپیرهٔ شو"، سورة یٰس کښې دَ انبیاؤ واقعه ذکر کوي، چې هغوي قوم ته بیان شروع کړو، نو قوم وائي: ﴿قَالُوا إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ لَئِن لَّمْ تَنتَهُوا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾.[2]

"ورته وائي: اے انبیاؤ! تاسو چې راغلي يئ نو ستاسو دَ وجې نه مونږ سپیرهٔ شو، کهٔ چرې تاسو منع نشوئ نو پهٔ کانړو به مو سمسار کړو، زمونږ دَ طرف نه به تاسو له دردناک عذاب اورَسیږي".

انبیاؤ علیهم السلام ورته اووئیل: مونږ سپیرهٔ نهٔ یو؛ ﴿طَائِرُكُم مَّعَكُمْ أَئِن ذُكِّرْتُم بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ﴾.[3]

"ستاسو سپیرهٔ والے تاسو سره دے..."، معنی څهٔ ده؟ تاسو پخپله سپیرهٔ يئ، ستاسو عمل سپیرهٔ دے، مونږ نهٔ يو سپیرهٔ کړي، "آیا کله چې تاسو ته نصیحت کولے شي نو تاسو داسې خبرې کوئ، بلکه تاسو یو قوم يئ مشرکان".

**دَ سیدنا موسی علیه السلام باره کښې دَ فرعونیانو خبرې**

دَ موسی علیه السلام باره کښې فرعونیانو وئیلي وو، قرآنِ کریم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿فَإِذَا جَاءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هَٰذِهِ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُ﴾.[4]

کله چې به دوي ته خوشحالي راغله، کال به آباد وو، قحط به نهٔ وو، فصل به ډیر وو، پیسې به ډیرې وې نو وئیل به ئې: "مونږ دَ دې لائق یو؛ ځکه مونږ ته دا میلاؤ شول، دا مونږ له دَ قابلیت دَ وجې نه میلاو شول"، او کهٔ پهٔ کوم کال به تکلیف او مصیبت راغے نو بیا به ئې وئیل: "چې دا دَ موسی علیه السلام او دَ هغهٔ دَ ملګرو دَ وجې مونږ سپیرهٔ شوي یو، خو چې دا موسی علیه السلام راغلے دے او مونږ نه ئې مسئلې شروع کړي دي نو مونږ دَ دهٔ دَ لاسه سپیرهٔ شو".

(1) أخرجه البخاري في كتاب الطب، باب الجذام، برقم: (5707).

(2) [سورة يس: 18].

(3) [سورة يس: 19].

(4) [سورة الأعراف: 131].

الله تعالی وائي: نا! موسٰی علیه السلام نهٔ يئ سپيرهٔ کړي، دَ هغهٔ ملګرو تاسو نهٔ يئ سپيرهٔ کړي:
﴿أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمۡ عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ﴾.[1]

"خبردار! يقينًا دَ دوي سپيرهٔ والے دَ الله سره دے، ليکن ډير دَ دوي نه نهٔ پوهيږي"، يعني دوي الله سپيرهٔ کړي دي، الله تعالی پرېږ دا مصيبت راوستے دے، الله رب العزة پرېږ دا تکليف راوستے دے، نو پهٔ يو څيز کښې سپيرهٔ والے ګڼړل دا شرک دے.

**بله غلطه عقيده**

رسول الله ﷺ فرمائيلي وو: «وَلاَ هَامَةَ».[2]

"هامه هم نشته".

دا "هامه" څهٔ ته وائي؟ علماء کرام ذکر کوي: "هام" ګونګي ته وائي. دا دَ دورِ جاهليت يَو غلطه عقيده وه او يَو غلط رسم وو: چې دَ ګونګي آواز به هغوي سپيرهٔ ګڼړلو، هغوي به وئيل: "چې دَ ګونګي پهٔ آواز کښې څهٔ خير نشته، بلکه پهٔ دې کښې شر دے"، دا غلطه عقيده وه؛ ځکه دَ مارغانو پهٔ آوازونو کښې خير او شر نشته، خير او شر يَو الله تعالی راولي، نو پهٔ جاهليت کښې به هغوي دَ ګونګي آواز سپيرهٔ ګڼړلو، چې دا سپيرهٔ مارغهٔ دے، دے چې دا آواز کوي نو دا شر دے او دا نقصان دے، نو نبي ﷺ فرمائي: «وَلاَ هَامَةَ» "دَ ګونګي پهٔ آواز کښې سپيرهٔ والے نشته".

او کله به دَ هغوي دا عقيده وه، دَ ځان نه به ئې منګهړت قيصې جوړې کړې وې: "چې کله انسان مړ شي او دَ هغهٔ اندامونه ختم شي او خاوري شي نو دَ هغهٔ دَ غوښو او هډوکو نه يَو مارغهٔ جوړ شي چې هغې ته "هام" وائي، او دے بيا ګرځي دَ هغهٔ ځائے حالات دلته راوړي او دَ دې ځائے حالات هلته اوړي"، وائي: "دا دَ مړي دَ روح نه جوړ شوے دے"، دا هم غلطه قيصه ده.

او کله به ئې دا وئيل: "کله چې څوک يَو سړے مړ کړي او وارثان دَ مړي دَ خپل مړي بدل وانخلي نو دَ هغهٔ مړي دَ کبرې نه دا ګونګے جوړيږي او دا الوزي او آوازونه کوي: چې "أَسْقُوْنِيٌ، أَسْقُوْنِيٌ، أَسْقُوْنِيٌ".

"زما بدل واخلئ".

(1) [سورة الأعراف: 131].
(2) أخرجه البخاري في كتاب الطب، باب الجذام، برقم: (5707).

ترڅو پورې چې وارثان دَ هغهٔ بدل نهٔ وي اغستے تر هغې پورې به دے چغې وهې او آوازونه به کوي"، نو چې دوي به دَ کونګي آواز واورېدو نو وئيل به ئې: چې ما له بدل نهٔ دے اغستے! نو ځکه دے آوازونه کوي، دا خبرې ټولې غلطې وې او غلطې عقيدې وې، نبي ﷺ دَ هغې رد اوکړو، نو نبي ﷺ دَ دې رد اوکړو او اووئې وئيل: "چې دا هامه نشته".

**بل يو غلط رسم**

پهٔ هغوي کښې بل يَو غلط رسم دا وو: چې هغوي به دَ صفرې مياشت سپيرهٔ ګڼړله نو نبي ﷺ اوفرمائيل: «وَلاَ صَفَرَ».(1)

"دَ صفرې مياشت سپيرهٔ نهٔ ده، هغې کښې څهٔ نقصان نشته".

دَ دې وجې نه اوس هم کوم خلق چې دَ صفرې مياشت سپيرهٔ ګڼړي نو ډيره ناپوهه مسلمانان هغوي دَ صفرې پهٔ مياشت کښې آبادے نهٔ کوي، وائي: "دا دَ صفرې مياشت کښې آبادے ځکه نهٔ کوو چې دا مياشت بے خيره ده، پهٔ دې کښې بيا خير نهٔ وي او بيا مونږ ته نقصان رسيږي"، دَ صفرې پهٔ مياشت کښې وادهٔ نهٔ کوي، دا دې دپاره کهٔ پهٔ دې مياشت کښې مونږ وادهٔ اوکړو نو هغه وادهٔ بيا بے خيره وي، دَ صفرې پهٔ مياشت کښې چې خوشحالي وي نو هغه خوشحالي روستو کوي! دَ دې دپاره چې دا دَ صفرې مياشت تيره شي، نو بيا به وادهٔ کوو، دا ياد اوساتئ! دا دَ شرک عقيده ده او غلطه عقيده ده او بعضې خلق وائي: "پهٔ مياشت دَ صفره کښې بَلا راځي او خلقو له نقصان رسَوي"، او خلقو ته وائي: "پهٔ دې مياشت کښې ډير مهٔ اوځئ! ځکه صفره ابئ به مو اووَهي"، دا خو اوس الحمد لله دَ ډيرو خلقو اصلاح اوشوه، پخوا به چې کله دَ صفرې مياشت تيره شوه او دَ ابئ کانو سره به لختې وې او دَ کوټې پهٔ کوټونو به ګرځيدې، وئيل به ئې: "دَ کور نه صفره اوباسم"، دا خومره غلطې خبرې وې پهٔ دې مسلمانانو کښې، اے مسلمانانو! هر څهٔ چې کوي، نو صرف يَو الله ئې کوي، الله چې څهٔ کوي هغه کيږي، الله چې څهٔ نهٔ کوي نو هغه هيڅ څوک نشي کولے.

**دَ سيدنا جابر ﷺ روايت**

عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «لاَ عَدْوَى، وَلاَ طِيَرَةَ، وَلاَ غُولَ».(2)

(1) أخرجه البخاري في كتاب الطب، باب الجذام، برقم: (5707).
(2) أخرجه مسلم في كتاب السلام، باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح، برقم: (2222).

" سیدنا جابر ﷛ فرمائي: چې جناب رسول الله ﷺ فرمائیلي: چې دَ مرض دَ یَو نه بل ته منتقل کیدل نشته، او سپیرهٔ والے نشته پهٔ څهٔ څیز کښې او "غول" نشته".

"غول" څهٔ ته وائي؟ دا څهٔ شے دے؟ نو دا یَوه بله غلطه عقیده وه دَ دې خلقو، اوس هم خلق وائي: "بَلا ده"، دا خلق چې بلاګانې یادَوي نو لا اوسه پورې دا چا لیدلې نه دي، چا ته پته نشته، هسې به وائي: بَلا ده، بَلا څهٔ شے دے؟ او ماشومان چې یَرَوي نو وائي: "چپ شه، بلا به راشي او اوبه دې خوري"، "بَلا" خو پهٔ عربئ کښې مصیبت ته وائي، بس مصیبت دے، هر مصیبت ته مصیبت وئیلے کیږي، پاتې شوه زمونږ دَ پښتو دا بلا چې خلقو دَ دې یَو شکل خپل ذهن کښې جوړ کړے دے نو دا ټولې منګهړتې قیصې دي؛ ځکه نبي ﷺ فرمائي: ﴿وَلَا غُولَ﴾ "بَلا نشته".

او بعضې خلقو به وئیل: ﴿غُوْلَ﴾ بَلا دیته وائي: "کله چې یَو سړے پهٔ شاړو او بیابانونو کښې روان وي نو دې پیریانو کښې یَو قسم دے چې هغه انسانانو ته ځان ښکاره کړي نو دې انسان نه لاره خطاء کوي او پهٔ بله لاره ئې بوځي او بیا هغه انسان مړ کیږي او هلاکیږي"، نو پهٔ دې وجه به خلق پهٔ شاړو کښې بیا ډیر یَریدل، نو نبي ﷺ دَ دې عقیدې رد اوکړو: "چې دا بلا نشته"، دا غلطې خبرې دي.

**دَ پیریانو وجود**

نبي ﷺ دَ پیریانو رد نهٔ دے کړے چې پیریان نشته، پیریان شته، پیریان خپل شکل هم بدلولے شي، خو دا کومه عقیده چې خلقو جوړه کړې ده، چې پیریان دَ ځان نه بلاګانې جوړَوي او بیا خلق مړهٔ کوي، دا غلطې خبرې دي؛ ځکه نبي ﷺ اوفرمائیل: چې ﴿وَلَا غُولَ﴾، "دا بلا نشته"، بهر حال خلقو دَ صفرې میاشت سپیرهٔ ګنړله، او څوک چې دَ صفرې میاشت سپیرهٔ ګنړي نو دا عقیده صحیح نهٔ ده، دا دَ شرک عقیده ده، پکار دا دي: چې مسلمانان دَ دې نه منع شي.

**دَ میاشتو تعداد**

ټولې دَ الله میاشتې دي، الله تعالی فرمائي: ﴿إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾.(1)

(1) [سورة التوبة: 36].

"يقينًا شمير دَ مياشتو پهٔ نزد دَ الله دولس (۱۲) مياشتې دي پهٔ كتاب دَ الله كښې دَ هغې ورځې نه چې دَ كومې ورځې نه الله تعالى آسمانونه او زمكه پيدا كړې ده".

دولس (۱۲) اسلامي مياشتې دي، پهٔ دې كښې يَوه مياشت هم سپيرهٔ نشته دے، اووهٔ ورځې دي، پهٔ دې ورځو كښې يَوه ورځ هم سپيرهٔ نشته، دا ټولې دَ الله ورځې دي، او ټولې دَ الله مياشتې دي، پهٔ دي كښې سپيرهٔ يَو ورځ يا يَو مياشت هم نشته، نو دَ ځان نه پهٔ دې كښې سپيرهٔ والے مهٔ كنړئ، نو دَ صفرې مياشت كښې سپيرهٔ والے نشته، څوک چې پهٔ دې كښې سپيرهٔ والے كنړي نو دا غلطه عقيده ده، نبي ﷺ فرمائي: "پهٔ صفره كښې سپيرهٔ والے نشته".

**بل غلط رسم**

پهٔ دې خلقو كښې يَو بل غلط رسم دے، او هغه دا دے: چې كله دَ صفرې دَ مياشت آخري چارشنبه شي يعني دَ شروع ورځ شي نو اكثر زنانه چورې كوي، نو چورې څهٔ وي؟ چې خوږه روټئ پخه كړي او بيا ئې چورې كړي، وائي: دا چورې شوه.

**دَ چورئ كولو وجه**

دا چورې څكه كوي، وائي: پهٔ دې مياشت كښې نبي ﷺ ناجوړه وو، نو چې آخري چارشنبه شوه نو لږ غوندې نبي ﷺ ښهٔ شوے وو، نو وائي: "چې كله نبي ﷺ لږ ښهٔ والے اوكړو نو دَ نبي ﷺ بيبيانو چورې كړې وه، نو څكه مونږ چورې كوو چې دَ نبي ﷺ صحت باندې خو مونږ هم خوشحاليږو، چې شكر دے چې نبي ﷺ لږ غوندې ښهٔ والے اوكړو"، نو دې كښې څو مسئلې دي: اوله دا: چې نبي ﷺ ته صحت ميلاؤ شوے دے نو پهٔ هغې ورځ به خوشحالي مناويږي او كهٔ نا؟ دارنګې پهٔ كومه ورځ چې نبي ﷺ پيدا شوے دے نو پهٔ هغه ورځ به خوشحاليږي مناويږي او كهٔ نا؟ دريم دا چې پهٔ كومه ورځ نبي ﷺ وفات شوے وو نو پهٔ هغه ورځ به غم مناويږي او كهٔ نا؟ اول دا مسئلې قابلِ غور دي، بيا دَ هغې نه روستو چې آيا دَ امهات المؤمنين نه پهٔ دغه ورځ چورې كول كوم ځائے كښې ثابت دي؟

مسلمانانو ياد اوساتئ! چې دَ نبي ﷺ دَ پيدائش كومه ورځ ده نو زمونږ دَ اهل السنة والجماعة عقيده دا ده: چې دغه ډيره دَ خوشحالئ ورځ ده، خو پهٔ دغه ورځ خوشحالي مناوول او عيد ميلاد النبي كول دا نشته دے، دا څيز پهٔ شريعت كښې نشته.

**دَ ځان سالګره مناوول**

ډیر خلق داسې وي چې هغوي دَ خپل ځان سالګره مناؤوئ، پهٔ کومه ورځ باندې چې دے پیدا شوے وي نو هغه ورځ چې کال کښې راشي نو دے څهٔ خیرات اوکړي، وائي: پهٔ دې ورځ زهٔ پیدا شوے ووم، پهٔ دې ملک کښې هم دا وائي: "دا یومِ پاکستان ده"، پهٔ دې ورځ پاکستان آزاد شوے دے، جشنِ آزادي مناؤوئ، دَ دې هیڅ حقیقت نشته دے.

**دَ نبي ﷺ دَ پیدائش خوشحالي مناؤول**

نبي ﷺ دَ خپل پیدائش خوشحالي نهٔ ده مناؤ کړې، دَ نبي ﷺ درې شپیتهٔ (٦٣) کاله عمر وو، پهٔ دې درې شپیتهٔ کاله کښې یَو ورځ هم نهٔ وائي: "چې راځئ! چې دا یَوم پیدائش خو مناؤ کړو، چې پهٔ باره ربیع الاول خوشحالي مناؤ کړو؛ ځکه پهٔ دې ورځ زهٔ پیدا شوے یم"، دارنګې دَ نبي ﷺ پهٔ ژوند کښې یَو صحابي هم دا خوشحالي نهٔ ده مناؤ کړې، دارنګې پس دَ وفات دَ نبي ﷺ نه بیا هم یَو صحابي هم دا خوشحالي نهٔ ده مناؤ کړې، ابوبکر ؓ چې دوست دَ نبي اکرم ﷺ وو، او داسې کلک دوست چې دَ هغهٔ هغه دوستانه او صحابیت قرآنِ کریم ذکر کړے دے، او دَ ابوبکر ؓ دومره لوئې شان دے، چې دا یَوه مسئله دَ هغهٔ دَ صحابیت باره کښې علماء کرام ذکر کوي:

**مسئله**

چې کهٔ څوک یَو سړے دَ بل صحابي ؓ دَ صحابیت نه منکر شي، دَ هغې نه انکار اوکړي نو دغه سړے ګناهکار دے، مبتدع دے، ګمراه دے، خو کافر ورته نشي وئیلے، خو کهٔ څوک یَو سړے دَ ابوبکر صدیق ؓ دَ صحابیت نه انکار اوکړي نو دا سړے کافر دے؛ ځکه دَ ابو بکر ؓ صحابیت دَ قرآن نه ثابت دے، قرآنِ کریم وائي: ﴿إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾.[1]

"کله چې نبي ﷺ خپل ملګري ته اووئیل: غمژن کیږه مهٔ؛ یقینًا الله زمونږ سره ملګرے دے".

نو دَ نبي ﷺ ملګرے ابوبکر ؓ وو، ابوبکر صدیق ؓ دوه کاله خلیفه وو، نو پهٔ دې دوو کالو کښې ابوبکر ؓ نه وائي: "چې زما حکومت دے او راځئ! دَ نبي ﷺ پهٔ پیدائش باندې خوشحالي مناؤ کړو، او څهٔ خیرات اوکړو او خوشحالي مناؤ کړو".

---

(1) [سورة التوبة: 40].

دارنکي دَ هغې نه پس عمر فاروق ﷜ خليفه دے، هغه عمر فاروق ﷜ چې نبي ﷺ وئيلي وو: "کهٔ چرې زما نه بعد بل نبي راتلے نو عمر فاروق ﷜ به پيغمبر وے"، ليکن عمر فاروق ﷜ پخپل دورِ خلافت کښې دَ نبي ﷺ دَ پيدائش خوشحالي نهٔ مناؤوئ. دغه شان سيدنا عثمان ﷜ خليفه دے، هغهٔ دَ نبي ﷺ دَ پيدائش ورځ نهٔ ده مناؤ کړې، سيدنا علي ﷜ نهٔ ده مناؤ کړې، صحابه کرامو ﷡ کښې يَو صحابي نهٔ ده مناؤ کړې، ائمه اربعه کښې يَو امام نهٔ ده مناؤ کړې، نو دا څنګه دين دے، چې شپږ سوه کاله بعد يَو ظالم بادشاه راغے او هغه شروع کړو؟ او ناپوهه او درباريانو مُليانو ورله ملکرتوب اوکړو، نو دا دين شو؟

دَ نبي ﷺ دَ وفات ورځ پهٔ هغې ورځ باندې بيا چا غم نهٔ دے تازه کړے، اوس پهٔ دې دور کښې شيعه ګان رالکي او دَ سيدنا حسين ﷜ پهٔ مرګ اظهار دَ غم کوي، ماتمونه او ويرونه کوي، ځانونه ټکوي، دَ سيدنا حسين ﷜ مقام ډير لوئي دے او کهٔ دَ نبي ﷺ مقام ډير لوئي دے؟ دَ سيدنا حسين ﷜ پهٔ شهادت به لوئي تکليف مومنانو له ميلاؤ شوے وي او کهٔ دَ نبي ﷺ پهٔ وفات به ډير غم مسلمانانو ته ميلاؤ شوے وي؟ تردې چې دَ سيدنا عمر ﷜ پشان شخصيت دَ ډير غم دَ وجې نه هغه اووئيل: "چې کهٔ دَ چا دَ خُلې نه مې واوريدل چې نبي ﷺ وفات شوے دے نو پهٔ توره به ترې نه سر کټ کړم"، هغوي نهٔ ګنړل چې ګني پيغمبر ﷺ باندې به هم مرګ راځي، خو ليکن دَ نبي ﷺ پهٔ وفات باندې اظهار دَ غم نشته دے، او کهٔ دَ نبي ﷺ پهٔ وفات ئې خوګ کوي نو دا هم جائز نهٔ دي.

نبي ﷺ فرمائيلي دي: "چې دَ دريو ورځو نه سيوا غم نشته"، دَ چا چې پهٔ الله او پهٔ ورځ دَ آخرت ايمان وي نو دَ دريو ورځو نه به سيوا غم نهٔ ښکاره کوي، هاا ښځه پخپل خاوند، چې دَ هغې خاوند وفات شي نو دَ هغې دَ غم وخت څلور مياشتې او لس ورځې دے، دا څلور مياشتې او لس ورځې به دا اظهار دَ غم کوي، خائست او زينت به نهٔ ښکاره کوي، بل چا سره به نکاح نهٔ کوي، دَ کور نه بهر به شپه نهٔ کوي، دَ نورو خلقو دپاره دَ دريو ورځو نه ما سيوا غم تازه کول دا ناجائز دي، بيا بيا غم تازه کول ناجائز دي، پهٔ دې کښې دَ شيعه ګانو سره ډير مسلمانان هم شريک وي.

بهر حال خبره مې دا کوله چې نبي ﷺ بيمار شوے دے بيا ورته څهٔ لږ صحت ميلاؤ شوے

دے، نو دَ هغې پهٔ خوشحالئ کښې اوس خیراتونه کول دا څهٔ دین خو نهٔ دے، دا خو دَ ځان نه یو رسم دے، چې نبي ﷺ ته صحت میلاؤ شوے وو، او مونږ اوس چوري کوو، چې دَ نبي ﷺ بیبیانو کړې وه، نو اول خو دا خبره ده چې بیبیانو خو به کړې وه خو تهٔ ئې ولې کوې؟ دویم دا چې څوک هم په دې جهان کښې داسې نشته، چې دا خبره ثابته کړي: چې نبي ﷺ دَ صفرې میاشت پهٔ آخري چارشنبه (شروع ورځ) باندې روغ شوے دے دَ بیمارئ نه، دا چا وئیلي دي: چې نبي ﷺ دَ صفرې پهٔ آخري چارشنبه دَ بیمارئ نه روغ شوے وو؟ حالانکه علماء کرام ذکر کوي:

**مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله لیکلي دي**

"چې دَ نبي ﷺ بیماري دَ صفرې میاشتې پهٔ آخري چارشنبه شروع شوي وه" (بہشتی زیور)، نو ابتداء دَ بیمارئ دَ دغې ورځې نه شوې وه، اوس ستا نه تپوس کوم چې تهٔ پهٔ دې خوشحاله ئې چې دَ نبي ﷺ بیماري لرې شوې ده او کهٔ پهٔ دې خوشحاله ئې چې شکر دے چې نبي ﷺ بیمار شوے دے، کهٔ وائې: چې بیماري ترې نه پهٔ دغه ورځ لرې شوې ده نو دا خبره خو هډو ثابته نهٔ ده، بلکه دا خو دروغ خبره ده او کهٔ وائې: "چې بیمار شوے دے شکر دے" نو دا خو دَ کافرو کار شو چې دَ نبي ﷺ پهٔ بیمارئ باندې خوشحالیږي، تهٔ سوچ اوکړه؟ اصل کښې دا عقیده پهٔ مسلمانانو کښې اغیارو رادننه کړې ده؛ دَ دې دپاره چې مسلمانان پهٔ څهٔ ګند کښې مبتلاء کړي، عزتمندو مسلمانانو! پهٔ آخرئ چارشنبه دَ صفرې میاشت نبي ﷺ ته صحت نهٔ دے میلاؤ شوے بلکه پهٔ دغه ورځ خو دَ نبي ﷺ دَ بیمارئ ابتداء شوې وه، مرض نور سیوا کیدو، دَ هغې نه بیا وفات شو.

**عبدالرحمن بن جوزي رحمه الله لیکلي دي**

دَ دهٔ کتاب دے "الوفاء بأحوال المصطفٰی" پهٔ هغې کښې وائي: "اِبْتَدَأَ بِهٖ صَدَاعٌ فِي أَوَاخِرِ صَفَرَ سَنَةَ إِحْدٰی عَشَرَةَ مِنَ الْهِجْرَةِ".

"دَ نبي ﷺ دَ سر درد دَ صفرې پهٔ کال یوولسم دَ هجرت باندې پهٔ آخرینو ورځو کښې شروع شوي وو".

نو دَ نبي ﷺ بیماري دَ صفرې پهٔ آخري چارشنبه شروع شوې وه.

**ابن الحجر رحمه الله پهٔ "فتح الباري" کښې لیکلي دي**

"اِشْتَکٰی رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ لِلَیْلَةٍ بَقِیَتْ مِنْ صَفَرَ".(1)

(1) انظر: "فتح الباري" لابن الحجر العسقلاني: (130/8).

"دَ نبي ﷺ بیماري شروع شوه پهٔ ورځ دَ شورو باندې دَ صفرې پهٔ میاشت کښې چې یوه شپه دَ صفرې میاشت پاتې وه".

**محمد بن عبد الوهاب رحمه الله لیکلي دي**

دَ دهٔ مختصر کتاب دے "سیرة الرسول"، هغې کښې وائي: "وَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الاِثْنَيْنِ لِأَرْبَعِ لَيَالٍ بَقِينَ مِنْ صَفَرَ سَنَةَ إِحْدٰى عَشَرَةَ".(1)

وائي: کله چې دَ شورو ورځ شوه دَ نبي ﷺ دَ سر درد او تبه شروع شول، دَ شورو پهٔ ورځ دَ نبي ﷺ بیماري شروع شوي وه.

**الحاج عباس ذکر کوي**

"اِبْتَدَءَ الْمَرَضُ بِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِي أَوَاخِرِ شَهْرِ صَفَرَ مِنْ سَنَةِ إِحْدٰى عَشَرَةَ مِنَ الْهِجْرَةِ وَأَغْلَبُ الرِّوَايَاتِ تَدُلُّ عَلٰى أَنَّهَا كَانَتْ لَيْلَةَ الْأَرْبِعَاءِ".(2)

"دَ نبي ﷺ مرض (مرضِ وفات) شروع شوے وو دَ صفرې میاشت پهٔ آخرینو ورځو کښې یوولسم کال دَ هجرت وو، او غالب روایات پهٔ دې کښې دلالت کوي چې دا دَ شورو شپه وه".

نو مسلمانانو رونړو! دا خبره غلطه ده، چې خلق وائي: چې نبي ﷺ ته پهٔ دې ورځ باندې صحت میلاؤ شوے وو، نو بیبیانو ئې دَ شکرئې پهٔ طور چوري کړي وه.

مسلمانانې میندې، خویندې دَ دې نه خبر کړئ چې دا رسم پریږدي، بل دا چې بعضې خلق وائي: "چې مونږ دَ نبي ﷺ پهٔ بیمارئ چوري نهٔ کوو او نهٔ ئې دَ نبي ﷺ پهٔ صحت باندې کوو بلکه دا مونږ هسې کوو او زمونږ ورته زړهٔ شوے دے"، نو زهٔ وایم: "چې ټول کال دے، دولس میاشتې دي نو پهٔ نورو ورځو کښې تاسو چوري ولې نهٔ کوئ؟ چې صرف پهٔ دغه ورځ ئې کوئ، دا یو غلطه خبره ده، مخکښې میاشت تیره شوه هغې کښې چوري اوکړه، روستو ورځ باندې اوکړه، هره ورځ ځان له چوري کوه، خو چې دې یوې ورځې پورې ئې خاص کوې نو پهٔ دې کښې څهٔ چل دے؟ دا تخصیص پهٔ شریعت کښې نشته، تخصیص دَ ایامو به نهٔ کوې"، اوس چوري ښه ده او کهٔ متهائي ښه ده؟ چې تهٔ خامخه چوري کوې، او دې میاشت له ئې څو باقاعده دَ چورئ نوم کیخودلے وو، مطلب ئې دا وو:

(1) انظر: "مختصر السيرة" لمحمد بن عبد الوهاب: (246/1).
(2) انظر: "تاريخ الحرمين الشريفين" (281).

چې دا هغه مياشت ده چې په دې کښې خلق چوري کوي، نو دا يو رسم خلقو کښې خور شوے دے، ډير غلط رسمونه خوارهٔ دي نو يو غلط رسم پکښې دا دے.

مسلمانانو رونړوا په دې چورئ ګناه ميلاويږي، په دې ثواب نهٔ ميلاويږي، بلکه دا بدعت دے، کهٔ څوک ئې هم ثواب ګنړي نو دا بدعت دے، او کهٔ څوک ئې په دې خيال کوي: چې نبي ﷺ ته صحت ميلاؤ شوے دے، نو دا خيال هم صحيح نهٔ دے؛ ځکه نبي ﷺ پکښې بيمار شوے دے، دَ دې نه ځان اوساتئ، کهٔ څوک درته چوري راوړي نو ورته وايه: "زهٔ ئې نهٔ خورم"، دَ دې نه نفرت اوکړه؛ دَ دې دپاره چې خلق دا رسم پريږدي.

**مفتي شفيع رحمه الله ليکلي دي**

دا يو ډير بهترين عالم تير شوے دے، چا چې "معارف القرآن" ليکلے دے، دَ دهٔ نه تپوس شوے دے: "چې دَ صفرې دا مياشت سپيرهٔ ده او کهٔ نهٔ ده؟ او په دې کښې دا چوري کول څنګه دي؟"،نو جواب کښې ورته ليکي: الجواب: *"دونوں باتیں بالکل بے اصل اور غلط ہے بلکہ حدیث میں ماہ صفر کا کوئی خاص اہتمام وارد نہیں ہے"*، "دا دواړه خبرې بالکل بے اصله او غلطې دي، بلکه حديث کښې دا راغلي دي: چې دَ صفرې دَ مياشت خاص څهٔ اهتمام به نهٔ کوئ، دَ هغې نه منع راغلې ده: «وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صَفَرَ»".[1] حديث ئې ذکر کړے دے، بيا وائي: *"مسلمان کا بڑا کام اور سب سے بڑی عبادت یہی ہے کہ سرورِ کائنات کا اتباع کرے، اتباع کرنے میں اس میں اچھی طرح علماء سے تحقیق کرے: کہ یہ فعل حضور ﷺ سے ثابت ہے یا نہیں؟"*.[2] "دَ مسلمان لوئي کار او لوئي عبادت دا دے چې دے دَ خپل پيغمبر ﷺ تابعداري اوکړي او په تابعدارئ کولو کښې دې دَ خائسته خائسته علماؤ نه تپوس اوکړي چې زهٔ دا کار کوم چې دا دَ نبي ﷺ نه ثابت دے او کهٔ نا؟". مطلب ئې دا دے: چې صرف په اوريدو باندې اتباع نهٔ کيږي.

**مفتي رشيد احمد لدهيانوي رحمه الله ليکلي دي**

دا هغه عالم دے چې لس (۱۰) جلده کښې کتاب "احسن الفتاوٰی" ئې ليکلې ده، دے وائي: *"یہ منگھڑت عقیدہ ہے؛ اسلئے ناجائز اور گناہ ہے"*.[3]

(1) أخرجه مسلم في كتاب السلام، باب لا عدوى، ولا طيرة، ولا هامة، ولا صفر، ولا نوء، ولا غول، ولا يورد ممرض على مصح، برقم: (2220).

(2) انظر: "إمداد المفتيين".

(3) انظر: "أحسن الفتاوى" (360/1).

"دا عقیده چې پهٔ دې میاشت کښې خلق سپېرهٔ والے کنړي او خلق پهٔ دې میاشت کښې چوري کوي نو دا بے اصله او منکهړته ده؛ ځکه دا ناجائز او ګناه ده".

**مفتي سيد عبد الرحيم لاجپوري رحمه الله ليکلي دي**

*"اس سے ثابت ہوتا ہے کہ اٹھائیس (۲۸) صفر چارشنبہ کے روز آنحضرت ﷺ کے مرض میں زیادتی ہوئی تھی، اور یہ دن ماہ صفر کا آخری چارشنبہ تھا، یہ دن مسلمانوں کے لئے خوشی کا نہیں، البتہ یھود کے لئے خوش مانی کا دن ہے"۔*

"دَ دې نه ثابتيږي چې دَ صفر پهٔ اتهٔ وېشتمه ورځ دَ نبي ﷺ مرض کښې نوره اضافه راغله او دا دَ شورو ورځ ده او دا دَ مسلمانانو دپاره دَ خوشحالۍ ورځ نهٔ ده بلکه دا دَ یهودو دپاره دَ خوشحالۍ ورځ ده".

پهٔ دې کښې یهود خپله خوشحالي مناووي؛ ځکه چې هغوي ته خو پته ده چې نبي ﷺ پهٔ دې ورځ باندې بیمار شوے وو، نو زما عزتمندو مسلمانانو! کهٔ تاسو پهٔ دې خوشحالیږئ چې پهٔ دې ورځ باندې نبي ﷺ ته صحت میلاؤ شوے دے نو دا دروغ خبره ده بلکه پهٔ دې کښې خو دَ نبي ﷺ بیماري نوره سیوا شوي ده، نو کهٔ دا دَ خوشحالۍ ورځ وه نو دا خو دَ یهودو وه، هغوي خوشحالیدل چې شکر دے چې نبي ﷺ بیمار شوے دے، او دَ دنیا نه لاړو، دَ مسلمانانو دپاره خو دا دَ خوشحالۍ ورځ نهٔ ده، نو مسلمانانو لره پهٔ دې ورځ خوشحالي مناؤول پکار نهٔ دي.

**مفتي رشيد احمد جانشين مفتي محمد صاحب رحمه الله وائي**

دَ هغهٔ کتاب دے "*آپ کا مسائل اوان کا حل*"، هغې کښې وائي: "دَ صفرې پهٔ آخرۍ چارشنبه چې کوم تقریبات کیږي او کومه چنده تقسیمیږي نو دا بالکل منکهړت، بدعت او بے اصله ده".(1)

**مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله وائي**

"پهٔ آخري چارشنبه چې کومه چوري کیږي، نو دا ناجائز او بدعت دے".

مسلمانانو رونړوا دا شے بدعت او ناجائز دے، دَ دې نه ځان اوساتئ! چا چې مخکښې کړې ده نو دَ هغې دې دَ الله نه معافي اوغواړي، او آئنده دپاره دې دَ دې رسم نه ځان اوساتي.

(1) انظر: "آپ کا مسائل اوان کا حل" (137/1).

الله رب العزة دې مونږ او تاسو له دَ صحیح عمل کولو توفیق رانصیب کړي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حٰمٓ ۝ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ۝ فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ

(سورة آل عمران: 1-4)

# موضوع

# دَشعبان دَمياشت رسم

**بتاريخ: 15-07-2011**

**مقام: جلسئ**

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ شعبان دَ میاشت رسم

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِه وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهُ وَلَا آخِرَ لَهُ لَا ضِدَّ لَهُ وَلَا نِدَّ لَهُ وَلَا مُمِدَّ لَهُ وَلَا بَشِيْرَ لَهُ وَلَا نَذِيْرَ لَهُ وَلَا وَزِيْرَ لَهُ وَلَا مُشِيْرَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِه وَأَصْحَابِه وَسَلَّمَ عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿حٰمٓ * وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ * إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ * فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ * أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ * رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾.[1]

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ، فَهُوَ رَدٌّ».[2]

عزتمندو حاضرینو مسلمانانو رونړو! ما چې کوم آیتونه مبارکه تلاوت کړل پهٔ هغې مبارکو آیتونو کښې الله رب العزة دَ قرآنِ کریم عظمت او دَ لیلة القدر عظمت ذکر کوي، دا دَ سورة الدخان ابتدائي آیتونه دي، دا آیتونه مبارکه ما دَ دې وجې نه تلاوت کړل چې دَ دې تفسیر او تشریح کښې بعضې خلق خطا شوي دي، دَ دې آیتونو مقصد دَ لیلة القدر عظمت دے، بعضې ناپوهه دَ کم علمئ پهٔ وجه دغه فضیلت دَ پنځلسم (۱۵) شعبان دپاره کنړي.

خومره مفسّرین چې دي هغه ټول دَ دې آیت پهٔ تفسیر کښې لیکي: چې "دَ دې نه مراد لیلة القدر ده"، او بعضې قصه کو مُلیان او ناپوهه عوام هغوي کښې دا مشهوره ده: وائي: "دا نصفِ شعبان دے"، یعني دا هغه شپه ده چې پهٔ دې کښې: ﴿فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ﴾.[3] وائي: پهٔ دې کښې دَ کال فیصلې کیږي: چې سړے به جنتي وي، او کهٔ جهنمي به وي؟ عمر به ئې خومره

(1) [سورة الدخان: 1- 6].

(2) أخرجه البخاري في كتاب الصلح، باب إذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود، برقم: (2697).

(3) [سورة الدخان: 4].

وي؟ دے به پۀ دې کال کښې حج له ځي او کۀ نۀ به ځي؟ وائي: یو سړے بازار کښې روان وي او ښۀ خوشحاله وي او دَ هغۀ نوم دَ مړو پۀ لِسټ کښې لیکلے شوي وي، چې دے به پۀ دې کښې کال کښې دننه دننه مړ کیږي، دَ عوامو پۀ نزد پنځلسمه (۱۵) شپه دَ شعبان پۀ لیلة القدر کښې دَ شرافتْ او دَ عظمت سره برابروي، او څنګه چې خلق دَ لیلة القدر دپاره تالاش کوي او کرځي چې ذا به پۀ کومه شپه باندې وي؟ نو دغه شان دَ پنځلسم (۱۵) دَ شعبان معلومات هم کوي، چې پنځلسم شعبان کلۀ دے؟ چې زمونږ نه هغه شپه قضاء نشي، چې مونږ به پۀ هغې کښې نوافل اوکړو، تهجّد اوکړو، هغه ورځ رانه فوت نشي چې پۀ هغې ورځ مونږ روژه اونیسو؛ ځکه دَ دې روژې ډیر ثواب دے.

إن شاء الله زۀ تاسو ته دا خبره واضحه کوم: چې دَ پنځلسم شعبان دَ شپې هم څۀ فضیلت نشته او نۀ دَ هغې دَ روژې دَ نیولو څۀ داسې اهمیت شته، دا کوم فضیلت چې ستاسو ذهن کښې دے، دا دَ لیلة القدر متعلق دے.

دَ لیلة القدر شپه مبارکه ده، دَ دې یوې شپې عبادت دَ زرو (۱۰۰۰) میاشتو دَ عبادت نه بهتر دے؛ ځکه الله رب العزة وائي: ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ﴾.[1]

"مونږ قرآنِ کریم پۀ مبارکه شپه کښې رالیږلے دے".

نو چې دَ دې نه پنځلسم دَ شعبان مراد شي نو دا مطلب شو: چې کني پۀ پنځلسم شعبان باندې قرآن راغلے دے، حالانکه داسې نۀ ده، قرآنِ کریم پۀ لیلة القدر کښې راغلے دے، هغه لیلة مبارکة چې ده نو هغۀ "لیلة القدر" ده، لکه قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ * وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ * لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾.[2]

"مونږه دَ قرآنِ کریم دَ نزول شروع چې کړې ده نو پۀ لیلة القدر کښې مو کړې ده، تۀ څۀ خبر پوهه کړې چې لیلة القدر څۀ دے؟ دَ لیلة القدر دَ یوې شپې عبادت دَ زرو (۱۰۰۰) شپو دَ عبادت نه بهتر دے".

لیلة القدر پۀ کومه میاشت کښې ده؟ نو هغۀ پۀ پنځلسم شعبان کښې نۀ ده، بلکه هغۀ دَ رمضان پۀ میاشت کښې ده، او دَ هغې دپاره هم دَ قرآنِ کریم آیت دے: الله رب العزة فرمائي:

---

(1) [سورة الدخان: 3].

(2) [سورة القدر: 1- 3].

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾.[1]

"میاشت دَ رمضان هغه ده چې په هغې کښې قرآن راغلے دے".

نو یو ځائے کښې وائي: ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُبَارَكَةٍ﴾،[2] بل ځائے کښې وائي: ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾،[3] او بل ځائے کښې وائي: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾،[4] هغهٔ مبارکه شپه دَ لیلة القدر ده، او لیلة القدر دَ رمضان په میاشت کښې ده، دَ قرآن دَ آیتونو نه دا خبره معلومیږي: چې قرآنِ کریم په لیلة القدر کښې راغلے دے، او لیلة القدر په رمضان کښې ده، او دغه فیصلې دَ رزق چې کیږي نو هغهٔ په لیلة القدر کښې کیږي، دَ انسان شقاوت او سعادت چې لیکلے کیږي، دَ انسان عمر چې لیکلے کیږي دا په لیلة القدر کښې کیږي، دَ هغې لیلة القدر سره څهٔ مناسبت نشته.

**شبِّ براءت**

په عوامو کښې دَ شعبان نوم مشهور دے په "شبِّ براءت"، او په "پنځلسم شعبان" باندې ئې نهٔ پیژني، وائي: دا شبِّ براءت دے، دا یاد اوساتئ! دیته شبِّ براءت وئیل دَ دې څهٔ ثبوت نشته، عوام پوهه نهٔ دي، او دا مشهور متل دے: "نیم حکیم خطره جان، نیم مُلا خطره ایمان"، دَ نیم کړي حکیم نه چې سړے علاج کوي نو دَ نور بدن دَ خرابیدو خطره ده، او دَ نیم کړي ملا نه چې سړے مسئله اوري نو دَ دې شته ایمان نه دَ خلاصیدو خطره ده، دا عوام چې څهٔ زده کوي او څهٔ اوري، دا دوي دَ ځان نه نهٔ شروع کوي، دوي چې څهٔ واوري نو هغه پخپل عمل کښې راولي، خو مصیبت دا دے: چې ضعیف او منکهرت خبرې عمر کښې یَو ځل واوري نو هغه ترې تول عمر نهٔ هیریږي، او کهٔ صحیح خبره ورته هر وخت کوې نو هغهٔ نهٔ زده کوي، او هغه ئې ذهن کښې نهٔ کیښني؛ ځکه چې دَ شیطان ورسره هم ملګرتوب وي، هغه هم وائي: اکهٔ دهٔ دا صحیح خبره زده اکړه او په دې باندې ئې عمل اوکړو نو بیا خو کار خرابیږي، کوشش شیطان داسې کوي: چې خلق په داسې کارونو کښې مبتلاء کړي چې ثواب پکښې نهٔ وي، او بدن پرې سترے کیږي.

دا یَو رساله ده او ډیره بهترینه رساله ده، په دې رساله کښې دَ دې مسئلې ډیر خائسته وضاحت شته، دَ دې نوم دے: "سات مسائل"، په دې کښې اووهٔ (۷) مسائل دي، په اووهٔ مسائلو دا رساله لیکلے

(1) [سورة البقرة: 185].
(2) [سورة الدخان: 3].
(3) [سورة القدر: 1- 3].
(4) [سورة البقرة: 185].

شوې ده، فقيه العصر، مفتي اعظم، حضرت اقدس مفتي رشيد احمد رحمه الله دا "سات مسائل" دَ دهٔ رساله ده، دا دَ کراچۍ يَو بهترين عالم تير شوے دے، اوسَ وفات دے، "احسن الفتاوٰی" هم دهٔ ليکلې ده، نو دې رساله کښې پوره وضاحت دَ دې کړے دے، او کوم علماء ديوبند يا کومو احنافو علماؤ چې دَ دې شپې فضيلت ثابت کړے دے نو دهٔ پهٔ هغوي هم کلام کړے دے، لکه مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله پهٔ "بہشتی زیور" کښې ليکلي دي: "چې دَ پنځلّسم شعبان ډير فضيلت دے"، او "اصلاح الرسوم" کښې ئې ليکلي دي: "چې دَ دې ډير فضيلت دے".

نو بعضې خلق چې نهٔ پوهيږي نو هغوي چې پهٔ دغه کتابونو کښې اوګوري نو وائي: اوګوره! مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ليکلي دي: چې فضيلت ئې شته، او تاسو ئې نهٔ منئ، نو عزتمندوا دَ مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله صرف "بہشتی زیور" او "اصلاح الرسوم" نهٔ دے ليکلے، نور کتابونه ئې هم ليکلي دي، "امداد الفتاوٰی" دَ مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله کتاب دے، او پهٔ هغې کښې مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله رجوع کړې ده: چې "زما دا خبره صحيح نهٔ ده، اوس زهٔ پهٔ حقيقت باندې پوهه شوم او دا څيز صحيح نهٔ دے"، نو دا وينې او هغه نهٔ وينې، او دَ دې رسالې (سات مسائل) پهٔ حواله به زهٔ تاسو ته هغه عبارت ذکر کړم.

**مولانا رشيد احمد لدهيانوي رحمه الله ليکلي دي**

وائي: پهٔ دې کښې څو خبرې واورئ:

**(۱) اوله خبره:** "اس رات کا نام "شبِ براءت" کسی روایت سے ثابت نہیں".[1]

"دَ پنځلّسم شعبان دَ دې شپې دپاره "شبِّ براءت" نوم کيښودل دَ هيڅ يَو روايت نه ثابت نهٔ دے"، حالانکه دا نوم پهٔ خلقو کښې مشهور دے، او دا خبره به زهٔ تاسو ته واضحه کړم، چې دا نوم ورته شيعه ګانو کيخودلے دے، او پهٔ دې ملک کښې پهٔ دې شپه باندې شيعه ګان ډير زيات خوشحاله وي، او پهٔ دې مسلمانانو کښې رو رو دَ هغوي هغه زهر راخوريږي، او دوي پهٔ ځان نهٔ پوهيږي.

**(۲) دويمه خبره:** "دوم: اس میں نزولِ قرآن اور تقدیر کے فیصلے ہونے کے خیالات نصِّ قرآن کے خلاف ہے".

وائی: "پهٔ دې کښې دَ قرآنِ کريم دَ راتلو متعلق او دارنګې دَ تقدير دَ ليکلو فيصلې دَ هغې

(1) انظر: "سات مسائل".

خيالات چې کوم دي دا دَ قرآنِ کريم دَ نص نه خلاف دي".

"اس بارے میں کوئی روایت بھی ایسی قوی نہیں کہ اس کا قرآن سے تعارض رفع کرنے کیلئے شافی ہو، سوائے اس کے کہ مختلف بے بنیاد تاویلات بعید تلاش کرنے پر محنت کی جائے".

وائي: "هيڅ يَو صحيح روايت پهٔ دې کښې نشته چې کني مونږه دَ قرآن سره دَ هغې تعارض دفع کړو، سيوا دَ دې نه چې مختلف بے بنياده او لرې لرې تاويلاتو تلاش کولو باندې محنت اوکړے شي (کوم روايات چې دي هغهٔ بے بنياده دي)".

(۳) **دريمه خبره**: دَ عوامو پهٔ ذهن کښې دا دي: چې پهٔ دې شپه کښې دې خومره خيرات اوکړو، او مړو له دې ثواب اوبخښلو نو رسيږي، او پهٔ دې شپه اکثر خلق ديګونه پخوي، زمونږ سرحد طرف ته خو دا شے کم دے، خو دا بدعتيان ئې رانه سيوا کوي؛ ځکه دوئ چې دا شپه اووينې نو دوي هم دَ پنجاب والؤ نه اثر واخلي، نو دوي هم شروع شي: دومره فضيلت ئې دے...، پنجاب کښې دَ دې ډير اهميت وي، او هغوي پکښې ديګونه پخوي، عبادتونه پکښې کوي، سرې او ښځې ګډوډ جوماتونو له روان وي، نو دے وائي: "سوم: اس میں اموات کو ایصالِ ثواب کی رسم بدعت ہے".[1]

"پهٔ دې شپه کښې دَ مړو دپاره ايصالِ ثواب پهٔ خيال باندې خيراتونه کول دا بدعت دے".

**دَ ژوندي سړي دَ خيراتونو او دَ نفلونو ثواب**

دا خبره ياد اوساتئ! مونږ کورے دا منو: چې دَ ژوندي سړي دَ خيراتونو او دَ نفلونو ثواب مړي ته رسيږي کلهٔ چې دے پهٔ صحيح طريقه باندې بخښي، خو تخصيص دَ شپې ورته ولې کوې؟ چې ټول کال کښې خيرات نهٔ کوې، او دې يَوې شپې ته ئې راوړې نو پهٔ دې کښې دَ ايصالِ ثواب رسم چې دے دا بدعت دے.

مخکښې ما تاسو ته اووئيل: چې اشرف علي تهانوي صاحب ليکلي وو...، نو دے وائي:

""بہشتی زیور" اور "اصلاح الرسوم" میں اس کی سنتیت تحریر ہے".

دا دواړه دَ اشرف علي تهانوي ﷬ کتابونه دي: يَو دے "بہشتی زیور" او يَو دے "اصلاح الرسوم"، نو وائي: "دې دواړو کتابونو کښې ئې دَ دې دَ سنت والي ليکل کړي دي"، چې کني پهٔ دې شپه کښې ايصالِ ثواب او عبادت بهتر دے. "مگر حضرت حکیم الأمت قدس سرہ نے "امداد الفتاویٰ" میں اس سے رجوع کا اعلان فرمایا، حضرت حکیم الأمت قدس سرہ کی تحریر آگے آرہی ہے".

---

(1) انظر: "سات مسائل".

"مګر حضرت حکیم الأمت مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ دَ هغهٔ کتاب دے "امداد الفتاوی" هغې کتاب کښې هغهٔ دَ دې خبرې نه رجوع کړې ده، او اعلان ئې کړے دے، دَ هغهٔ تحرير به روستو راشي".

**پهٔ عوامو کښې مشهوره خبره**

پهٔ عوامو کښې بله خبره مشهوره ده: چې پهٔ دې شپه کښې به قبرستان ته ځې، او دَ مړو دپاره دعاګانې غواړې نو الله خامخه هغه بخښي، دلته نشته، او پنجاب طرف ته ډير دي، نو دے ليکي:

(٤) **څلورمه خبره:** "قبرستان جاکر اموات کے لئے دعاءِ مغفرت میں اختلاف ہے جس کی تفصیل "امداد الفتاوی" میں ہے".

"قبرستان ته تلل او دَ مړو دپاره دَ مغفرت دعاګانې غوښتل پهٔ دې شپه باندې پهٔ دې کښې اختلاف دے، چې دَ هغې اختلاف پوره تفصيل پهٔ "امداد الفتاوی" کښې راغلے دے".

"شیوعِ بدعات و منکرات اور غلبۂ فساد کے اس دور میں بالاتفاق ممنوع ہے".

وائي: "دَ بدعاتو دَ خوريدو دَ وجې نه، دَ منکراتو او دَ ناروا ؤ دَ خوريدو دَ وجې نه، دَ غلبې دَ فساد دَ وجې نه پهٔ دې دور کښې دَ پنځلسم دَ شعبان پهٔ شپه باندې مقبرې ته تلل او دَ مړو دپاره دعاګانې غوښتل دا ممنوع دي".

بيا وائي: "طویل بحث کے بعد اکابرِ علماء دیوبند کے آخری فیصلہ کی تحریر آگے آرہی ہے".

"دَ اوږد بحث نه روستو دَ علماء ديوبند دَ اکابرينو دَ آخري فيصلې تحرير به روستو راشي، او هغه فيصله به زهٔ تاسو ته واوروم".

(٥) **پنځمه خبره دا ده:** چې دَ پنځلسمې شپې دَ شعبان دَ دې شپې دَ عبادت هم خلق ډير اهميت ساتي، او بيا دَ روژې ئې هم ډير اهميت ساتي، وائي: دَ دې روژې ډير ثواب دے، نو آيا دَ پنځلسم دَ شعبان دَ روژې څهٔ فضيلت شته او کهٔ نا؟

وائي: "اس دن کا روزہ کسی معتبر روایت سے ثابت نہیں، فقہ کے کسی کتاب میں بھی اس کا کوئی ذکر نہیں؛ اسلئے اس کو سنت یا مستحب سمجھنا جائز نہیں".

"دَ دې ورځې روژه دَ هيڅ يو معتبر روايت نه ثابت نهٔ ده، دَ فقهې پهٔ يو کتاب کښې هم دَ دې ذکر نشته (چې کني دَ پنځلسم دَ شعبان روژه به نيسې، نهٔ حديث کښې چرته شته او نهٔ دَ فقهې پهٔ کتاب کښې)؛ دَ دې وجې نه دَ دې پنځلسم شعبان دَ ورځې روژه دا سنت يا مستحب ګڼړل دا جائز نهٔ دي".

کهٔ تهٔ ئې مستحب یا سنت نهٔ ګنړې نو ګناه پکښې هم نشته، کهٔ هسې روژه نیسې نو نیسه کنه.

**دَ شعبان دَ میاشت روژې**

حدیث کښې راځي: نبي ﷺ به دَ شعبان دَ میاشتې اکثر روژې نیولې، نو کهٔ تهٔ ئې هم پهٔ دې بنیاد نیسې چې نفلې روژه ده زهٔ ئې هم نیسم نو نیسه ئې، خو کهٔ تهٔ وائې: چې پهٔ دې کښې ثواب ډیر دے یا دا مستحب ده، یا دا سنت ده نو بیا ناجائز ده.

(٦) **شپږمه خبره:** "اس رات کی فضیلت میں اختلاف ہے: ایک جماعت کسی بھی قسم کی فضیلت کی منکر ہے، جس کی تفصیل کتب ذیل میں ہے".

"دَ دې شپې پهٔ فضیلت کښې اختلاف دے، یَو جماعت دَ علماؤ داسې دے چې هغه دَ دې دَ هیڅ قسمه فضیلت قائل نهٔ دي، بلکه دَ هر قسم فضیلت نه ئې منکر دي، وائي: چې هیڅ قسمه فضیلت ئې پهٔ نورو شپو باندې نشته، او دَ هغوي نومونه لاندې دي".

"(۱) "أحكام القرآن" لابن العربی ؒ،(۲) "الجامع لأحكام القرآن" للإمام القرطبي ؒ، (۳) "لطائف المعارف" لابن رجب ؒ، (۴) "الحوادث والبِدَع" لإمام طرطوشي ؒ، (۵) "تذكرة الموضوعات" للإمام محمد طاهر الفتني ؒ، (٦) "اقتضاء الصراط المستقيم" لابن تيميه ؒ".

"دَ دې شپږو (٦) کتابونو حوالې مفتي رشید احمد لدهیانوي ؒ پخپل کتاب "سات مسائل" کښې نقل کړي دي، چې دې کتابونو لیکلي دي: چې دَ دې شپې هیڅ فضیلت نشته".

دا خو دَ مولانا رشید احمد لدهیانوي ؒ دَ خبرو خلاصه شوه تاسو ته ما دَ هغې اردو هغهٔ عبارتونه مختصر پیش کړل.

**کومو علماؤ دَ دې ردّ کړے**

**(۱) دَ مفسر ابن کثیر ؒ قول**

مفسر ابن کثیر ؒ پهٔ دغه آیت ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾[1] باندې لیکلي دي: "وَمَنْ قَالَ: إِنَّهَا لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ -كَمَا رُوِيَ عَنْ عِكْرِمَةَ- فَقَدْ أَبْعَدَ النَّجْعَة فَإِنَّ نَصَّ الْقُرْآنِ أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ. وَالْحَدِيثُ الَّذِي رَوَاهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ: أَخْبَرَنِي عُثْمَانُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ الْأَخْنَسِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ: "تُقْطَعُ الْآجَالُ مِنْ شَعْبَانَ إِلَى شَعْبَانَ، حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَيَنْكِحُ

(1) [سورة الدخان: 3].

وَيُولَدُ لَهُ، وَقَدْ أُخْرِجَ اسْمُهُ فِي الْمَوْتَى" فَهُوَ حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، وَمِثْلُهُ لاَ يُعَارَضُ بِهِ النُّصُوصُ".[1]

"څوک چې دَ دې ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ نه دا مراد اخلي: چې دا پنځلسم دَ شعبان دے، لکه څنګه چې دا قول دَ امام عکرمه نه نقل دے، نو دې سړي دَ عقل نه ډيره لرې خبره اوکړه، بے بنياده خبره ئې اوکړه (چې څوک وائي: پنځلسم دَ شعبان ترې نه مراد دے دا بے بنياده او بے محله خبره ده)؛ ځکه نص دَ قرآن په دې کښې دے: چې دَ دې نه مراد دَ رمضان دَ ليلة القدر شپه ده (او هغه په رمضان کښې ده، پنځلسم دَ شعبان ترې نه نۀ دے مراد)، په يَو حديث کښې راځي: دَ عثمان بن محمد بن مغيره بن اخنس نه روايت دے: چې نبي ﷺ وئيلي دي: "چې دَ يَو شعبان نه واخلې تر بل شعبان پورې دَ خلقو نيتې ليکلے کيږي، تردې چې يَو سړے به نکاح اوکړي، او بچے به ئې هم پيدا کيږي، او دَ هغۀ نوم به دَ مړو په رجسټر کښې ليکلے شوے وي، چې دے به په دې کال کښې مړ کيږي"، دے وائي: دا حديث چې راغلے دے نو دا يَو مرسل روايت دے، او دَ دې پشان مرسل روايت چې دَ راوي او پيغمبر ﷺ مينځ کښې واسطه کټ وي نو داسې روايات چې کوم دي په دې باندې دَ قرآنِ کريم دَ صحيح نصوصو مقابله نشي کيدے". مرسلِ روايت دَ قرآنِ کريم دَ آيت مقابله نشي کولے.

**(۲) دَ امام ابن العربي رحمه الله قول**

ابن العربي رحمه الله په "احكام القرآن" کښې دَ دې آيت ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ لاندې ليکلي دي: "وَجُمْهُورُ الْعُلَمَاءِ عَلَى أَنَّهَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ، وَمِنْهُمْ مَنْ قَالَ: إِنَّهَا لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ؛ وَهُوَ بَاطِلٌ؛ لأَنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ فِي كِتَابِهِ الصَّادِقِ الْقَاطِعِ: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾ (البقرة: 185) فَنَصَّ عَلَى أَنَّ مِيقَاتَ نُزُولِهِ رَمَضَانُ، ثُمَّ عَبَّرَ عَنْ زَمَانِيَّةِ اللَّيْلِ هَاهُنَا بِقَوْلِهِ: ﴿فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ (الدخان: 3) فَمَنْ زَعَمَ أَنَّهُ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ عَلَى اللهِ، وَلَيْسَ فِي لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ حَدِيثٌ يُعَوَّلُ عَلَيْهِ، لاَ فِي فَضْلِهَا، وَلاَ فِي نَسْخِ الآجَالِ فِيهَا، فَلاَ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهَا".[2]

"دَ جمهورو علماؤ مسلک دا دے: چې دَ دې مبارکې شپې نه مراد ليلة القدر ده، او بعضې خلق وائي: چې دَ دې نه پنځلسم دَ شعبان مراد دے، دا خبره چې ده نو دا باطله ده؛ ځکه الله تعالى پخپل کتاب کښې وئيلي دي، هغۀ کتاب چې هغۀ بالکل ريشتينے کتاب دے، هغه کتاب چې دَ هغې فيصله بالکل حق او صحيح ده، الله فرمائي: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾

(1) انظر: "تفسير ابن كثير": (137/4).

(2) انظر: "أحكام القرآن" لابن العربي: (117/4).

مياشت دَ رمضان هغه ده چې په هغې کښې قرآنِ کريم نازل کړے شوے دے، نو دا ئې تنصيص (صراحت) اوکړو په دې خبره باندې چې دَ قرآنِ کريم دَ راتلو هغهٔ وخت چې دے نو هغهٔ رمضان دے، ليلة القدر کښې راغلے دے او ليلة القدر په رمضان کښې ده، دلته ئې دَ هغې نه په ﴿لَيۡلَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ﴾ سره تعبير کړے دے، وائي: څوک چې دا اووائي: چې دا دَ ليلة القدر نه علاوه په بله شپه کښې راغلے دے (لکه پنځلسم دَ شعبان کښې راغلے دے) نو دې سړي په الله تعالى باندې ډير لوئي دروغ جوړ کړل، نشته دے په لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَان کښې هيڅ يَو داسې حديث چې هغې باندې اعتماد اوکړے شي (دوي وائي؛ چې په احاديثو کښې داسې راغلي دي، ورته اووايه: چې دَ دې (پنځلسم دَ شعبان) متعلق ټول احاديث داسې دي چې په يَو باندې هم اعتماد نشته، ټول ضعيف دي، داسې يَو حديث پکښې نشته چې په هغې باندې اعتماد اوکړے شي)، او نهٔ دَ هغې دَ فضيلت باره کښې داسې حديث شته، نهٔ په هغې کښې دَ نيتو ليکلو باره کښې داسې صحيح حديث شته، داسې احاديثو ته دَ سره کورئ مهٔ".

دا امام ابن العربي ﷺ وائي، او دے دَ امام مالک دَ مسلک والا دے.

**دَامام قرطبي ﷺ قول**

امام قرطبي ﷺ دَ امام شافعي ﷺ دَ مسلک والا عالم دے، دَ دهٔ تفسير دے "تفسير قرطبي"، دے په هغې کښې وائي: "قُلْتُ: وَقَدْ ذَكَرَ حَدِيثَ عَائِشَةَ ﷺ مُطَوَّلًا صَاحِبُ كِتَابِ الْعَرُوسِ، وَاخْتَارَ أَنَّ اللَّيْلَةَ الَّتِي يُفْرَقُ فِيهَا كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ لَيْلَةَ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، وَأَنَّهَا تُسَمَّى لَيْلَةَ الْبَرَاءَةِ. وَقَدْ ذَكَرْنَا قَوْلَهُ وَالرَّدَّ عَلَيْهِ فِي غَيْرِ هَذَا الْمَوْضِعِ، وَأَنَّ الصَّحِيحَ إِنَّمَا هِيَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ عَلَى ما بيناه".

وائي: "زما دا خبره واوره! دَ سيدة عائشه ﷺ حديث دے، چې هغې ته خلقو منسوب کړے دے، هغه اوږد حديث دے، او "کتاب العروس" والا هغه اوږد حديث ذکر کړے دے، او هغه غوره کړے دے، وائي: په هغې حديث کښې دا دي: چې هغه شپه چې هغې کښې دَ هر کار فيصله کيږي نو هغه دَ شعبان پنځلسمه شپه ده، او هغې ته "ليلة البراءت" هم وائي، نو دَ "کتاب العروس" والا قول او په هغې باندې ردّ مونږ ذکر کړے دے دَ دې ځائے نه بغير بل ځائے کښې، بيا وائي: صحيح خبره دا ده: دا ستاسو چې کوم فضيلت په غوږونو کښې پروت دے دا فضيلت دَ "ليلة القدر" دے؛ دَ وجې دَ هغې نه چې مونږ ذکر کړي".

او بيا په دلائل ذکر کوي: وائي: "روى حماد ابن سَلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَنَا رَبِيعَةُ بْنُ كُلْثُوم قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ الْحَسَنَ وَأَنَا عِنْدَهُ فَقَالَ: يَا أَبَا سَعِيدٍ، أَرَأَيْتَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ أَفِي كُلِّ رَمَضَانَ هِيَ؟ قَالَ: إِي وَاللهِ

الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، إِنَّهَا فِي كُلِّ رَمَضَانَ، إِنَّهَا اللَّيْلَةُ الَّتِي يُفْرَقُ فِيهَا كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ، فِيهَا يَقْضِي اللهُ كُلَّ خَلْقٍ وَأَجَلٍ وَرِزْقٍ وَعَمَلٍ إِلَى مِثْلِهَا".

وائي: "ربیعه بن کلثوم ﷺ وائي: يو سړي دَ حسن بصري ﷺ نه تپوس اوکړو، او زهٔ ورسره هم پهٔ خوا کښې اووم، چې کلهٔ ترې دې سړي تپوس کولو نو حسن بصري ﷺ ته ئې اوفرمائيل: اے ابو سعيد! آيا تهٔ خبر ئې دَ ليلة القدر باره کښې؟ ما ته دَ دې خبرې جواب راکړه: چې ليلة القدر پهٔ هر رمضان کښې ده؟ هغهٔ ورته اووئيل: آو! زما دې قسم وي پهٔ هغهٔ ذات باندې چې دَ هغهٔ نه بغير بل خوک دَ حاجت پوره کولو والا نشته، دا ليلة القدر پهٔ هر رمضان کښې ده، دا هغه شپه ده چې پهٔ دې کښې دَ هر مضبوط کار فيصله کيږي، نو دَ پيدائش او دَ نيتې فيصلې پهٔ دې کښې کيږي، دا رزقونه پهٔ دې کښې ليکلے کيږي، او دارنګې عمل هم پهٔ دې کښې ليکلے کيږي".

"وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ: يُكْتَبُ مِنْ أُمِّ الْكِتَابِ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ مَا يَكُونُ فِي السَّنَةِ مِنْ مَوْتٍ وَحَيَاةٍ وَرِزْقٍ وَمَطَرٍ حَتَّى الْحَجَّ، يُقَالُ: يَحُجُّ فُلَانٌ وَيَحُجُّ فُلَانٌ".

او بل دليل دَ ابن عباس ﷺنه ذکر کوي: چې "ابن عباس ﷺ وئيلي وو: پهٔ ليلة القدر کښې دَ لوح محفوظ نه دَ کال ټول هغهٔ څهٔ ليکلے کيږي چې پهٔ دې راروان کال کښې به کيږي، دَ مرګ او دَ ژوند فيصلې پهٔ دې کښې کيږي، دَ رزقونو فيصلې پهٔ دې کښې کيږي، دَ بارانونو فيصلې هم پهٔ دې کښې کيږي (چې څومره کرتې به بارانونه کيږي؟)، تردې پورې چې دَ حج فيصلې هم الله تعالى پهٔ هغې کښې کوي (څهٔ معنىٰ؟) دا هم وئيلے کيږي: چې پهٔ دې راروان کال کښې به فلانکے حج له ځي، او فلانکے به حج له ځي".

دَ چا پهٔ تقدير کښې چې حج ليکلے شوے وي نو هغهٔ ورسره هم اوليکلے شي، او دَ چا پهٔ تقدير کښې چې نهٔ وي ليکلے شوے نو دے منډې وهي، وائي: زهٔ دَ حج داخله کوم، او داخله ئې نهٔ کيږي، وائي: داخله مې نامنظوره شوه؛ نو ځکه نامنظوره شوه چې ستا پهٔ تقدير کښې به نهٔ وو، او بعضې خلق چې پهٔ زوره تيار کړې او چې داخله اوکړي نو لا ړشي؛ ځکه چې هلته پهٔ تقدير کښې ليکلے شوے وي.

"وَقَالَ فِي هَذِهِ الْآيَةِ: إِنَّكَ لَتَرَى الرَّجُلَ يَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ وَقَدْ وَقَعَ اسْمُهُ فِي الْمَوْتَى، وَهَذِهِ الْإِبَانَةُ لِأَحْكَامِ السَّنَةِ إِنَّمَا هِيَ لِلْمَلَائِكَةِ الْمُوَكَّلِينَ بِأَسْبَابِ الْخَلْقِ. وَقَدْ ذَكَرْنَا هَذَا الْمَعْنَى آنِفًا".

"او ابن عباس ﷺ پهٔ دې آيت کښې وئيلي دي: تهٔ به ګورې چې يو سړے به بازار کښې روان وي، او دَ هغې سړي نوم به دَ مړو پهٔ رجسټر کښې ليکلے شوے وي (چې دے به پهٔ دې کال

کښې مر کيږي)، دا دَ يو کال دا فيصلې چې جدا کوي دا څوک کوي؟ دا هغه فرښتې کوي کومې فرښتې چې دَ خلقو پهٔ اسبابو مقرر دي". او امام قرطبي رحمه الله بيا وائي: دا معنٰی مونږ اوس ذکر کړه.

بيا امام قرطبي رحمه الله وائي: "وَقَالَ الْقَاضِي أَبُو بَكْرِ بْنُ الْعَرَبِيِّ: وَجُمْهُورُ الْعُلَمَاءِ عَلَى أَنَّهَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ، وَمِنْهُمْ مَنْ قَالَ: إِنَّهَا لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ؛ وَهُوَ بَاطِلٌ؛ لِأَنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ فِي كِتَابِهِ الصَّادِقِ الْقَاطِعِ: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾ (البقرة: 185) فَنَصَّ عَلَى أَنَّ مِيقَاتَ نُزُولِهِ رَمَضَانُ، ثُمَّ عَبَّرَ عَنْ زَمَانِيَّةِ اللَّيْلِ هَاهُنَا بِقَوْلِهِ: ﴿فِي لَيْلَةٍ مُبَارَكَةٍ﴾ (الدخان: 3) فَمَنْ زَعَمَ أَنَّهُ فِي غَيْرِهِ فَقَدْ أَعْظَمَ الْفِرْيَةَ عَلَى اللهِ، وَلَيْسَ فِي لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ حَدِيثٌ يُعَوَّلُ عَلَيْهِ، لَا فِي فَضْلِهَا، وَلَا فِي نَسْخِ الْآجَالِ فِيهَا، فَلَا تَلْتَفِتُوا إِلَيْهَا".(1)

"قاضي ابو بکر بن العربي رحمه الله وئيلي دي (دے هم هغهٔ خبره کوي کومه خبره چې ما تاسو ته دَ هغهٔ دَ تفسير نه نقل کړه، دے هم دَ هغهٔ نه نقل کوي) وائي: دَ جمهورو علماؤ مسلک دا دے: چې دَ دې مبارکې شپې نه مراد ليلة القدر ده، او بعضې خلق وائي: چې دَ دې نه پنځلسم دَ شعبان مراد دے، دا خبره چې ده نو دا دروغ ده او باطله ده؛ ځکه الله تعالی په خپل کتاب کښې وئيلي دي، چې هغهٔ ريښتنے کتاب دے، يقيني کتاب دے: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾ مياشت دَ رمضان هغه ده چې پهٔ هغې کښې قرآنِ کريم نازل کړے شوے دے، نو تنصيص (صراحت) ئې پهٔ دې خبره باندې اوکړو: چې قرآنِ کريم پهٔ رمضان کښې راغلے دے، بيا ئې معلومه کړه چې دَ شپې راغلے دے، او هغه شپه مبارکه شپه ده، څوک چې دا ګمان کوي چې دا ليلة القدر شپه نهٔ ده (پنځلسم دَ شعبان يا بله شپه يادوي) نو دې سړي پهٔ الله تعالی باندې ډير لوئي دروغ جوړ کړل، لَيْلَةُ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَان کښې هيڅ يو داسې حديث نشته چې هغې باندې اعتماد اوکړے شي، او نهٔ دَ دې دَ فضيلت باره کښې داسې يو حديث شته، نهٔ پهٔ هغې کښې دَ نيتو ليکلو باره کښې داسې صحيح حديث شته، دېته هډو کوري مهٔ".

**دَ ابن رجب رحمه الله قول**

ابن رجب رحمه الله خو ډير اوږد بحث کړے دے خو صرف تاسو له دَ هغې خلاصه وايم: وائي: "وَالثَّانِي: أَنَّهُ يُكْرَهُ الْإِجْتِمَاعُ فِيهَا فِي الْمَسَاجِدِ لِلصَّلَاةِ وَالْقَصَصِ وَالدُّعَاءِ وَلَا يُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ فِيهَا لِخَاصَّةِ نَفْسِهِ".(2)

(1) انظر: "تفسير القرطبي": (127/16).
(2) انظر: "لطائف المعارف". لابن رجب في المجلس الثاني: في نصف شعبان: (166).

وائي: "په دې شپه (پنځلسم دَ شعبان) کښې مکروه دي چې خلق په جوماتونو کښې دَ مونځونو دپاره جمع کيږي (او په ښاريو کښې او خاص کر پنجاب طرف ته په جوماتونو کښې سمه دَ اختر شپه وي)، او دَ هغه منکرتو قصو دپاره جمع کيږي، او په دې شپه کښې دَ دعاګانو دپاره جمع کيږي (چې په دې شپه کښې داسې دعاګانې اوغواړه او داسې دعاګانې اوغواړه دا تول مکروه دي)، هاا کۀ يَو سړے خپل کور کښې ځان له مونځ کوي نو اودې کړي".

او کۀ نه يَوې شپې ته پاسي او نورو شپو ته نۀ پاسي نو دا ځۀ ليلة القدر خو نۀ ده چې تۀ دېته دومره اهميت ورکوې!.

بيا وائي: "قِيَامِهَا عَنْهُ رِوَايَتَانِ مِنَ الرِّوَايَتَيْنِ عَنْهُ فِي قِيَامِ لَيْلَتَي الْعِيْدِ فَإِنَّهُ فِي رِوَايَةٍ لَمْ يُسْتَحَبَّ قِيَامُهَا جَمَاعَةً؛ لِأَنَّهُ لَمْ يَنْقُلْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابِهِ وَاسْتَحَبَّهَا فِي رِوَايَةٍ لِفِعْلِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ بْنِ الْأَسْوَدِ وَهُوَ مِنَ التَّابِعِيْنَ فَكَذٰلِكَ قِيَامُ لَيْلَةِ النِّصْفِ لَمْ يَثْبُتْ فِيْهَا شَيْءٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا عَنْ أَصْحَابِهِ وَثَبَتَ فِيْهَا عَنْ طَائِفَةٍ مِّنَ التَّابِعِيْنَ مِنْ أَعْيَانِ فُقَهَاءِ أَهْلِ الشَّامِ".[1]

"دَ امام احمد ﷫ نه دَ دې شپې په جمعې سره دَ ولاړې باره کښې دوه (۲) روايتونه نقل دي: (۱) يَو روايت دا دے: چې دَ دواړو اخترونو په شپه باندې عبادت کول دا په جمعې سره مستحب نۀ دي (ثابت نۀ دي)؛ ځکه دَ نبي ﷺ نه نۀ دي نقل شوي، او دَ نبي ﷺ دَ صحابۇ نه ﷺ هم نۀ دي نقل، او (۲) دويم روايت کښې: مستحب ګنړلے دے عبادت لره په دې دواړو شپو کښې؛ ځکه چې دَ عبد الرحمٰن بن يزيد بن الاسود په فعل باندې ثابت دے، او حالانکه دے دَ تابعينو نه دے، دغه شان ولاړه په شپه دَ نصفِ شعبان (پنځلسم دَ شعبان) چې کوم ده په هغې کښې دَ نبي ﷺ نه هيڅ شے ثابت نۀ دے، نۀ دَ نبي ﷺ دَ صحابۇ ﷺ نه دَ دې باره کښې ځۀ شے ثابت دے، صرف بعضې شام والۇ دَ فقهاۇ يَو قول شته".

**دَامام ابوبکر طرطوشي ﷫ قول**

"وَرَوَى ابْنُ وَضَّاحٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ؛ قَالَ: "مَا أَدْرَكْنَا أَحَدًا مِنْ مَشْيَخَتِنَا وَلَا فُقَهَائِنَا يَلْتَفِتُوْنَ إِلَى النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ، وَلَا يَلْتَفِتُوْنَ إِلٰى حَدِيْثِ مَكْحُوْلٍ!، وَلَا يَرَوْنَ لَهَا فَضْلًا عَلٰى مَا سِوَاهَا"".

"ابن وضاح نقل کړي دي دَ زيد بن اسلم ﷫ نه: دے وائي: مونږ نۀ دے موندلے يَو تن زمونږ دَ شيوخو نه او نۀ دَ فقهاۇ زمونږ نه (مونږ پخپل ژوند کښې يَو شيخ، يَو فقيه او عالم نۀ دے ليدلے او نۀ مونږ دَ هغوي نه اوريدلي دي) چې هغوي به کړي دومره توجو ورکوله پنځلسم دَ

(1) انظر: "لطائف المعارف" لابن رجب في المجلس الثاني: في نصف شعبان: (166).

شعبان ته (پنځلسم دَ شعبان ته به ئې دومره اهمیت نهٔ ورکولو)، او نهٔ به هغوي دَ مکحول هغې حديث ته كتل، او هغوي به پنځلسم دَ شعبان دپاره پهٔ نورو شپو باندې څهٔ فضيلت نهٔ منلو".

بيا وائي: "وَقِيلَ لِابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ: إِنَّ زِيَادًا النَّمِيرِيَّ يَقُولُ: إِنَّ أَجْرَ لَيْلَةِ النِّصْفِ مِنْ شَعْبَانَ كَأَجْرِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ. فَقَالَ: "لَوْسَمِعْتُهُ وَبِيَدِي عَصًا؛ لَضَرَبْتُهُ"".[1]

"ابن ابي مليكه ته چا اووئيل: چې دلته يَو سړے دے زياد النميري هغهٔ دا خبره كوي: چې دَ پنځلسم دَ شعبان دَ شپې دومره ثواب دے لكه څومره چې دَ ليلة القدر ثواب دے (نو آيا دا رښتيا دي؟)، نو ابن ابي مليكه ورته وائي: كهٔ دا خبره ما دَ هغهٔ نه واوريده او دغې وخت كښې زما لاس كښې امسا وه نو خامخه به ئې زهٔ پهٔ هغې باندې وهم (چې تهٔ ولې دا دروغ وائې؟ دا چرته دي؟)".

او دا زياد النميري قصه كو مُلا وو، دهٔ به خلقو له قصې كولې، نو دَ قصو والا خلقو سره دا خبرې ميلاويږي، خو قرآن او سنت كښې دَ دې هيڅ اهميت نشته.

**دَ محمد طاهر الفتني رحمه الله قول**

"وَقَالَ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ: مَا أَدْرَكْنَا أَحَدًا مِّنْ مَشَايِخِنَا وَفُقَهَائِنَا يَلْتَفِتُوْنَ إِلَى لَيْلَةِ الْبَرَاءَةِ وَفَضْلِهَا عَلَى غَيْرِهَا، وَقَالَ ابْنُ دَحْيَةَ أَحَادِيثُ صَلَاةِ الْبَرَاءَةِ مَوْضُوعَةٌ وَوَاحِدٌ مَقْطُوعٌ وَمَنْ عَمِلَ بِخَبَرٍ صَحَّ أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ مِنْ خَدَمِ الشَّيْطَانِ".[2]

"زيد بن اسلم رحمه الله وئيلي دي: نهٔ دے ليدلے مونږ اوسه پورې يَو تن زمونږ دَ استاذانو او زمونږ دَ فقهاؤ نه چې هغوي پنځلسم دَ شعبان له دومره توجّو وركړې وه، يا ئې دَ هغې دومره فضيلت منلے وو، ابن دحيه رحمه الله وئيلي دي: چې څومره احاديث دي پهٔ دې باره كښې چې دَ پنځلسم دَ شعبان دَ شپې دَ مونځونو ډير فضيلت دے نو دا ټول موضوعي دي، يَو مقطوع روايت راغلے دے، او څوک چې پهٔ داسې خبر (روايت) عمل كوي چې هغهٔ ته دا خبره صحت ته سره رسيدلې: چې دا دروغ دي، او دے پرې بيا هم عمل كوي نو دا دَ شيطان دَ خادمانو نه دے".

**نوټ**

يَو ضعيف روايت وي او يَو موضوعي روايت وي، موضوعي دَ ضعيف نه هم لاندې دے، موضوعي او منكهرت روايت هغې ته وائي: "چې خلقو دَ ځان نه جوړ كړے وي او نبي ﷺ ته ئې نسبت كړے وي"، نو ابن دحيه رحمه الله وائي: دَ پنځلسم شعبان باره كښې چې څومره روايات دي ټول

(1) انظر: الحوادث والبدع" لأبي بكر الطرطوشي: (130).
(2) انظر: "تذكرة الموضوعات للفتني": (46/1).

منکهرت او موضوعي دي، خلقو دَ ځان نه جوړ کړي دي، هاا یَو پکښې مقطوع روایت دے"،
نبي ﷺ ته نۀ دے رسیدلے مینځ کښې کټ دے، او خلقو ورته نوم دَ "حدیث" کیخودلے دے.

ابن دحیه ؒ وائي: "وَمَنْ عَمِلَ بِخَبَرٍ صَحَّ أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ مِنْ خَدَمِ الشَّيْطَانِ".(1)

"څوک چې پۀ یَو داسې حدیث عمل کوي چې هغۀ ته دا خبره صحت ته سره رسیدلے: چې دا دروغ دي، او دے پرې بیا هم عمل کوي نو دا دَ شیطان دَ خادمانونه دے". دے دَ شیطان خدمت کوي، دے دَ الله عبادت نۀ کوي.

**دَ علامه ابن قیم ؒ اول قول**

وائي: "دا فضیلت دَ پنځلسم شعبان خلقو څلور سوه (٤٠٠) کاله روستو ایجاد کړے دے (تر څلور سوو (٤٠٠) کالو پورې دَ دې څۀ ایجاد هم نۀ وو)، څلور سوه او اتیاؤ (٤٨٠) کاله نه بعد دا خلقو شروع کړے دے"، او هغۀ وائي: چې پۀ دې کښې یَو حدیث هم صحیح نشته؛ ځکه نشته چې څلور سوه او اتیا (٤٨٠) کاله بعد یَو شے شروع شي نو هغې کښې به سرے حدیث دَ کوم ځائے نه پیش کړي، حدیث خو دَ نبي ﷺ نه نقل وي نو چې دَ نبي ﷺ نه څلور سوه او اتیا (٤٨٠) کاله بعد یَو شے شروع کیږي هغې کښې به دَ نبي ﷺ حدیث دَ کوم ځائے نه راشي؟

"المنار المنیف" دَ علامه ابن قیم ؒ کتاب دے، ضعیف احادیث ئې پکښې راجمع کړي دي، نو وائي: "پۀ دې کښې چې څومره احادیث دي هغه ټول ضعیف دي".

**دَ حافظ ابن قیم ؒ دویم قول**

"وَكُلُّ حَدِيثٍ فِي ذِكْرِ صَوْمِ رَجَبٍ وَصَلَاةِ بَعْضِ اللَّيَالِي فِيهِ فَهُوَ كَذِبٌ مُفْتَرَى".(2)

"هر هغه حدیث چې پۀ هغې کښې دَ رجب دَ میاشتې دَ روژې او دَ بعضې شپو دَ عبادت ذکر وي نو دا دروغ دي، دَ ځان نه جوړ کړے شوي دي".

مفتي رشید احمد ؒ پۀ "سات مسائل" کښې لیکي: *"الحاق: بوقت تحریر منکرین فضیلت کی تفصیل سے متعلق پانچ کتابیں سامنے تھے، عبارات لکھی جاچکی ہیں، تکمیل تحریر کے بعد چھٹی کتاب "اقتضاء الصراط المستقیم لابن تیمیه" میں بھی منکرین تفصیل کا بیان مل گیا جو درج ذیل ہے"*.

"کلۀ چې ما دا کتاب لیکلو نو دا پنځۀ (٥) کتابونه زما مخې ته وو، چې هغې کښې ما دَ فضیلت دَ منکرینو علماء اقوال نقل کړل، کلۀ چې ما دا لیکل برابر کړل نو شپږم (٦) کتاب

(1) انظر: "تذكرة الموضوعات للفتني": (46/1).
(2) انظر: "المنار المنيف" لابن القيم: (96/1) برقم: (170).

"اقتضاء الصراط المستقيم" دَ علامه ابن تيميه رحمه الله هغه راته روستو ميلاؤ شو چې هغهٔ هم دَ دې دَ فضيلت منکر وو، وائي: هغهٔ مې دَ دې سره اوليکلو عبارت ئې تاسو لاندې ملاحظه کړئ".

**دَ امام ابن تيميه رحمه الله قول**

"وَمِنَ الْعُلَمَاءِ مِنَ السَّلَفِ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ وَغَيْرِهِمْ مِنَ الْخَلَفِ مَنْ أَنْكَرَ فَضْلَهَا وَطَعَنَ فِي الْأَحَادِيثِ الْوَارِدَةِ فِيهَا كَحَدِيثِ إِنَّ اللهَ يَغْفِرُ فِيهَا لِأَكْثَرَ مِنْ عَدَدِ شَعْرِ غَنَمِ بَنِي كَلْبٍ".(1)

"بعضې دَ علماؤ دَ سلف صالحينو نه دَ مدينې والؤ نه او دَ هغوي نه بغير دَ نورو علماؤ نه چې هغوي روستو راغلي دي هغه علماء دي چې هغوي دَ دې فضيلت نه انکار کړے دے (دَ پنځلسم دَ شعبان نه)، او هغه احاديثو باندې ئې طعن کړے دے، هغې باندې ئې رد کړے دے کوم احاديث چې دَ دې پهٔ فضيلت کښې راغلي دي لکه دا حديث چې راغلے دے: چې پهٔ دې شپه کښې الله تعالى خلقو ته دومره بخښنه کوي، دومره خلق پکښې معاف کوي لکه دَ بني کلب قبيلې کډې او بيزې چې څومره دي او بيا دَ هغې چې څومره ويښتهٔ دي".

بني کلب قبيله دَ هغوي يَو بانده وه او هغوي به صرف کډې او بيزې ساتلې، نو پهٔ ټوله علاقه کښې دَ هغوي نه چا سره سيوا څاروي نهٔ وو، نو چې څاروي ډير وي نو بيا پهٔ يَو يَو څاروي څومره ويښتهٔ وي نو پهٔ دې شپه کښې الله دومره خلقو له بخښنه کوي لکه دَ بني کلب قبيلې کډې او بيزې.

بيا وائي: "لَا فَرْقَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ غَيْرِهَا".(2)

"هيڅ فرق نشته پهٔ مابين دَ دې کښې او پهٔ مابين دَ نورو شپو کښې".

**دَ ابن قيم رحمه الله دريم قول**

ابن قيم رحمه الله پهٔ "المنار المنيف" کښې وائي: "کوم شے چې داسې وي چې پهٔ هغې کښې دا ثوابونه داسې شي چې پهٔ کرورونو او اربونو شي دا ټول ضعيف وي، څومره احاديثو کښې چې دا راځي: چې دا دې اوونيل نو دومره دومره لکهه ثواب شو، او دومره دومره سوه ثواب شو، او دومره دومره زره ثواب شو نو اکثر هغهٔ ضعيف وي".

نو دَ دې دَ ضعف يَو وجه دا هم ده.

(1) انظر: "اقتضاء الصراط المستقيم" لابن تيمية: (302/1).

(2) انظر: "اقتضاء الصراط المستقيم" لابن تيمية: (302/1).

**په مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ باندې اعتراض**

چونکه په مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ اعتراض وو: چې هغهٔ په "اصلاح الرسوم" کښې ليکلي دي، او په "بهشتي زيور" کښې ئې هم ليکلي دي، نو دَ هغهٔ هغه اعلان زهٔ ستاسو مخکښې عرض کوم چې مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ دَ دې خپلې خبرې نه واپس رجوع کړې ده، او هغه وائي: چې زما دا خبره صحيح نهٔ ده.

**دَ مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ دَ خپلې خبرې نه رجوع**

"احقر اشرف علی عرض رسا ہے: کہ اس کے ساتھ ایک پرچہ بھی تھا، اس میں لکھا تھا: بندہ نے جو کچھ اسکے متعلق لکھا ہے بڑے مولانا (حضرت مولانا محمود حسن صاحب) کو سنایا ہے، اور خلاصہ اس فیصلہ دیوبند کا یہ ہے:..."۔

وائي: "په دې کښې دا خبره واورئ! چې ما چې څهٔ ليکلي دي دَ دې متعلق نو ما دَ خپل وئي عالم حضرت مولانا محمود حسن نه اوريدلي وو، او خلاصه دَ دې فيصلې دَ ديوبند دا ده: ..."۔

"احقر کے دعوے کے دو جزء تھے: ایک یہ کہ حدیثِ عائشہ دال ہے: "من وجہ تخصیص لیلۃ البراءۃ بالدعاءِ للاموات" پر، دوسرا یہ کہ اس دعاء پر دوسرے طرقِ ایصال ثواب کو قیاس کیا جاسکتا ہے، اس فیصلہ میں جزء اول کو ثابت رکھا ہے، مگر عوارض کے سبب خروج الی القبرہ کے منع کو احوط کیا ہے"۔

"دَ احقر دَ دعوې دوه (۲) جُزونه دي: (۱) يَو دا چې: حديث دَ عائشې دلالت کوي په دې خبره: چې خاص ده ليلة البراءة په دعاء سره دَ مړو دپاره، او (۲) دويم دا: چې تيک ده چې مقبرې ته وتل دَ دې حديث په بنياد خو ثابتيږي خو چونکه دَ عوارضو په وجه باندې نهٔ تلل ما له ډير دَ احتياط والا ښکاري"۔

"اور بعض علماء متاخرین کی تصریح بھی اس کی مؤید ہے"۔ "او دَ روستو علماؤ تصريح هم په دې کښې زما تائيد کوي (چې دا تلل نهٔ دي پکار)"۔

"جیسا کہ دیوبند کے ایک کارڈ مرقومہ 13 رمضان المبارک میں حضرت مجیب ممدوح نے یہ عبارت لکھی ہے، یہ خیال رہا کہ فقہاء نے بھی لیلۃ البراءۃ میں کہیں زیارتِ قبور کا استحباب لکھا ہے یا نہیں؟ تلاش کرنے کی فرصت نہ ہوئی، اور جو کہیں دیکھا گیا تصریح نہ ملی، البتہ مولانا عبد الرحیم لکھنوی نے رسالہ "نور الایمان" میں ایک غیر معروف کتاب "الغرائب" کے حوالہ سے اس شب میں استحبابِ زیارتِ قبور نقل فرمایا ہے، اور اسی حدیث سے استدلال کیا ہے، اور دوسری جزء کی نفی کی ہے، پس میں اپنے دعوے کے منع کو احوط سمجھتا ہوں اور حضرات علماء کرام کے لئے دعاء کرتا ہوں جنھوں نے میری رہبری فرمائی"۔

حاصل دَ دهٔ دې خبرې دا دے: چې زما دَ خبرې تائيد خو څهٔ نا څهٔ شته دے خو اوس

زما په نزد ډېره دَ احتياط خبره دا ده: چې زهٔ دَ خپلې دعوې نه منع شم، او دَ هغهٔ علماؤ دپاره زهٔ دعاګانې کوم چې هغوي زما رهبري اوکړه.

بيا وائي: "ناظرین "اصلاح الرسوم" بالخصوص اس پر مطلع ہو جاویں اور اگر "اصلاح الرسوم" کہیں طبع کی جاوے اس پر میرا یہ رجوع بطور حاشیہ لکھ دیا جاوے".[1]

"څومره ناظرين چې دي چې هغوي "اصلاح الرسوم" کوري او زما نه روستو چې څومره خلق "اصلاح الرسوم" شائع کوي نو دَ هغې په حاشيه دې زما دا رجوع اوليکئ".

چې مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دَ خپلې دې خبرې نه رجوع کړې ده، او هغهٔ وائي: چې دَ دې شپې دغه فضيلت نشته، دَ دې شپې فضيلت دا خلقو دَ ځان نه جوړ کړے دے، ديته ليلة البراءة وئيل دا دَ شيعه ګانو نوم دے، دا نوم ورله شيعه ګانو کيخودلے دے.

**دَ امام ابوشامه رحمه الله قول**

دهٔ خو ډېر زيات تفصيل کړے دے، خو زهٔ تاسو ته صرف دَ دهٔ دَ کتاب نه يو خبره نقل کوم، دَ دهٔ دَ قول تفصيل خلاصه دا ده: دهٔ په يو يو روايت کلام هم کړے دے، دا دَ امام شافعي رحمه الله دَ مسلک عالم دے، دے وائي: په دې کښې څومره روايات چې دي هغه ټول روايات ضعيف دي.

وريسې وائي: وَلِلْعَوَامِ بِهَا افْتِتَانٌ عَظِيْمٌ وَالْتَزَمَ بِسَبَبِهَا كَثْرَةُ الْوَقِيْدِ فِي جَمِيْعِ مَسَاجِدِ الْبِلَادِ الَّتِي تُصَلِّي فِيهَا وَيَسْتَمِرُّ ذٰلِكَ كُلُّهُ وَيَجْرِيْ فِيْهِ الْفُسُوقُ وَالْعِصْيَانُ وَاخْتِلَاطُ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَمِنَ الْفِتَنِ الْمُخْتَلِفَةِ مَا شُهْرَتُهُ تُغْنِيْ عَنْ وَصْفِهِ لِلْمُتَعَبِّدِيْنَ".

"دَ عوامو په دې شپه کښې لويه فتنه کښې واقع کيدل وي، او دوي دَ دې شپې په سبب باندې ډېر اُورونه بلَوي دَ کلو په ټولو هغهٔ جوماتونو کښې چې په هغې کښې مونځ کيږي، او په دې باندې هميشه والے کوي، دارنګې په دې کښې فسوق او نافرمانئ کيږي، او دَ سړو او دَ ښځو اختلاط (ګډون) او يو ځائے والے وي پکښې، دارنګې نورې مختلف فتنې په دې کښې وي چې دَ هغې بيان نه بے پرواهي کوي نيکان خلق".

او بيا روستو وائي: "وَجَرَوْا فِيْهِ عَلٰى سُنَنِ الْمَجُوْسِ وَاتَّخَذُوا دِيْنَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا".[2]

په دې شپه باندې اُورونه بلول، رڼړا ګانې کول دے وائي: دا رڼړا ګانې کول دا دَ مجوسو دين

---

(1) انظر: "امداد الفتاوی": (26/4).

(2) انظر: "الباعث على إنكار البدع والحوادث" لأبي القاسم شهاب الدين عبد الرحمن بن إسماعيل بن إبراهيم المقدسي الدمشقي المعروف بأبي شامة: (34- 36).

دے، "دوي پهٔ دې کښې دَ مجوسو طريقو پسې روان شوي، خپل دين ئې لوبې او توقې جوړ کړے دے".

نو دا دَ مجوسو طريقه ده، او خپل دين ئې لوبې او مشغله جوړ کړے دے، چې ذهن ئې څهٔ غواړي نو هغهٔ کوي، دَ نبي ﷺ نه پهٔ دې کښې هيڅ شے نهٔ دے ثابت، نهٔ نبي ﷺ وئيلي دي: چې کني تاسو پنځلسم شعبان باندې موڅونه کوئ، او نهٔ ئې دا وئيلي دي: چې تاسو پهٔ دې شپه باندې اُورونه بلَوئ، رنړاکانې کوئ، يَو ريښتني راوي چرته دا خبره نهٔ ده نقل کړې.

څوک چې دا خبره وي او څوک چې دا کاورنه کوي نو دا هغهٔ سړے دے چې شريعت پورې توقې کوي، دا بدعت نهٔ دے مګر هغه چا شروع کړے دے چې هغه شريعت محمدي پورې توقې کوي او دَ مجوسيت دين سره مينه کوي؛ ځکه اُور دَ مجوسو خدائے دے نو هغوي دَ اُور پهٔ بلولو باندې خوشحاليږي؛ دَ دې وجې نه بغير دَ ضرورت نه رنړاکانې کول دا مکروه دي.

ما يَو رساله ليکلې وه کيدے شي بعضې ملګرو سره وي، دَ هغې نوم دے: "النَّظْرُ بِالْإِخْلَاصِ إِلٰى مَسَائِلِ الثَّلَاثِ"، پهٔ دريو (۳) مسئلو باندې دا رساله ما ليکلې ده:

(۱) يَو دا چې: دا خلق زرٌ زر تراويح کوي، هسې ځان کړوي هيڅ ثواب ورته نهٔ ميلاويږي، بلکه اُلټه ګنانګاريږي.

(۲) دويم دا چې: دَ تراويحو ختم کله اوشي بيا دَ هغې دپاره خلق جمع شي او دَ هغې دپاره چندې غواړي، چې متيائي راوړو، چې ختم اوکړو چا نه لس (۱۰) روپۍ اغستې، چا نه شل (۲۰) روپۍ اغستې، چا نه ئې پکښې پهٔ زوره باندې واخلې، چې تهٔ دومره مالدار سړے ئې او لس روپۍ نشې ورکولے، کهٔ څوک سل روپۍ ورکوي، وائي: تهٔ به دوه سوه ورکوې، پهٔ زوره ئې ترې اخلې، پهٔ دې خبره ما پهٔ هغې رساله کښې يَو مستقل باب ليکلے دے، چې پهٔ دې طريقه دَ خلقو نه پيسې اغستل او پهٔ هغې متيايانې راوړل او بيا پهٔ ختم کښې پهٔ خلقو خوړل دا بالکل ناروا دي، دَ هغې سړي مال دَ سره جائز نهٔ دے چې دَ هغهٔ زړهٔ نهٔ وي او تهٔ ترې نه پيسې اخلې.

(۳) دريم دا چې: پهٔ هغې رساله کښې ما يَو مستقل باب پهٔ دې باندې ليکلے دے چې اکثر دَ رمضان پهٔ تراويحو کښې يا پهٔ دې نصفِ شعبان کښې خلق داسې کوي چې دَ شپې زيات بلبونه بلَوي، خلق ورته مرچکې وائي، دا پرق پروق چې کوي، بَليږي او مړهٔ کيږي، څوک پهٔ ديوالونو ډيوې بلَوي، دا شے بالکل ناروا دے، او دا دَ مجوسو طريقه ده، پهٔ ودونو او ختمونو کښې به هم رنړاکانې نهٔ کوئ، دا دَ مسلمانانو طريقه نهٔ ده، دا دَ مجوسو طريقه ده، دومره رنړا درله کافي ده چې ستا ضرورت خومره دے، کم از کم اسراف خو دے.

نو دا عالم وائي: "پنځلسم دَ شعبان باندې چې خلق اُوروِنه بلَوي دا دَ مجوسو سره مشابهت دے"، دا اُور دَ مجوسو معبود دے، او په دې هغوي ډير خوشحاليږي، دا شے دَ برامکو په وخت کښې شروع شوے وو.

خلاصه زما دَ خبرې دا ده: چې دَ پنځلّسم شعبان دا فضيلت چې کوم دَ عوامو په ذهن کښې مشهور دے دا نشته، نهٔ دَ دې دَ روژې دغه فضيلت شته، نهٔ دَ شپې دَ نفلونو دغه فضيلت شته، هاں! په نورو ورځو روژه نيسې په دې باندې هم اونيسه، نورو شپو کښې تهجدو ته پاسې په دې کښې هم پاسه، په دې کښې گناه نهٔ ده، چې کني روژه مهٔ نيسئ يا تهجد مهٔ کوئ، خو په دې شرط چې په نورو شپو ئې فضيلت نهٔ گنړې، په نورو شپو کښې نهٔ پاسې او په دې يَوه شپه باندې خامخه پاسې، نورو ورځو کښې روژې نهٔ نيسې او په دې کښې روژه خامخه نيسې نو دا فضيلت نشته، دا خلقو دَ ځان نه جوړ کړے دے، دا تولې من گهړت او ضعيف قصې دي، هيڅ حقيقت دَ دې نشته.

الله ربّ العزة دې مونږ صحيح دين پسې روان کړي.

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا

(سورة الأحزاب: 21)

# موضوع

# پهٔ شریعت کښې دَ خوشحالئ طریقه

بتاريخ: 2008-01-13

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# په شريعت کښې د خوشحالۍ طريقه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

وقال النبي ﷺ: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُوْنَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهٖ».[2]

قابلِ قدر، معزّز علماء کرام او زما عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړوا ما ستاسو په مخکښې د الله رب العزة د خوږ او معزز کتاب قرآنِ کريم نه يَو آيت مبارکه اولوستو او دَ احاديثو دَ رسول الله ﷺ نه ما ستاسو وړاندې يَو حديث مبارکه عرض کړو، الله رب العزة دې دَ دې آيتِ مبارکه مطابق او دَ احاديثو دَ رسول الله ﷺ مطابق دَ صحيح بيان کولو توفيق رانصيب کړي.

عزتمندو، مسلمانانو رونړوا نن دَ اختر دريمه ورځ ده، او دَ جُمعې مبارکې ورځ ده، مخکښې هم تاسو اوريدلي وو چې رسول الله ﷺ فرمائيلي وو: دَ اسلام دَ راتلو نه وړاندې په جاهليت کښې هم خلقو خوشحالي کوله او خوشحالۍ به ئې مناؤولې، "يَومِ نيروز" او "يَومِ مهرجان" دا دَ هغوي دَ خوشحالۍ ورځې وې، چې په هغې کښې به هغوي خوشحالي مناؤوله، چې دا دَ هغوي اخترونه وو، چې کله اسلام راغلے نو پروردِگار عالَم دَ هغې مقابله کښې

(1) [سورة الأحزاب: 21].

(2) أخرجه البغوي في "شرح السنة" في كتاب الإيمان، باب رد البدع والأهواء، برقم: (104).

مسلمانانو له نورې ورځې ورکړې، چې تاسو به دَ غير مذهبه سره مشابهت نۀ کوئ، دَ هغوي پۀ خوشحالو کښې به خپلې خوشحالئ نۀ مناؤوئ، تاسو به پۀ دې ورځو کښې خپله خوشحالي مناؤوهئ، يَو دَ وړوکي اختر ورځ ده او بله دَ لوئي اختر ورځ ده نو دا خوشحالي دَ شريعت نه ثابت ده، چې دا خوشحالي اوکړه خو شريعت کښې چې کومه خوشحالي ده او پۀ نن دور کښې چې زمونږ مسلمانان کومه خوشحالي کوي نو پۀ دې کښې دَ زمکې او آسمان فرق دے.

**پۀ اسلام کښې دَ اختر دَ خوشحالئ حيثيت**

زۀ نن تاسو ته صرف دا بيانوم چې پۀ اسلام کښې دَ اختر دَ خوشحالئ مناؤولو څۀ حيثيت دے؟ پۀ کومه طريقه به خوشحالي کوې؟ او بيا زمونږ پۀ دې معاشره کښې چې نوجوانان کومه خوشحالي مناؤوئ، نو چې پۀ اسلام کښې دَ دې څۀ حيثيت دے؟ اسلامي خوشحالي خو پيغمبر ﷺ مونږ ته دا ښودلې وه: چې دَ اختر ورځ راشي نو اول غسل اوکړه، کۀ دې نوي کپړې جوړې کړي وي هغه واچوه، او کۀ دَ نوو وس دې نۀ کيږي نو صفا او وينځلے شوې کپړې واچوه، خوشبوئي مستعمل کړه او مسواک استعمال کړه، سحر وختي دَ اختر مونځ ته عيدګاه له ورشه او چې عيدګاه ته ځې راځې نو تکبيرونه وايه، دَ الله حمد او ثناء وايه، نو دا خوشحالي مونږ ته شريعت ښودلې ده، اوس دَ دې نه ما سيوا نورې خوشحالئ چې زمونږ مسلمانان رونړه ئې کوي او کۀ تپوس ترې نه کوې: "چې داسې ولې کوې؟"، نو وائي: "يَرا اختر دے چې پۀ دې کښې سړے خوشحالي اونۀ کړي نو بيا به ئې کله کوي؟"، دارنګې نورې خوشحالئ پۀ اسلام کښې چې شريعت هغې ته خوشحالي وئيلې ده، نو خوشحالي جائز ده خو دَ شريعت دَ اصولو دننه، لکه وادۀ هم يَو خوشحالي ده، خو وادۀ به پۀ څۀ طريقه باندې کوو؟ دَ شريعت طريقه پۀ هغې کښې څۀ ده؟ او خلافِ شرع طريقه پۀ هغې کښې څۀ ده؟ دَ کويژدنې هم يَو طريقه ده چې کويژدن به مونږ پۀ کومه طريقه کوو؟ دارنګې دَ ماشوم سنت (ختنه) هم يَو طريقه ده، چې دا به مونږه پۀ کومه طريقه باندې کوو؟ نورې قسما قسم خوشحالئ راځي، نو چې هغه به مونږ پۀ کومه طريقه باندې کوو؟

**اختر مناؤول**

کم از کم چې مسلمان اختر مناؤوئ او دے پۀ اختر کښې نوې کپړې اچوي، خو دے

ځان ته مسلمان وائي، کافر خو دا نهٔ کوي، او دے دا وائي: "چې دا دَ شریعت حکم دے او زهٔ پهٔ هغې عمل کوم"، نو دَ شریعت حکم صرف دَ اختر مناؤول نهٔ دي، بلکه چې پهٔ کومه طریقه شریعت مناؤ کړے دے نو پهٔ هغه طریقه ئې مناؤ کړه، لکه بعضې جاهلان دَ اختر پهٔ شپه هغه لوئي لوئي پروګرامونه کوي، بعضې سي ډي راوړي او څوک وي سي آر راوړي، څوک دغه شان محفلونه ګرم کړي او وائي: "دَ اختر شپه ده"، نو چې دَ اختر شپه ده نو تهٔ دَ الله حمد او ثناء ولې نهٔ وائي؟ تهجد اوکړه، نفل اوکړه او الله ته ژړا او فریاد اوکړه، نو تهٔ دَ دې پهٔ ځائے سي ډي او وي سي آر راوړي او غلط پروګرامونه کوې؟

**بل غلط کار**

بیا دَ اختر پهٔ ورځ ځائے پهٔ ځائے میلې لګیدلې وي، او هغې له مسلمانان رونړه ځي، او هغې کښې جواریانې کیږي، هغه مبارکې ورځې چې هغې کښې هم سرے دَ ګناه نه نهٔ صبریږي، او ګناه کوي، ښکاره ئې کوي، او پهٔ ګنړه کښې ئې کوي نو دا څومره عظیمه ګناه ده، جواریانې پکښې وي، دهوکې پکښې وي، مسلمان سره پکښې خیانت کیږي، دروغ پکښې وئیلے کیږي، او دا ټول دَ اخترونو دې خوشحالو له راجع کیږي، نو چې دغې خوشحالئ نه لرې شي نو بیا وائي: "اختر دے چکرې پکښې اولګوو"، نو څوک یَو خوا چکر له روان شي، او څوک بل خوا چکر له روان شي او څوک پکښې کند پارک ته چکر له لاړشي او څوک پکښې بلې سیل ګاه ته چکر له روان شي، ځان سره ئې ډول او سُرنه اخستې وي او خپلې خوشحالیانې کوي او څوک پکښې تصویرونه اوباسي نو پهٔ دې کښې دَ اسلام یَو طریقه هم نشته دے، دا ټولې دَ غیر مذهبه خلقو طریقې دي، څوک پکښې چرګان جنګوي، څوک پکښې لاټریانې راوړي، هغه پکښې اولګوي نو دغه یَو جوارې ئې پکښې شروع کړې وي، څوک پهٔ یَو طریقه او څوک پهٔ بله طریقه باندې، دا منې چې اختر دَ مسلمانانو دَ خوشحالئ ورځ ده خو بیا دا نهٔ ګورې چې دَ غیر مذهبه خلقو طریقې پکښې ما څومره اوکړې؟ او دَ اسلام طریقې پکښې ما څومره اوکړې؟

**اسلام څهٔ وائي؟**

اسلام څهٔ وائي؟ اسلام خو دا وائي: چې تا باندې خوشحالي راغله نو تهٔ به څهٔ کوې؟ چې تا باندې غم راغلے نو تهٔ به څهٔ کوې؟ نو اسلام دا لار مونږ ته ښودلې ده، خوشحالي راغله نو تهٔ دَ الله

حمد او شکر اداء کړه، "الحمد الله" اووايه، که خفګان راغلے نو "إنا لله وإنا إليه رٰجعون" اووايه.

**دَ مؤمن دپاره تعجب**

حديث کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: «عَجَبًا لِأَمْرِ الْمُؤْمِنِ، إِنَّ أَمْرَهُ كُلَّهُ خَيْرٌ، وَلَيْسَ ذَاكَ لِأَحَدٍ إِلَّا لِلْمُؤْمِنِ، إِنْ أَصَابَتْهُ سَرَّاءُ شَكَرَ، فَكَانَ خَيْرًا لَهُ، وَإِنْ أَصَابَتْهُ ضَرَّاءُ، صَبَرَ فَكَانَ خَيْرًا لَهُ».[1]

"زهٔ دَ مسلمان دې کار لره پهٔ تعجب کښې يم؛ ځکه دَ دهٔ ټول کار دَ دهٔ دپاره دَ خير دے، او دا خصوصيت دَ مسلمان نه علاوه دَ بل چا دپاره نشته، کهٔ چرته دهٔ ته خهٔ خوشحالئ اورسيږي او دے پهٔ دې شکر اوباسي نو دا هم دَ دهٔ دپاره غوره او خير وي او کهٔ چرته دهٔ ته خهٔ تکليف اورسيږي او دے پهٔ دې خپل تکليف باندې صبر اوکړي نو دا هم دَ دهٔ دپاره خير وي".

نو کهٔ دهٔ ته خهٔ خوشحالي اورسيږي او دے پرې شکر اداء کړي نو دا دَ دهٔ دپاره خير دے؛ ځکه الله به ورله پهٔ دې شکر ايستلو اجر ورکړي او کهٔ دهٔ ته خهٔ تکليف اورسيږي او دے پرې صبر اوکړي نو دا هم دَ دهٔ دپاره خير وي، الله تعالی به پرې دهٔ له اجر ورکړي، نو عزتمندوا پکار دا دے چې مونږ او تاسو خپل غم او خوشحالي پهٔ هغه طريقه اوکړو چې پهٔ کومه طريقه باندې نبي ﷺ کړې وه، او چې دَ غيرو خلقو طريقې مونږ پريږدو او دَ خپل نفس خواهشات پريږدو.

**خواهشات پريښودل**

رسول الله ﷺ فرمائي: «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[2]

"تر هغې وخته پورې يو سړے دَ کامل ايمان والا نشي جوړيدے چې ترڅو پورې دَ هغهٔ تمام خواهشات زما دَ دين او زما دَ طريقې تابع شوي نهٔ دي".

چې تهٔ کوم يو کار هم کوي نو اول سوچ اوکړه چې پيغمبر ﷺ دا کار پهٔ کومه طريقه کړے دے چې زهٔ هم پهٔ هغه طريقې دا کار اوکړم، او زهٔ هم دَ پيغمبر ﷺ پهٔ طريقه باندې روان شم؛ ځکه مونږ له پهٔ هر کار کښې نمونه نبي ﷺ دے.

**پهٔ هر کار کښې دَ نبي ﷺ نمونه**

زمونږ دپاره پهٔ هر کار کښې دَ نبي ﷺ نمونه موجود ده؛ ځکه الله رب العزة فرمائي: ﴿لَقَدْ كَانَ

(1) أخرجه مسلم في كتاب الزهد والرقائق، باب المؤمن أمره كله خير، برقم: (2999).
(2) أخرجه البغوي في "شرح السنة" في كتاب الإيمان، باب رد البدع والأهواء، برقم: (104).

﴿لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾.[1]

"پهٔ تحقیق مره شته دے ستاسو دپاره پهٔ باره دَ پیغمبر ﷺ کښې بهترینه نمونه دَ هغه چا دپاره چې عقیده ساتي دَ الله او دَ ورځې روستنۍ او یادَوي الله لره ډیر ډیر"، کوم عمل چې کوې نو مخکښې اوګوره! چې دَ دې عمل دپاره زما دَ پیغمبر ﷺ څهٔ طریقه ده؟ دا کار زما پیغمبر ﷺ پهٔ کومه طریقه باندې کړے دے؟ نو چې څنګه ئې کړے دے نو پهٔ هغه طریقه باندې ئې تهٔ هم اوکړه، اختر راغلے دے، نبي ﷺ اختر څنګه کړے دے؟ قرباني ئې کړې ده نو تهٔ هم قرباني اوکړه، نبي ﷺ پهٔ میلو کښې جوارئ نهٔ دي کړي نو تهٔ هم جوارئ مهٔ کوه پهٔ میلو کښې، دَ مسلمان سره ئې دهوکه نهٔ ده کړې نو تهٔ هم مسلمان سره دهوکه مهٔ کوه، هغه خیانت نهٔ دے کړے نو تهٔ هم خیانت مهٔ کوه، هغه حرام نهٔ دي خوړلي نو تهٔ هم حرام مهٔ خوره، دَ الله دَ حکم خلاف ئې نهٔ دے کړے نو تهٔ هم دَ الله دَ حکم خلاف مهٔ کوه؛ ځکه دَ الله پهٔ پیغمبر ﷺ کښې زمونږ دپاره بهترینه نمونه موجود ده، مونږ به غیر مذهبه خلقو ته نهٔ ګورو، مونږ به دیته ګورو چې مونږ دا کار کوو، دا نبي ﷺ څنګه کړے وو؟ نو پهٔ هغه طریقه به ئې مونږ هم کوو.

بیا عام طور سره دا ټولې میلې دَ فسق او فجور نه ډکې دي نو دي ته بالکل تلل نهٔ دي پکار، او بیا لا قدم پهٔ قدم چې پکښې جوارئ کیږي، جواري حرامه ده، او مونږ مسلمانان غواړو چې زمونږ ثواب دې اوشي او دَ هغې دپاره پهٔ لس لس زره روپو قربانۍ نیسو، چې مونږ له الله اجر راکړي، خو واورئ! چې دَ روپۍ ثواب دې هم نهٔ کیږي چې یَو طرف ته دې قرباني کړې ده او بل خوا میلې ته ځې او هلته کښې جوارئ کوې او یَو طرف ته دې قرباني کړې ده او بل طرف ته دې ټکټونه راوړي دي او هغه پهٔ خلقو خرڅوې، چې قسمت دې خپل دے کهٔ تش راوځي او کهٔ ډک راخیژي، دا خلافِ شرع کار دے.

**دَ سیدنا عمر ﷺ قول**

دَ سیدنا عمر ﷺ قول دے، هغه وائي: "پهٔ لسو حصو کاروبارونو کښې مونږ نهه حصې کاروبارونه پریخودي دي؛ دَ دې وجې نه چې پهٔ دې کښې به حرام وي، پهٔ یَوه حصه کاروبار

(1) [سورة الأحزاب: 21].

باندې عمل کوو، چې دا صحیح ده"، او مسلمان حلالې طریقې بالکل پرېښودې دي او په حرامو کښې مبتلاء دے او که ورته وائي: "چې دا مه کوه"، نو بیا دَ هغې دپاره بهانې کوري، او دَ هغې دپاره وجهې کوري! دا یاد ساتئ! چې یَو سړے حرام کار کوي او هغې ته جائز وائي یا دَ هغې دپاره وجهې کوري نو سړے په دې سره کفر له رسیږي، که ته ورته وائي: "چې دَ سود پیسې مه خوره!"، نو وائي: "چې زه خو ئې خورم نه، زه خو ئې په غلطو ځایونو کښې لګوم"، داسې بهانې ورته کتل په دې باندې سړے کفر له رسیږي، ستا مقصد دا دے: چې خورې ئې نه نو دا به جائز وي څه؟ نو دا خو دَ کفر خبرې دي.

**حرمت دَ شرابو او جوارئ**

قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ﴾.(1)

"اے زما پیغمبره! دا خلق ستا نه دَ شرابو او جوارئ باره کښې تپوس کوي (چې آیا شراب او جوارې جائز دي او که نه دي جائز؟) ورته اووایه اے زما محبوبه پیغمبره! په دې شرابو څښکلو کښې او په جوارئ کولو کښې ډیر لویه ګناه ده او ظاهري ګټې کښې لږې فائدې هم شته".

ولې؟ جوارئ کښې سړے سحر وختي تش جیب لاړشي او ماښام ډک جیب کور ته راځي، نه لاس سترے او نه خپه سترې او مال ورته میلاؤ شي نو دا ظاهري فائدې ګټې کښې شته دے او شرابي سړے چې شراب څښکي نو شراب خو حرام دي لیکن دَ سړي بدن ورسره مضبوطیږي، نو ظاهري فائدې دي ګټې کښې لیکن: ﴿وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِنْ نَفْعِهِمَا﴾ "او ګناه دَ دې دواړو ډیره لویه ده دَ فائدې دَ دې دواړو نه"، نو فائده ګټې کښې دومره نشته لکه څومره چې ګټې کښې ګناه ده.

**په حرامو دَ بدن تربیت**

رسول الله ﷺ فرمائي: «كُلُّ جَسَدٍ نَبَتَ مِنْ سُحْتٍ فَالنَّارُ أَوْلَى بِهِ».(2)

"کوم جوسه او بدن چې دَ انسان په حرام مال باندې غټ شوے دے نو اُور دَ جهنم دَ دغې بدن دپاره ډیر لائق دے".

نو دَ کوم بدن تربیت چې په حرامو شوے دے نو دا ډیر دَ دې لائق دے چې دَ جهنم په اُور دغه بدن اوسوزولے شي.

(1) [سورة البقرة: 219].
(2) أخرجه أخرجه البيهقي في "شعب الإيمان"، برقم: (5375).

**دَ سیدنا ابوبکر ﷛ واقعه**

دَ ابوبکر صدیق ﷛ غلام وو، هغه ابوبکر صدیق ﷛ له یې راوړل او هغه ډیر زیات اوږے شوے وو، نور ځلي به ئې ترې تپوس کولو، خو پهٔ دغه ورځ ئې ترینه تپوس اونهٔ کړو...، هر مشر له پکار دي چې دَ خپل کشر نه تپوس کوي، رسول الله ﷺ فرمائي: «أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ».(1)

"خبردار! هر یَو په تاسو کښې مشر دے او دَ هر مشر نه به دَ هغه دَ کشر باره کښې تپوس کیږي".

الله به تپوس کوي: "چې ستا ځوي جواري کوله، تا دے منع کړے وو؟ تا دا خپل بچے پهٔ دین باندې پوهه کړے وو؟"، نو دَ دې بچي پهٔ وجه به دَ مور پلار پهٔ کریوان کښې لاس اچولے شي، نو ابوبکر ﷛ دَ هغې خپل غلام نه پهٔ دغه ورځ تپوس اونهٔ کړو، چې بیا ئې اوخښکل نو وائي: تا خو زما نه تپوس اونهٔ کړو؟ دا خو هغه یې وو چې پهٔ جاهلیت دور کښې به ما کهانت کولو او دمونه به مې اچول، فالونه به مې کتل نو چې زما پهٔ دم سره به کوم خلق ښهٔ شول نو هغوي به ما ته اووئیل: "چې ته پهٔ دې لار تیریږې نو ما به خبروې نو زهٔ به څهٔ درکوم"، نو زهٔ تلے ووم نو هغه ما له دا یې راکړل، او تا دغه یې اوخښکل، دا خو دَ هغې کهانت یې وو، نو ابوبکر ﷛ اوږے دے بیا ئې پهٔ خُلهٔ کښې کوته وردننه کړه او کوشش دا کوي: چې هغه یې اُلټۍ کړي، خو هغه نهٔ اُلټۍ کیږي؛ ځکه اوږے وو، نو چا ورته اووئیل: "چې ښې ډیرې اوبهٔ اوخښکه بیا به اُلټۍ شي"، نو چې ښې ډیرې اوبهٔ ئې اوخښکلې بیا ئې اُلټۍ اوکړې، یَو سړي ترې نه تپوس اوکړو: "دا خو یَو کوټ یې وو نو پهٔ دې څهٔ کیدل؟"، نو ابوبکر ﷛ ورته وائي: "دا خو لږ تکلیف وو او کهٔ دَ دې یې دَ راغورځولو سره زما ساه وتلے وے ما به دا خپله ساه دَ ځان نه ایستلے وے خو ما به دا یې اُلټۍ کړے وے؛ ځکه ما دَ نبي ﷺ نه اوریدلي دي: چې دَ کوم بدن تربیت پهٔ حرام څیز باندې شوے وي نو دَ هغې دپاره دَ جهنم اُور لائق دے".

نو تا خو جیب کښې دَ جوارئ پیسې واچولې لیکن دغه فائده دومره نهٔ ده څومره چې دَ دې سزا ده، یَو طرف ته خو تا شراب اوخښکل دغې به ستا بدن له دومره فائده نهٔ وي ورکړي

(1) أخرجه البخاري في الأحكام، باب قول الله تعالى ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾ [النساء: 59]، برقم: (7138).

لکه څومره چې جهنم کښې به الله تا لره سزا درکوي، نو څهٔ دپاره دا خپل بدن دَ جهنم اُور ته مضبوطوې؟؛ ځکه الله وائي: ﴿قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ﴾.(1)

"ورته اوایه اے پیغمبره! پهٔ دې کښې ګناه ده لویه او (ظاهري) فائدې دي پکښې دَ خلقو دپاره".

**دَ شرابو او جوارئ نه منع**

الله رب العزة فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾.(2)

"اے مومنانو! یقینًا شراب، جواري او عبادت پهٔ درګاهونو او پهٔ غشو قسمت معلومول دا ګند دے دَ عمل دَ شیطان نه دے، نو ځان اوساتئ دَ دې نه دَ دې دپاره چې تاسو کامیاب شئ".

شراب ولې حرام دي؟ دَ "خمر" دا ټکے دَ "مُخَامَرَة" نه دے، او دَ مخامره مطلب: پرده راوستل، نو دا شراب هم پهٔ عقل باندې پرده راولي، سړي باندې بے هوشي راولي؛ نو دَ دې وجې نه دا حرام دي.

**تعریف دَ شرابو:** دَ انګورو کچه اوبهٔ دي چې هغه چې ټینګې شي او جوش اووهي او دَ هغې نه زګونه اوغورځیږي، دې ته شراب وائي، نو اوس انګور خوره حرام نهٔ دي، خو چې دَ دې کچه اوبهٔ دې چې ټینګې شي او جوش کښې شي او نشه پکښې راغله نو دا حرام شو؛ ځکه دې سره عقل ګډوډ شي، نو دَ دې ضمن کښې چرس څښکل هم راغلل چې چرس څښکل حرام دي، افیوم څښکل حرام دي، کوم څیز چې دَ انسان پهٔ عقل کښې بے هوشي راولي او دے بیا سړے او ښځه نهٔ پیژني نو داسې څیز څښکل قطعًا حرام دي، نو یواځې شراب نهٔ دي کهٔ هغه هر څیز دے خو چې مخامرة العقل پکښې وي او عقل پهٔ هغې سره خرابیږي نو دَ دې څښکل حرام دي.

پیغمبر ﷺ فرمائي: «مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ، إِلَّا أَنْ يَتُوبَ».(3)

"چا چې پهٔ دنیا کښې شراب اوڅښکل نو الله به ورباندې دَ جنت شراب اونهٔ څښکي".

بل روایت کښې راځي: "چا چې دنیا کښې شراب اوڅښکل (دَ نشې څیز ئې اوڅښکلو او چرس ئې اوڅښکل، فودر ئې اوڅښکل، بهر حال هر څیز ئې چې اوڅښکلو چې هغې کښې نشه وه)، الله

(1) [سورة البقرة: 219].
(2) [سورة المائدة: 90].
(3) أخرجه الترمذي في أبواب تفسير القرآن، باب: ومن سورة البقرة، برقم: (2969)، واللفظ له، وأبوداود في تفريع أبواب الوتر، باب الدعاء، برقم: (1479).

تعالی به پهٔ هغوي باندې دَ قیامت پهٔ ورځ دَ جهنمیانو وینې زوې اوڅښکوي"، دا څومره لویه خبره ده.

آیتِ کریمه کښې دویم ټکے ﴿وَالْمَيْسِرُ﴾ راغلے، چې دا جوارئ ته وائي، او جواري هم حرامه ده، ﴿وَالْأَنْصَابُ﴾ "دِرګاهونو ته خپل څاروي بوتلل، چرګان بوتلل، نور څاروي بوتلل او هغه پهٔ درګاهونو حلالول دَ دغه درګاه والا پهٔ نوم دا حرام دي"، ﴿وَالْأَزْلَامُ﴾ "تقسیم کول پهٔ غشو باندې"، دا تقسیم پهٔ غشو باندې داسې وو چې پهٔ دورِ جاهلیت کښې به خلقو پهٔ اووهٔ یا لسو کسانو پهٔ شریکه اوښ واغستو، یَو هومره پیسې به ئې جمع کړې، مثال پهٔ طور پهٔ لس کسانو به ئې یَو اوښ واغستو پهٔ لس زره روپۍ باندې نو پهٔ یَو یَو تن به زر زر روپۍ راغلې، نو هر یَو تن به دغه زر زر روپۍ راجمع کړې او بیا به ئې دَ هغه اوښ تقسیم پهٔ برخو باندې نهٔ کولو، بلکه اوښ به ئې داسې طریقې سره پهٔ غشو باندې تقسیم کړو: چې پهٔ یَو غشي به ئې دوه حصې لیکلې وې او پهٔ بل غشي به ئې درې حصې لیکلې وې او پهٔ بل غشي بهٔ ئې یَوه حصه لیکلې وه او څلورم غشے به ئې خالي پریښودلے وو، پهٔ هغې به ئې څهٔ لیکل نهٔ وو کړي نو پیسې به ئې یَو شان جمع شوې وې نو چې غشي به ئې رااوباسل نو یَو غشي باندې به ئې چې دوه حصې لیکلې وي نو دغه غشے چې به دَ چا رااوختلو نو پیسې به ئې زر روپۍ جمع کړې وې او غوښه به ئې دوه حصې کور ته وړله، او دَ چا چې به درې حصو والا غشے رااوختلو نو هغه به درې حصې کور ته وړلې او چې دَ کوم تن به دغه خالي غشے رااوختلو نو هغه به کور ته خالي راون شو، هیڅ به ورته میلاؤ نشو. دغسې طریقه نن زمونږ پهٔ دې ملک کښې هم کیږي، کهٔ ستاسو خیال وي، دوکاندارانو ټکټونه راوړي وي او هغه پهٔ لس روپۍ خرڅوي او دَ هغې قیمت سل روپۍ وي، نو دے دَ لسو کسانو نه لس لس روپۍ راغونډې کړي او هغه سل روپۍ دے برابرې کړي نو کسان لس دي او څیز یَو دے، نو چې دَ چا نوم رااوختلو نو هغه هغهٔ څیز کور ته یَوسي او نور کسان دغسې پاتې شي، دا کار حرام او ناروا دے، او دَ دې دا ګټه هم حرامه ده، دا شے پهٔ پیسو باندې اغستل هم حرام دي او دوکاندارانو دوکان له لاټرې راوړې وي او هغې کښې قیمتي څیزونه وي، اکثر خو هغه قیمتي څیزونه دوکانداران دَ هغې نه اوباسي او کهٔ هغه ترې نه اونهٔ باسي نو بیا هم دغه کار حرام دے؛ ځکه تهٔ چیټ راواخلې او هغه چیټ پهٔ روپۍ دے یا پهٔ لس روپۍ دے، هغه چې اوګورې نو هغه به خالي وي، کله به پکښې هسې

تصویران وي او كله پښکښې هغه څيز رااوځي، نو داسې نامعلومه سودا کول دا بالکل جواري ده.

**دَ مفتي رشيد احمد ﷫ قول**

هغه پۀ "فتاوٰی رشيديه" کښې او نورو تمامو علماؤ ليکلي دي: "چې دا دوکاندارۍ حرام ده، دَ دې کټه حرامه ده"، نن پۀ دې دور کښې اوګوره! پۀ ميلو کښې، پۀ دوکانونو کښې دوکاندارانو دا شے شروع کړے دے، حلاله کټه ئې پريښودې ده او حرامه کټه باندې اخلي دي.

دارنګې دَ هغوی بل کار دا وو: چې پۀ سفر به تلل نو غشي به پراتۀ وو، پۀ يَو غشي به ئې ليکلي وو: "أَمَرَنِي رَبِّيّ"، او پۀ بل به ئې ليکلي وو: "نهاني ربي"، او بل غشے به خالي وو، نو دے چې به پۀ سفر تلو نو غشے به ئې راواغستو نو کۀ پۀ هغې به ئې ليکلي وو: "أَمَرَنِي رَبِّيّ"، نو تلو به او کۀ پۀ هغې به ئې ليکلي وو: "نهاني ربي" نو بيا به نۀ تلو او کۀ خالي به وو نو بيا به ئې کتلو، الله پۀ دې رد اوکړو او اوئې فرمائيل: ﴿رِجۡسٞ مِّنۡ عَمَلِ ٱلشَّيۡطَٰنِ فَٱجۡتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ﴾.(1) "دا ګند دے دَ عمل دَ شيطان نه ځان ترې نه اوساتئ؛ دَ دې دپاره چې تاسو کامياب شئ".

دا څنګه ګند دے؟ نو حديث مبارکه کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِي دَمِ خِنْزِيرٍ».(2)

"هغه څوک چې خپل لاس ئې پۀ شطرنج او تاش باندې اووهلو، جواري ئې اوکړه نو دَ دۀ مثال پشان دَ هغه تن دے چې لاس ئې رنګ کړو دَ خنزير پۀ وينو کښې".

اګر کۀ دا ظاهري ډير خائسته تاشونه دي خو دَ شريعت حکم دا دے چې دا دَ خنزير پۀ وينو کښې لاس وهل دي.

امام ذهبي ﷫ پۀ "کتاب الکبائر" کښې يَو روايت ذکر کړے دے، او دارنګې امام ابن کثير ﷫ هم دغه روايت ذکر کړے دے او هم دا روايت "الترغيب والترهيب" کښې امام منذري ﷫ هم ذکر کړے دے: چې نبي ﷺ فرمائي: "چې کوم يَو سړے پۀ دغه تاشونو کښې کوټې وهي او لوبې پکښې کوي نو دَ دۀ داسې مثال دے لکه دا سړے چې دَ خنزير پۀ غوښه او پۀ وينو کښې کوټې وهي".

افسوس دا دے: چې مونږ له هغه سترګې پکار دي چې کومې دَ دين سترګې دي، مونږ

---

(1) [سورة المائدة: 90].

(2) انظر: "الترغيب والترهيب" للإمام المنذري، برقم: (4635).

ظاهري کورو، دنیاوي نظر باندې ورته ګورو، خو مونږ دیته دیني نظر چرته نهٔ دے کړے، چې پهٔ دینِ اسلام کښې دَ دې جوارئ او دَ دې نرد شیر څومره ګناه ده.

بل یَو حدیث مبارکه کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَرَسُولَهُ».(1)

"چا چې پهٔ دې څیزونو باندې لوبې اوکړې، پهٔ شطرنج او تاش باندې پهٔ تحقیق سره دې سړي دَ الله او دَ الله دَ پیغمبر ﷺ خلاف اوکړو".

**مفسر ابن کثیر رحمه الله ذکر کړي دي**

دهٔ یَو روایت ذکر کړے دے چې رسول الله ﷺ فرمائي: "چې کوم سړے جواري اوکړي او دَ جوارئ نه پس پاسي او نیت ترې او دے وائي: چې زهٔ مونځ کوم او اودس ئې هم کړے دے نو دَ دې مثال داسې دے لکه چې هغه پهٔ وینو اودس کوي او وائي: زهٔ مونځ کوم"، چې پهٔ وینو باندې څوک اودس اوکړي نو اودس ئې نهٔ کیږي نو مونځ به ئې دَ کوم ځائے نه اوشي؟ نو دغه شان دَ دهٔ حرام پهٔ خیټه کښې دي او پهٔ جیب کښې ئې حرام دي، دَ دهٔ مونځ به دَ کوم ځائے نه اوشي؟

دارنګې بل حدیث مبارکه کښې راځي: رسول الله ﷺ فرمائي: ډیر کرته یَو سړے به وي چې الله ته به ئې خپل لاس اوچت کړے وي او دَ الله نه به سؤال کوي چې: «يَا رَبِّ، يَا رَبِّ!».

"یا الله! یا الله! زما سؤال قبول کړه".

دَ الله نه به دعاګانې غواړي خو نبي ﷺ فرمائي: «فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ؟».

"څنګه به دَ دهٔ دعاء قبوله کړے شي".

هر څهٔ دَ حرامو دې نو سؤال به ئې څنګه قبول کړے شي او حال دا دے چې: «وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ، وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ، وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ، وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ».(2)

"چې دَ هغهٔ خوراک حرام دے او دَ هغهٔ څښاک حرام دے او دَ هغهٔ جامې دَ حرامو دي او دَ هغهٔ تربیت ټول پهٔ حرامو شوے دے، خوراک ورته دَ حرامو ورکړے شوے دے".

نو دَ داسې کس دعاء به الله څهٔ قبوله کړي او دَ دهٔ به مونځ څهٔ قبول شي چې هر څهٔ ئې دَ حرامو دي.

**یَو نوړئ دَ حرامو خوړل**

یَو روایت کښې راځي: "چې یَو نوړئ دې دَ حرامو اوخوړه نو څلویښت (۴۰) ورځې دې

(1) أخرجه أبوداود في كتاب الأدب، باب في النهي عن اللعب بالنرد، برقم: (4938).
(2) أخرجه مسلم في كتاب الزكاة، باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها، برقم: (1015).

مونځ نۀ قبلیږي".

**دَ جهنم په هره دروازه د ننه کیدل**

رسول الله ﷺ فرمائي: «مَنْ لَمْ يُبَالِ مِنْ أَيِّ بَابَ دَخَلَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ لَمْ يُبَالِ اللهُ مِنْ أَيِّ بَابِ أَدْخَلَهُ النَّارَ».[1]

"دَ کوم سړي چې دا پرواه نشته چې دَ ته دا مال دَ کوم ځائے نه راغلے (دَ حرامو او حلالو خیال نۀ کوي) نو الله رب العزة هیڅ پرواه نۀ کوي چې دے دَ کومې دروازې نه هم جهنم ته بوځي".

دنیا کښې خو دے دَ حلالو او حرامو خیال نۀ ساتي، چې حلال ئې اوکټل او کۀ حرام ئې اوکټل هیڅ پرواه ئې نشته، خو کورے یاد ساتئ! چې دَ قیامت ورځ راشي نو الله به دا پرواه نۀ ساتي چې دَ کومې دروازې دَ جهنم نه دے غورځیږي نو غورځوي به ئې، او دا مۀ وایئ چې دَ یو سړي کاروبار دَ حرامو دے نو الله ته دۀ لره ولې دومره مال ورکوي؟ او چې یو سړے حلال کسب کوي نو هغه له ئې نۀ ورکوي، نو دا ولې؟ داخبره یاد اوساتئ! چې دا دنیا دَ امتحان یو ځای دے، دا دَ امتحان یو میدان دے، کله کله به الله تعالی ستا نه مال واخلي؛ امتحان کوي چې دے پۀ دې غریبئ کښې څۀ کوي؟ چې زما پۀ دین کلک دے او کۀ نا حرام کوي، نو دا پۀ تا باندې یو امتحان کوي، او کله کله به درته ډیر زیات مال درکړي، هغه هم امتحان دے چې دا مال ورکوم چې دے پۀ دې مالدارئ کښې زما شکر اداء کوي او کۀ نا دے زما دَ قانون خلاف کوي؟ نو یاد ساتئ! دَ حرام مال دَ کټې او دَ حرامو پیسو چرته آرمان اونۀ کړئ.

**پۀ دنیا کښې څلور قسمه خلق دي**

رسول الله ﷺ فرمائي: "پۀ دنیا کښې څلور قسمه خلق دي:

(۱) **اول نمبر:** هغه سړے دے: چې الله تعالی ورله علم ورکړے دے او مال ئې هم ورکړے دے، دے دا مال دَ الله پۀ لاره کښې لګوي، دَ کاوندیانو سره ښۀ سلوک کوي، دَ خپلو خپلوانو سره ښۀ سلوک کوي، او دَ خپل مال نه دَ الله حق اوباسي نو دا بهتر انسان دے.

(۲) **دویم نمبر:** نبي ﷺ فرمائي: هغه سړے دے چې الله ورله علم ورکړے دے، خو مال

(1) انظر: تفسير "نظم الدرر في تناسب الآيات والسور" لإبراهيم بن عمر بن حسن الرباط بن علي بن أبي بكر البقاعي، برقم: (305/7).

ئې نهٔ دے ورکړے، بنهٔ سوچ او پوهه ئې ورکړې ده خو مال ورسره نشته، نو دے پهٔ دې خپل ذهن کښې وائي: "کهٔ چرې ما له الله مال راکړے وے، نو ما به پهٔ دې مال باندې دَ فلانکي پشان نیک کار کړے وے، دَ فلانکي پشان به مې حج کړے وے، ما به دَ دین پهٔ ځایونو باندې مال لګولے وے"، اګر چې مال ورسره نشته خو تمَنَّا ئې دا ده چې ما به دَ الله پهٔ دین باندې مال لګولے وے، نو نبي ﷺ فرمائي: دَ دې سړي اجر او دَ هغې بل سړي اجر یَو شان دے.

(۳) **دریم نمبر:** نبي ﷺ فرمائي: هغه سړے دے چې الله ورله مال او دولت ډیر ورکړے دے، خو الله ورته علم، سوچ او پوهه نهٔ ده ورکړې، او الله ورله پهٔ دین پوهه نهٔ ده ورکړې، دهٔ سره ډیر زیات مال او دولت دے خو دَ الله حق نهٔ پیژني، پهٔ صحیح طریقې باندې مال نهٔ لګوي، دا پهٔ تمامو منظرونو کښې بدترین منظر دے، دا انسان دَ دهٔ دا مال به دَ قیامت پهٔ ورځ دَ دهٔ پهٔ غاړه کښې واچولے شي او دهٔ له به سزا ورکولے شي، دے به پهٔ تندي باندې چیچي او ورته به وائي: "چې زهٔ ستا هغه مال یم او زهٔ ستا هغه خزانه یم چې تا پهٔ دنیا کښې راجمع کړې اووم"، او نبي ﷺ فرمائي: "چې یَو سړے زکوٰة نهٔ ورکوي دا به دَ جهنم پهٔ اُور کښې ګرم کړے شي او دهٔ ته به پرې داغونه ورکولے شي چې دا ستا هغه مال دے چې تا پهٔ دنیا کښې جمع کړے وو".

(٤) **څلورم نمبر:** نبي ﷺ فرمائي: هغه سړے دے چې هغهٔ سره مال او دولت نشته، او نهٔ ورسره علم شته، خو دے وائي: کهٔ چرې الله تعالی ما له مال راکړو نو ما به پرې دَ فلانکي سړي پشان بدمعاشي کړے وے او ما به پرې هم دَ فلانکي سړي پشان تې وي راوړے وے (دَ دهٔ هم دَ ګناه نیت وي) نو دا سړے او هغه سړے چې چا سره مال شته او ګناه پرې کوي دواړه پهٔ ګناه کښې یَو برابر دي؛ ځکه دَ دهٔ نیت خراب دے اګر چې مال ورسره نشته".

نو عزتمندوا دَ حرام مال تمنا مهٔ کوئ، چې تهٔ وائي: "چې اوګورها دَ فلانکي سره څومره مال دےا"، سره دَ هغه مال نه دے مونځ او اودس نهٔ کوي او دے مالدار دے نو دې ته خو استدراج وائي، الله دا سړے پهٔ مزه مزه باندې رانیسي، او الله به دهٔ له عذاب ورکوي، نو نبي ﷺ فرمائي: "چې کوم سړے پهٔ دنیا کښې مال ګټي او دا پرواه نهٔ ساتي چې حلال ګټي او کهٔ حرام ګټي نو دَ قیامت پهٔ ورځ به الله دا پرواه نهٔ کوي چې دے دَ کومې دروازې نه غورځولے وي نو غورځولے به ئې وي".

## په بیت المقدس باندې ملائک

رسول الله ﷺ فرمائي: په بیت المقدس باندې يو فرښته ولاړه ده او هغه دَ شپې او دَ ورځې دا آواز کوي: «مَنْ أَكَلَ حَرَامًا لم يَقْبَلِ اللهُ مِنْهُ صَرْفًا، وَلاَ عَدْلاً».

"کوم سړے چې حرام مال خوري هغهٔ نه به الله نهٔ فرض عبادت قبول کړي او نهٔ به ئې نفل عبادت قبلوي".

ما تاسو ته وئيلي وو: چې دَ چا مال حرام وي دَ هغه سره قرباني نهٔ کیږي، نو قرباني خومره دَ سعادت خبره ده، او خلقو به جهګړې کولې چې دا فلانکے دې ما سره قرباني نهٔ کوي؛ وجه دا ده: چې حرام مال کښې ثواب نشته، او کهٔ حرام مال خوري نو ځان ورباندې تباه کوي.

علماء کرام ذکر کوي: "چې يو سړي سره حرام مال دے، غلا ئې کړې ده، سوْد ئې کړے دے، جواري ئې کړې ده او مسئله ئې واوریدهٔ چې دا شے خو حرام دے، ما خو ځان تباه کړے دے، او نن نه بعد به حرام نهٔ کوم خو چې دَ دې ایشتو سره به څهٔ کوم؟ نو داسې به نهٔ کوي چې دا شتهٔ به اوخورَم او بیا به حرام نهٔ خورَم، نو اوس به دے پهٔ دې مال باندې څهٔ کوي؟ نو دے به داسې اوس نهٔ کوي چې دا حرام مال خوري، دے کهٔ دا پیسې خیراتي يو غریب له ورکوي نو دَ ثواب نیت به پکښې نهٔ کوي، چې دا پیسې زهٔ دې غریب له ورکوم دې دپاره چې زما ثواب اوشي، ما له خو جائز نهٔ دي خو دهٔ لره به ئې ورکړم ما لره به الله تعالی اجر راکړي، نو علماء کرام ذکر کوي: چې يو سړے حرامې پیسې خیراتي ورکوي او پهٔ هغې کښې دهٔ دَ ثواب نیت اوکړو نو دې سره دا سړے کافر کیږي"، پهٔ حرام خیز سزا میلاویږي او ثواب پرې نهٔ میلاویږي، او دهٔ پکښې دَ ثواب نیت اوکړو نو دے پهٔ دې سره کافر کیږي.

دارنګې يوه بله مسئله هم ده: "يو غریب له ئې ورکولې او دهٔ ته پته وه چې دا حرامې دي او هغه ورته اووئیل: چې "جزاك الله"، یا ورته اووائي: چې الله دې اوبخښه او دهٔ ته هم پته وه چې ما ته دا پیسې حرامې میلاؤ شوې نو دې سره دا دواړه کافر شول"، پهٔ حرام مال کښې ثواب نشته، نو دَ حرام مال نه به ځان څنګه خلاصوې؟ دا به يو غریب له ورکړې او ورته به اووائي: "چې دا پیسې حرامې دي اوس پرې زهٔ خفه يم ما ترې نه خلاص کړه او تهٔ غریب ئې تهٔ ئې خپلو ضرورياتو کښې

استعمال کړه"، هغه دپاره استعمال جائز دے، نۀ به ورته وائي: "جزاك الله" او نۀ به ورته وائي: "چې الله دې اوبخښه"، غریب دپاره ئې استعمال جائز دے؛ ځکه هغه عاجز دے.

ها! کۀ چا سره دې دهوکه کړې ده یا چا نه دې پۀ زوره اغستي دي او تا له ئې مالک معلوم دے، او دَ مسئلې نه خبر شوې او تا دا پیسې مالک له واپس کړې نو بیا دې پکښې ثواب هم کیږي، او تۀ ورته اووائې: "چې زۀ اوسه پورې دَ مسئلې نه نۀ ووم خبر خو دا پیسې حرامې دي، ستا نه مې غلا کړې ده، جوارې کښې مې درنه ګټلې دي، دا پیسې اوس واپس واخله"، نو چې هغه له دې واپس ورکړې نو تۀ دَ ګناه نه خلاص شوې، او کۀ مالک درته نۀ دے معلوم نو پۀ دغه مذکښې طریقه به ئې غریب له ورکوې، او کۀ وردې نۀ کړې نو پۀ حرام مال دې ځان تباه او برباد کړو، دَ دنیا زندګي خو هسې هم ختمیدو والا ده...

**دَ امام محمد رحمه الله روایت**

امام محمد رحمه الله روایت نقل کړے دے، چې رسول الله ﷺ فرمائي: "چې یَو کَس هغه پۀ لس روپۍ باندې جوړه واغسته نهه روپۍ پکښې حلالې دي او یَوه روپۍ پکښې حرامه ده، نو دغه یَوه جوړه چې انسان استعمالوي نو دَ دۀ نۀ مونځ کیږي او نۀ ئې دعاء قبلیږي"، نو اوس دَ دې یَوې روپۍ پۀ وجه باندې هغۀ نهه روپۍ نورې هم پلیتې شوې؛ ځکه چې صفا اوبۀ دې خو چې یَو پیالۍ وارۀ بول پکښې واچوې نو هغه ټولې اوبۀ پلیتې شي، حلالې پیسې دي خو چې یَو روپۍ دې ورسره دَ حرامو ملګرې کړه نو دې سره ټولې حلالې روپۍ حرامې کړځې، اوس تۀ پۀ دې خپل ګریوان کښې سوچ اوکړه! چې زمونږ ټول کاروبار حرام دے او کۀ نا؟ دَ جوارګر جوارې حرامه ده، کۀ دوکاندار یَو طرف ته جائز سودا خرڅوي او بل طرف ته لاټرې خرڅوي دا پیسې حرامې دي، یَو سرے لوبې کوي او پۀ هغې کښې شرط کیږدي کۀ ما اوګټله نو دومره پیسې به ما له راکوې او کۀ تا اوګټله نو تا له به دومره پیسې درکوم نو دا شرط حرام دے، یَو انعام دے او یَو شرط دے پۀ دې دواړو کښې فرق دے، هغه دا: انعام دیته وائي: چې دا کار هر چا اوکړو نو زۀ به ورله انعام ورکوم، دا صحیح ده، او شرط دیته وائي: کۀ ما اوګټلو نو تۀ به پیسې راکوې او کۀ تا اوګټلو نو زۀ به ئې درکوم، دیته "شرط" وائي او دا حرام دے.

دارنګې پهٔ دهوکه باندې مال خرڅول حرام دي، غلا کول حرام دي او سود کول حرام دي نو زمونږ دَ مسلمانانو کهٔ يَو طرف ته کاروبار جائز دے نو بل طرف ته زياتے کړي، او دا حرام دے نو دَ دغې تولهٔ ګټه حرامه ده.

نو عزتمندو مسلمانانو رونړوا عزتمندې ورځې شپې دي، يَو سړي قرباني هم کړې ده او دعاګانې هم کوي او مونځونه هم کوي خو چې بل طرف ته مال ئې حرام دے نو هيڅ ثواب ورته نهٔ ميلاويږي نو پکار ده چې مونږ خپل معاملات صحيح کړو او دا اوپيژنو چې شريعت کښې خوشحالي پهٔ کومه طريقه ده؟ پهٔ شريعت کښې خو بس دغه خوشحالي وه چې نبي ﷺ به نوې جامې واچولې، خوشبو به ئې اولګوله او دَ چا چې به دَ يَو بل سړه نالګي وه نو دَ هغوي به دَ يَو بل سره روغه اوشوه، دغه دَ شريعت خوشحالياني دي چې دَ چا پهٔ زړهٔ کښې يَو بل ته خفګان نهٔ وي، نو زمونږ مسلمانان رونړه څنګه خوشحالي مناؤوئ، هغوي خو چرته ميلو ته ځي او چرته ګُند پارک له ځي او چرته سي ډي، وي سي آر راوړي او هغه پهٔ نورو ګناهونو کښې اخته شي، پهٔ يَو تي وي باندې څومره خرچه کيږي نو الله به ستا نه دَ قيامت پهٔ ورځ تپوس کوي، چې مال مې درکړے وو نو هغه دې څنګه لګولے وو؟ چې څومره پيسې دې پهٔ تي وي باندې لګولې دي نو دَ يَوې يَوې روپئ حساب به درسره کوي، اغستل ئې يَو ګناه ده او کتل ئې بله ګناه ده او نورو خلقو له ئې بيټک ته راوړل دا ئې بله ګناه ده؛ ځکه چې خپله هم ګناه کوي او نور خلق هم ګمراه کوي، او بيا پکښې چا لره لا دعوت ورکول چې تي وي مې راوړې ده او پهٔ شريکه به ئې ګورو نو دا ئې بله ګناه ده او دا بجلي چې پکښې کومه خرچه کيږي نو دا ئې بله ګناه ده، نو دا خو دَ ګناهونو سمه مجسمه ده؛ نو دَ دې وجې نه ځان ترې نه ساتل پکار دي.

**نيک کار له دعوت ورکول**

رسول الله ﷺ فرمائي: "چا چې چا لره دَ نيک کار دپاره دعوت ورکړو نو څومره خلق چې دهٔ پسې روان شو او پهٔ هغې طريقه باندې ئې عمل اوکړو نو څومره اجر چې دَ هغه خلقو شوے دے دومره دَ دهٔ اوشو او چا چې غلط کار ته دعوت ورکړو او هغه دَ دهٔ ملګرے شو نو څومره ګناه چې دَ هغه کيږي دومره ګناه به دَ دهٔ کيږي"، نو اوس سوچ اوکړئ! څوک چې سي ډي خپل بيټک ته راوړي، او وائي: چې نن به ئې ګورو، نو څومره ګناه چې دَ کتونکي کيږي نو دومره

گناه به دَ راوړونکي هم کيږي، دا راوړل ئې بله گناه ده او پهٔ تي وي کښې پردو زنانوٴ ته کتل بله گناه ده، دارنګې وخت ضائع کول پکښې بله گناه ده، نو پهٔ دې کښې مسلسل ډير گناهونه راځي او هغې کښې مسلمانان اخته دي.

دارنګې چې زمونږ غم راشي او زمونږ ښادي راشي نو دَ شريعت طريقه به يَو شان وي او مونږ دَ نورو پهٔ طريقه باندې عمل کوو، چې وادهٔ راشي نو وادهٔ کښې اوګوره! څکه دغه هم يَوه خوشحالي ده چې خوشحالي به څنګه کوي؟ پيغمبر کريم ﷺ څنګه خوشحالي کړې ده؟ خوشحالي خو دا ده: چې کله تا کويژدن اوکړه او دَ کويژدن نه بعد نکاح اوشوه، نو دَ نکاح نه روستو خلق راجمع کړه او ډوډئ خلقو له ورکړه نو دغه خوشحالي ده، پهٔ خوشحالئ کښې نهٔ تنګ تکور شته، نهٔ پکښې ډمان راوستل شته، بس ساده طريقه ده، ها کهٔ بعضې کتابونه ليکي: "باب ضرب الدف في النكاح" او بيا پهٔ هغې کښې حديث ذکر کوي: چې دَ پيغمبر کريم ﷺ پهٔ زمانه کښې ورې ورې جينکئ وې او هغوي طنبل غږولے دے، نو بعضې سړي او ښځې وائي: چې پهٔ وادهٔ کښې ډولکي وهل خو نشته خو البته طنبل وهل پکښې راغلي دي، نو ټيک ده مونږ منو چې طنبل وهل شته دے خو چې دَ چا دپاره شته دے؟ هغه خو ورې ورې جينکئ وې او هغوي طنبل غږولو او هغوي پکښې سندرې وئيلې، او سندرې هم هغه داسې سندرې وې چې دَ شريعت برابر وې، او دَ مجاهدينو صفت وو پکښې، نو دا نن چې غټې غټې ښځې طنبل غږوي او دَ خلقو مخکښې ئې غږوي نو دا پهٔ شريعت کښې نشته دے، دا بالکل دَ شريعت نه خلاف دي، دارنګې دَ ورځې ډولئ راوړل، او دا دومره تنګ تکور دا پهٔ شريعت کښې نشته، نن خو دَ شريعت طريقه مونږ بالکل پريښودلې ده، کهٔ دَ اختر خوشحالي ده نو هغه تا دَ شريعت نه خلاف تيره کړه، کهٔ دَ وادهٔ خوشحالي ده نو دَ شريعت نه خلاف دې تيره کړه او بيا چې سنت (ختنه) راغلے نو هغه طريقه دې هم دَ شريعت نه خلاف تيره کړه، نو تهٔ به کله پهٔ شريعت عمل کوې؟

**دَ انبياء کرامو عليهم السلام طريقه**

دَ انبياؤ عليهم السلام طريقه خو دا وه: ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ﴾.(1)

"کار دَ هغوي دا وو: چې دوي به جلدي (تلوار) کوله پهٔ کارونو دَ نيکو کښې، او پهٔ غم کښې او پهٔ

(1) [سورة الأنبياء: 90].

ښادۍ کښې، په هر حال کښې به ئې مونږه رامدد کولو (هر حال کښې ورته مونږ یاد وو)، او هغوي به مونږ ته عاجزي کوله".

مطلب دا چې: نه به ئې په غم کښې زمونږ خلاف کولو او نه به ئې په ښادۍ زمونږ خلاف کولو، نو دا دَ انبیاؤ کرامو علیهم السلام کار وو او دا دَ نیکانو خلقو کار دے، نو اے مسلمانه! ته هم غم کښې هم او په ښادۍ کښې هم دواړو کښې دَ الله طرف ته توجه اوکړه، که ته نن یَو مسلمان ته وائي: چې دا ماشوم په سنت طریقه باندې سنت کړه... سنت طریقه دا ده: چې نائي راوله، هغه به هغهٔ ماشوم سنت کړي، نو چې ماشوم کله جوړ شي که بیا ته دَ شکرېې په طور باندې څهٔ ځوږې نو پاخه ئې کړه، او خلقو له دعوت ورکړه، نو چې ته ورته سنت طریقه بیان کړې چې په دې طریقه ئې سنت کړه نو دهٔ ته به ښځه وائي: خا! زهٔ به خپل ماشوم داسې سنتوم؟ نو ډولکي والا به پکښې جدا راشي او ماشوم له به پکښې واسکټ او پالنګ جدا راشي، او چې کوم خلق راځي نو هغوي له به پکښې متهائیانې جدا راشي او چې ماشوم سنتوي نو دَ خانک لاندې به پکښې پیسې لا جدا کیږدي، نو دا ټول دَ شریعت نه خلاف کارونه دي، عزتمندوا دې نه ځان ساتل پکار دي.

**یَو صحابي پسې دَ بل کس راتلل**

یَو حدیث کښې راځي: "یَو صحابي پسې یَو سړے دعوت له راغے، دعوت ئې ورکولو، چې زما د ځوې سنت دے، او ته به خامخه راځې، ما درته دعوت درکړو، هغه ورته وائي: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نهٔ مونږ بل څوک د سنت دپاره راغوښتې، او نهٔ مونږ د چا دَ سنت دعوت له تلې یُو"، نو هغه ورسره نهٔ دے تلے، په دې دور کښې چې څوک ماشوم پټ سنت کړي، نو خلق بیا ګیلې کوي وائي: مونږ دې هډو خبر نهٔ کړوا ته جوړې یریدې، نو عزتمندوا پکار دا دي: چې مونږ په هر کار کښې دَ شریعت په حکم باندې عمل اوکړو، چې زما دَ پیغمبر ﷺ په دې موقع کښې کومه طریقه ده؟ چې زهٔ په هغې باندې عمل اوکړم، رواج خو پریږده، زمونږ په پښتنو کښې خو دَ هندوانو رواجونه دي، چې خوشحالي راشي نو هم زمونږ نه خپل رب ناراضه وي او که غم راشي نو هم زمونږ نه خپل رب ناراضه وي، الله خوشحالول پکار دي، داسې نهٔ ده پکار چې ماشوم پیدا شي نو هغه هم لوئي غم وي آسمان په ډزو باندې اولي او خلق مبارکۍ له راځي، او دے ورته چایانې رابهر کوي او دے ورته لوښي کښې پیسې اچوي او چې لوړ ئې اوشي نو بیا دَ کور نه هم نهٔ راوځي، نو دا تمامې خوشحالۍ زمونږ دَ شریعت نه خلاف دي.

پكار دا ده: چې مونږ خپله خوشحالي او خپله غم ښادي دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې مطابق كړو، دَ پيغمبر ﷺ طريقه څۀ ده؟ نو دَ پيغمبر ﷺ طريقه خو دا ده: "چې خوشحالي درباندې راغله نو اووايه: "الحمد لله" او چې غم درباندې راغلے نو پۀ هغې باندې صبر اوكړه"، دا دَ پيغمبر ﷺ طريقه ده، او دا دَ تمامو انبياؤ علیهم السلام طريقه ده.

**پۀ نوح عليه السلام دَ خوشحالئ راتلل**

كله چې نوح عليه السلام باندې خوشحالي راغلې وه، خوشحالي څۀ وه؟ هغه دا وه: چې قوم نه تنگ شوے دے او دَ الله نه ئې سؤال اوكړو: چې زما دا قوم زما خلاف كوي، نو ﴿رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا﴾.(1)

"الله! دَ كافرانو يَو كور هم آباد پۀ مخ دَ زمكه مۀ پرېږدې (ټول تباه او برباد كړې!)".

چې كله ئې الله تعالى سؤال قبول كړو او قوم ئې الله تعالى تباه كړو، نو نبي عليه السلام ته الله وائي: ﴿فَإِذَا اسْتَوَيْتَ أَنْتَ وَمَنْ مَعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾.(2)

"اے نوح! چې كله تۀ برابر شې او هغه خوك چې ستا سره دي پۀ كشتئ كښې (او قوم دې تباه شي) نو اووايه: "الحمد لله" چې حمدونه دَ خدای ... هغه ذات لره دي چې مونږ له ئې نجات او خلاصون راكړو دَ قوم ظالمانو نه (او ظالمان ئې تباه او برباد كړل)".

نو دا دَ شريعت حكم دے چې خوشحالي درباندې راغله نو دَ الله شكر اوباسه.

**پۀ ابراهيم عليه السلام دَ خوشحالئ راتلل**

پۀ ابراهيم عليه السلام خوشحالي راغلې ده بچے ئې شوے دے، نو ولې هغه ډزې كوي؟ نا! بلكه ابراهيم عليه السلام وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَهَبَ لِي عَلَى الْكِبَرِ إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ﴾.(3)

"حمدونه دي هغه ذات لره چې ما له ئې بوډاوالي كښې اسماعيل او اسحاق راكړل، يقينًا رب زما خامخه اوريدونكے دے دَ دعاء كانو".

ذا خو ډيره خوشحالي ده چې دَ يَو سړي بچے نۀ كيږي او الله تعالى ورله پۀ بوډاوالي كښې بچے

(1) [سورة النوح: 26].
(2) [سورة المؤمنون: 28]
(3) [سورة إبراهيم: 39].

ورکړي، ابراهيم ﷺ باندې ډېره غټه خوشحالي راغله نو دغه وخت کښې وائي: الله ستا شکر دے، نو شکر اوباسي دَ الله، نو دَغه انبياؤ ﷺ طريقه دا وه.

## دَ داؤد ﷺ او دَ سليمان ﷺ حالت

دارنګې دَ داؤد ﷺ او دَ سليمان ﷺ حالت اوګوره! داؤد ﷺ او سليمان ﷺ له الله بادشاهي ورکړې وه، نو داؤد ﷺ او سليمان ﷺ په دغه موقع وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي فَضَّلَنَا عَلَىٰ كَثِيرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ﴾.(1)

"حمدونه دي الله هغې ذات لره چې په ډېرو مؤمنانو بندګانو باندې ئې مونږ له غوره والے راکړے دے".

دا نهٔ کوي چې ګني دے بادشاه دے او خلقو باندې دې ظلمونه کوي، بيا هم دَ الله حمد وائي؟ نا! بلکه دے بادشاه دے خو ظلمونه نهٔ کوي، او دَ الله حمدونه وائي.

## دَ جنتيانو حالت

جنتيان چې جنت له ځي، قرآنِ کريم دَ هغوي حالت مونږ ته ذکر کوي: چې کله دَ قيامت ورځ شي او الله اووائي: ﴿وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ﴾.(2)

"اے مجرمانو! نن ورځ تاسو دَ مؤمنانو نه جدا شئ".

نو مجرمان به يَو طرف ته ولاړ وي او مومنان به بلِ طرف ته ولاړ وي، نو دغه مومنان جنتيان به په دغه وخت کښې اووائي: ﴿رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾.(3)

"اے ربه زمونږ مهٔ کرځوې مونږ لره دَ قوم ظالمانو سره".

نو چې خوشحالي راغله نو دَ الله حمدونه وايه.

## په پلِ صراط تيريدل

په پلِ صراط باندې تيريدل لوئي غم دے، چې کله جنتيان په پلِ صراط باندې تير شي او بل طرف ته اورَسي نو دوي به وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ﴾.(4)

"حمدونه دي هغه ذات لره چې لرې ئې کړو زمونږ نه غم، يقيناً رب زمونږ خامخه بخښنه کوونکے او قدردانه ذات دے".

(1) [سورة النمل: 15].
(2) [سورة يس: 59].
(3) [سورة الأعراف: 47].
(4) [سورة الفاطر: 34].

نو دَ الله حمدونه به وائي: چې ربه ستا حمدونه دي چې دَ پلِ صراط دَ تيريدو دَ غم نه دې خلاص کړو او مونږ دَ دې نه روغ راپورته شو، نو دا غټه خوشحالي ده؛ ځکه دَ الله حمدونه وائي.

**دَ جنتيا نو دَ جنت په اوبو باندې غسل**

چې کله جنتيان دَ جنت په اوبو اولامبي او جنت ته دننه کيږي نو هغوي به وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ﴾.(1)

"حمدونه دي الله هغه ذات لره چې مونږ ئې دې مقام ته راوستو، مونږ دې ته پخپله نشو راتلے که چرته الله مونږ ته سمه لار نهٔ وے ښودلے".

نو اوګوره! جنتيان دَ الله حمد وائي.

**چې جنتيان جنت ته دننه شي**

کله چې جنتيان جنت ته دننه شي نو بيا به وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ﴾.(2)

"حمدونه او ستائينې دي الله هغې ذات لره چې هغه مونږ سره خپله وعده ريشتيا کړه او مونږ له ئې په ميراث کښې دَ جنت زمکه راکړه، مونږ ځائے نيسو دَ دې جنت نه کوم ځائے چې زمونږ خوښه شي او څهٔ ښهٔ اجر دے دَ عمل کوونکوا".

نو دا خومره لوئې لوئې دَ خوشحالئ خبرې دي، او په دې کښې صرف دَ الله حمد او شکر ذکر کيږي، نو دَ شريعت دَ خوشحالئ دغه طريقه ده کنه چې الله ياد کړه دَ هغه شکر اداء کړه، او دَ شريعت په طريقه زندګي تيره کړه، دارنګې چې کله هغوي پخپلو خپلو ځايونو باندې کښيني نو بيا به دغه جنتيان وائي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ﴾.(3)

"حمدونه دي هغه ذات لره چې لرې ئې کړو زمونږ نه غم، يقينًا رب زمونږ خامخه بخښنه کوونکے او قدردانه ذات دے".

او دارنګې کله چې هغوي په جنت کښې خوراک کوي يا څښاک کوي يا په جنت کښې دَ يو بل سره خبرې اترې اوکړي او بيا پاسي نو دغه وخت به وائي: ﴿وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾.(4)

---

(1) [سورة الأعراف: 43].
(2) [سورة الزمر: 74].
(3) [سورة الفاطر: 34].
(4) [سورة يونس: 10].

"آخره خبره به دَ هغوي دا وي: چې "الحمد لله" حمدونه دَ خدائيتوب الله لره دي چې پالونکے دَ مخلوقاتو دے".

نو چې الله درباندې کوم فضل او احسان اوکړو نو دَ هغې شکر اوباسه، او شکر ئې دَ شريعت پهٔ طريقه اداء کړه.

## دَ ډوډئ خوړلو نه پس شکريه

حديث کښې راځي: چې رسول الله ﷺ به کله اوبهٔ اوڅښکلې او يا به ئې ډوډئ اوخوړه نو دا دعاء به ئې وئيله: «الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ».[1]

"حمدونه دي الله هغه ذات لره چې ډوډئ ئې راکړه او اوبهٔ ئې راکړې او زهٔ ئې دَ مسلمانانو نه اوګرځولم".

## دَ جامو اغستو نه پس شکريه

جامې چې دې واچولې نو دا دعاء وايه: «الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي هَذَا مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلاَ قُوَّةٍ».[2]

"الله ستا شکر دے چې دا جوړه دې راته واغستله بغير دَ څهٔ طاقت او قوت نه زما دَ طرف نه".

کهٔ هر قسم خوشحالي درباندې راغله نو دَ يو الله حمد وايه او دَ هغه شکر اداء کوه؛ دا دَ شريعت طريقه ده او کهٔ تهٔ هر څهٔ کوې او هغې کښې شريعت له نهٔ ګورې، نو تهٔ خو بيا دَ سره مسلمان نهٔ ئې او دا خبره زهٔ دَ ځان نه نهٔ کومه بلکه پيغمبر ﷺ فرمائي: «لاَ يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ».[3]

"تر هغې پورې يو سړے مسلمان نشي کيدے چې ترڅو پورې دَ هغه ټول خواهشات دَ هغه دين تابع شوي نهٔ وي چې ما راوړے دے".

نو چې دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې مطابق زندګي نهٔ وي نو هغه تن بيا مسلمان نشي پاتې کيدے، نو پکار ده موږ له چې موږ خپله غم ښادي دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې مطابق کړو.

الله رب العزة دې موږ او تاسو له دَ عمل کولو توفيق رانصيب کړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الدعوات، باب ما يقول إذا فرغ من الطعام، برقم: (3457).
(2) أخرجه البخاري في "تخريج الأحاديث المرفوعة المسندة في كتاب التاريخ الكبير للبخاري"، برقم: (823).
(3) أخرجه البغوي في "شرح السنة" في كتاب الإيمان، باب رد البدع والأهواء، برقم: (104).

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ

(سورة آل عمران: 31)

# موضوع

# پهٔ شریعت کښې دَ غم طریقه

بتاریخ: 2006-01-20

خطیب

فصیح اللسان لذیذ البیان علامه عبد الحق ربّآني حفظه الله

# پهٔ شریعت کښې دَ غم طریقه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾.[1]

زما عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړو! تاسو دَ ډيرو جُمعو نه پهٔ اتباع دَ رسول الله ﷺ باندې مختلف قسمه بيانونه واوريدل او پهٔ هغې دَ قرآنِ کريم آيتونه او احاديث دَ رسول الله ﷺ تاسو واوريدل، حاصل او مطلب ئې دا وو: چې پهٔ هر وخت کښې پهٔ امت باندې اتباع دَ محمد مصطفیٰ ﷺ لازمه ده، او کهٔ چرته امت دَ خپل پيغمبر ﷺ تابعداري نهٔ کوي نو دا امت چرې هم پهٔ هدايت نشي پاتې کيدے، دوي به پهٔ هدايت نهٔ وي، دوي به ګمراه وي، کهٔ چرې امت دا غواړي چې زمونږ نه زمونږ رب رضاء شي او زمونږ اعمال دَ الله پهٔ دربارِ عاليه کښې قبول او منظور شي نو هله به قبليږي چې پهٔ طريقه دَ محمد ﷺ باندې وي، کهٔ دَ دنيا يو کار سړے کوي نو پهٔ هغې کښې خپل ذهن چلولے شي، دَ چا ذهن به يو شان وي او دَ چا ذهن به بل شان وي، ليکن دَ دين کار به پخپله طريقه او پخپل سوچ او ذهن سره نهٔ کوي، هغه به پهٔ طريقه دَ محمد مصطفیٰ ﷺ کوي، نو اوس پهٔ دې جُمعه کښې دا ذکر کوو: چې دَ پيغمبر ﷺ پهٔ زمانه کښې پهٔ صحابه کرامو ﷺ باندې غمونه راغلي وو.

(1) [سورة آل عمران: 31].

پهٔ پیغمبر ﷺ باندې غم او خفګان او تکلیف راغلے وو، دَ بنده مرګ او ژوند دَ الله پهٔ اختیار کښې دے، بنده چې الله دې دنیا ته رالیږلے دے نو الله رب العزة دے دَ امتحان دپاره رالیږلے دے، کهٔ الله د بنده دا ژوند پیدا کړے دے او مرګ پرې الله راولي نو دا هم یَو امتحان دے، قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾.[1]

"الله هغه ذات دے چې مرګ او ژوند ئې پیدا کړے دے؛ دَ دې دپاره چې پهٔ تاسو باندې امتحان اوکړي چې کوم یَو پهٔ تاسو کښې ښائسته عمل والا دے".

﴿ دَ بنده دا ژوند پهٔ دنیا کښې دَ امتحان دپاره دے، کله به الله ژوند ورکوي او کله به پرې مرګ راولي؛ ځکه الله تعالی دوې پیدا کړي دي او الله تعالی به ئې وژني خو چې پهٔ انسان باندې غم راغلے، نو غم به پهٔ کومه طریقه کوي؟

## پهٔ غم کښې دَ نبي ﷺ سنت طریقه

اولنۍ طریقه دا ده: چې کله دَ سړي زنکدن شروع شي نو پیغمبر ﷺ فرمائي: "تاسو دَ هغه زنکدن والا انسان خوا کښې کښینئ او هغه ته دَ کلمې دَ "لاإله إلا الله محمدٌ رسول الله" تلقین کوئ"، دَ تلقین طریقه ئې دا ده: چې تهٔ به هغه ته نهٔ وائې: "چې تهٔ کلمه اووایه، "لاإله إلا الله محمدٌ رسول الله" اووایه"، ولې؟ پهٔ هغې وخت کښې دَ انسان ذهن کمزورے وي، دومره سوچ ئې نهٔ وي، هسې نه چې هغه انکار اوکړي، چې زهٔ هډو کلمه نهٔ وایم، نو هسې نه چې هغه دَ کفر کلمه اووائي؛ پهٔ دې وجه تهٔ به ورته نهٔ وائې چې کلمه اووایه، بلکه چې دَ هغه زنکدن شروع دے نو تهٔ به ناست ئې او ځان سره به لږ پهٔ تیزه کلمه وائې، او مړي ته به تلقین کوې؛ ځکه نبي ﷺ فرمائي: «لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ».[2]

"خپلو مړو ته دَ کلمې دَ "لاإله إلا الله محمدٌ رسول الله" تلقین اوکړئ".

نو مړي ئې دلته یاد کړي خو مراد ترې نه زنکدن والا انسان دے چې نزدې وخت کښې دَ مړکیدو والا دے، خو هغه ته به دا نهٔ وائې: چې تهٔ کلمه اووایه؛ ځکه چې پیغمبر کریم ﷺ فرمائي: «مَنْ كَانَ آخِرُ كَلاَمِهِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ».[3]

---

(1) [سورة الملك: 2].
(2) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب تلقين الموتى لاإله إلا الله، برقم: (916).
(3) أخرجه أبوداود في كتاب الجنائز، باب في التلقين، برقم: (3116).

"دَ چا چې دَ مرګ په وخت کښې، دَ زنګدن په وخت کښې آخري خبره دا «لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ» په خله راغله نو دغه سړے به ډارک جنت ته ځي"، چې دَ زنکدن په وخت کښې ئې دا کلمه دَ شهادت په خله راغلۀ نو دغه سړے جنتي دے، نو چې کله سړے مړ کیږي نو هغۀ ته دَ کلمې دَ شهادت تلقین کوه؛ دَ دې دپاره چې دَ هغه په خلۀ دا کلمه راشي.

خو کورے دا مو هدو ذهن کښې رانشي چې کله کله سړے وفات شي او کلمه اونۀ وائي یا. کلمه اووائي خو خلق پرې پوهه نشي اګر چې خلق ورته مخامخ ناست وي او یا هغه وفات شوے وي دَ شپې په خوب خوب کښې نو دا به یَو سړے نۀ وائي: "چې ګني دَ دۀ خو بے کلمې ساه اوخته نو دے کافر دَ دنیا نه لاړو (نعوذ بالله!)"، دَ مرګ په وخت کښې کلمه وئیل لازمه نۀ ده چې ګني خامخه به دے کلمه وائي، ها! هله به دے دَ دنیا نه کافر ځي (نعوذ بالله!) چې دے دَ مرګ په وخت کښې دَ کفر کلمه اووائي، دَ کلمه دَ توحید نه انکار اوکړي نو هله به دے کافر کیږي، اوس هغه ته تکلیف دے او کلمه ئې اونۀ وئیله نو خیر دے، خو دَ نبي ﷺ امت ته دا تلقین دے چې تۀ کلمه اووایه اُو دَ ځان سره ئې وایه.

نو دا دَ زنکدن دَ وخت نه حالات شروع شول او چې کله دَ انسان دا روح دَ دۀ دَ بدن نه اوځي نو دَ انسان دا سترګې کولاؤ پاتې شي، خلۀ ئې کولاؤ پاتې شي او دا ولې داسې کولاؤ پاتې کیږي؟ نو حدیث مبارکه دے، چې نبي ﷺ فرمائي: "چې کله دَ انسان دَ بدن نه روح اوځي نو دغه سترګې دَ دۀ دې روح ته ګوري؛ نو په دې وجه ئې سترګې کولاؤ پاتې شي"، نو چې سترګې کولاؤ پاتې شي نو بیا زمونږ دَ خوږ پیغمبر محمد عربي ﷺ طریقه دا ده: چې دَ مړي سترګې بندې کړه، او کۀ ځنۀ ئې کولاؤ پاتې شوې وه نو ځُلۀ به ورله بنده کړئ.

او بیا به چغې او فریادونه نۀ کوئ، کلمه اووایه "إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رٰجِعُونَ"، او صبر کوه، دا صحیح طریقه ده، حدیث کښې راځي: نبي ﷺ دَ ابوسلمه ﷺ خواته ورغلو، هغه بیمار وو، دوي ناست وو چې دَ هغه نه روح اووتو او وفات شو، چې وفات شو نو دَ هغه سترګې کهولاو پاتې شوې، رسول الله ﷺ راپاسیدو: فَأَغْمَضَهُ، ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَهُ الْبَصَرُ».

"نو نبي ﷺ دۀ له سترګې پټې کړې او بیا نبي ﷺ اوفرمائیل: چې کله دَ انسان روح اوځي نو

سترګې وریسې شي، روح ته ګوري نو دَ انسان سترګې کولاؤ پاتې شي".

نبي ﷺ چې دا خبرې اوکړې نو دَ ابوسلمه ﷺ کور والا چغې کړې، چې ابوسلمه ﷺ وفات شو: فَقَالَ: «لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ، فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ»، ثُمَّ قَالَ: «اللهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِي سَلَمَةَ وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّينَ، وَاخْلُفْهُ فِي عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِينَ، وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِينَ، وَافْسَحْ لَهُ فِي قَبْرِهِ، وَنَوِّرْ لَهُ فِيهِ».[1]

"نبي کریم ﷺ هغوي ته اوفرمائیل: خپل ځان ته خیرې مۀ کوئ مګر دَ خیر کلمه وایئ (ردې بدې مۀ وایئ، شکوې او ګیلې دَ الله نه مۀ کوئ)؛ ځکه چې یقینًا پۀ دې وخت کښې تاسو چې کومې خبرې کوئ نو ملائک پۀ هغې باندې آمین وائي (نو هسې نه چې تاسو ځان ته خیرې کوئ)، او بیا نبي ﷺ حضرت ابوسلمه ﷺ ته دعاء کوي: یا الله! ابو سلمه ته بخښنه اوکړې او دَ دۀ درجات اوچت کړې پۀ هدایتِ یافته خلقو کښې او تۀ محافِظ شې دَ دۀ پۀ اهل کښې، دَ دۀ دَ کور والا حفاظت اوکړې، الله دۀ ته دَ دۀ قبر کولاؤ کړې او دۀ لره پۀ دې قبر کښې رڼا جوړه کړې".

نو دا مونږ ته دَ نبي ﷺ تعلیمات شول، چې پۀ تا کۀ داسې حالات راغلل نو تۀ به هم دغسې کوې، مړي ته به ژړا او فریاد نۀ کوې،.تۀ به دَ صبر کلمات وائې، تۀ به وائې: "إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رٰجِعُوْن"، "الله مونږ ستا یُو او تا ته به واپس کیږو"؛ دا دَ صبرناک سړي کار دے، دا خو دَ الله یَو امانت وو، الله درنه واغستو نو تۀ به پۀ دې کښې دا نۀ وائې: "چې خدائے پاکه تا صرف زما دا یَو ځوي موندلے وو، چې دے دې واغستو"، نا! بلکه تۀ به دَ الله دَ رضاء خبرې کوې، دا خو دَ الله تا سره یَو امانت دے.

**واقعه**

علماء کرام ذکر کوي: "یَو عالم وو، دَ هغه ښځه وفات شوه، نو هغه نهایته خفه وو، چا سره ئې خبرې هم نۀ کولې، ملاقاتونه ئې بند کړل، ښځې پسې خفه وو، چا ورته اووئیل: دا ولې؟ دۀ ورته اووئیل: غم راباندې راغلے دے، طبیعت مې ښۀ نۀ دے، یَو اوښیاره زنانه وه، هغې اووئیل: چې ما دَ دې عالم خواته اولیږئ، زۀ ترې نه تپوس کوم، نو دغه ښځه هغه عالِم خواته راغله، ورته وائي: ستا نه زۀ یَو تپوس کوم: زما یَو کاوندیٔ ده، ما دَ هغې نه سرۀ زر راوړي وو سؤالي چې نن ما له

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب في إغماض الميت والدعاء له إذا حضر، برقم: (920).

ستا دا والئ راکړه زمونږ په خپلوانو کښې ښادي ده، هغې ماله راکړل، هغه سرۀ زر زما سره وو، اووۀ يا اتۀ کاله زما سره وو نو اوس هغه زنانه راغله او زما نه هغه سرۀ واپس غواړي، خو اوس ترې نه زما زړۀ نۀ کيږي نو دا هغې له ورکړم کۀ نا دغه سرۀ زما شول؟ نو هغه عالم ورته وائي: دا خو تۀ دَ هغې شکريه أداء کړه چې تا ترې دَ يوې ورځې دپاره راوړي دي او هغې تا ته اووۀ، اتۀ کاله صبر هم اوکړو، او اوس ئې چې درنه غواړي نو اوس ئې هم تۀ نۀ ورکوې؟ هغه ښځه ورته وائي: الله دې پۀ تا باندې رحم اوکړي، چې ما ته داسې مسئله ښائي نو دا تا له چې الله دغه ښځه يَو امانت درکړے وو او ستا خو پۀ اختيار کښې يَو سيکند هم نۀ وو، ذَ دې باوجود ئې تا سره دا دومره وخت تير کړو، نو چې اوس الله خپل امانت واغستو نو تۀ ولې دومره خفه ئې؟ نو هغه عالم پوهه شو چې آوا دا خو ما سره دَ الله يَو امانت وو". ستا پلار وفات شو، ستا مور وفات شوه، ستا ښځه او بچے وفات شو نو بس اووايه: الله! دا ستا امانت وو او تا رانه واغستو، نو پۀ دې صبر کول پکار دي.

**قرآنِ کريم کښې صبرناکوله دَ جنت زيرے**

قرآنِ کريم کښې الله تعالىٰ صبرناکو خلقو له زيرے ورکوي، فرمائي: ﴿وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ﴾.(1)

"زيرے ورکړه صبرناکو ته".

اوس صبرناک چا ته وائي؟ تۀ هم ځان ته صبرناک وائې، زۀ هم ځان ته صبرناک وايم، خو الله وائي: ﴿الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾.(2)

"صبرناک هغه کسان دي چې کله ورته څۀ غم، مصيبت او تکليف اورَسيدو نو هغوي وائي: يقينًا مونږ دَ الله يُو او مونږ به دې الله ته واپس کيږو".

او دا دَ هغوي عقيده وي صرف پۀ خُلې باندې نۀ وائي، او چې کله دې صبر اوکړو نو دَ صبرناکو مقام څۀ دے؟ الله رب العزة فرمائي: ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾.(3)

"يقينًا الله دَ صبرناکو خلقو ملګرے دے".

او کله الله رب العزة فرمائي: ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾.(4)

---

(1) [سورة البقرة: 155].
(2) [سورة البقرة: 156].
(3) [سورة البقرة: 153].
(4) [سورة الزمر: 10].

"الله به دَ قيامت پهٔ ورځ صبرناکو ته بے حسابه اجرونه ورکوي".

حضرت ام سلمه ﵂ فرمائي: "چې ما دَ نبي ﷺ نه اوريدلي دي: چې کوم مسلمان باندې غم راغلے او هغه دا کلمه اووئيله، چې: «﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾، اللهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي، وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا».

"اے الله! مونږ خاص ستا يُو او خاص ستا طرف ته به واپس کيږو، اے الله! زما مصيبت باندې ما له اجر راکړه او دَ دې پهٔ عوض کښې ما له ښهٔ بدله راکړې".

نو چا چې دا کلمه اووئيله نو نبي ﷺ فرمائي: «إِلَّا أَخْلَفَ اللهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا»[1] مګر الله تعالى به ورله دَ دې نه غوره بدله ورکړي، نو ام سلمه ﵂ وائي: دا خبره ما دَ نبي ﷺ نه اوريدلې وه نو چې کله زما خاوند ابوسلمه ﵁ وفات شو، نو ما ته دَ خپل خاوند نه ځوک خوږ او ښهٔ نهٔ ښکاريدو، ما پهٔ زړهٔ کښې اووئيل: چې دا کلمه به اووايم؛ ځکه دَ نبي ﷺ طريقه ده، او دَ هغوي وينا ده خو ما ته دَ خپل خاوند نه ځوک خوږ نهٔ ښکاري او دا خو زما هډو ذهن کښې نهٔ وو چې زما به دَ نبي ﷺ سره نکاح کيږي، نو ما چې دغه کلمه اووئيله نو دَ دې نه پس زما نکاح الله هغه چا سره اوکړه چې هغه دَ ابوسلمه ﵁ نه پهٔ څو څو چنده غوره وو، چې هغه محمد رسول الله ﷺ وو"، نو چې غم درباندې راغلو نو دا: «﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾، اللهُمَّ أْجُرْنِي فِي مُصِيبَتِي، وَأَخْلِفْ لِي خَيْرًا مِنْهَا» کلمه اووايه نو الله به درباندې دَ هغې نه ځکلے حالت راولي، چې بچے دې وفات شو نو الله به درته دَ هغهٔ نه ځکلے بچے درکړي، غم او تکليف درباندې راغلے نو الله به درباندې دَ هغې بدله کښې ښه خوشحالي راولي، نو دَ دې کلماتو اهتمام پکار دے.

**دَ مسلمان بنده بچې وفات کيدل**

ابو موسى اشعري ﵁ فرمائي: چې نبي ﷺ فرمائيلي دي: چې کله دَ يَو مسلمان بچے وفات شي نو الله رب العزة ملائکو ته وائي: «قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِي، فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيَقُولُ: قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهِ، فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيَقُولُ: مَاذَا قَالَ عَبْدِي؟ فَيَقُولُونَ: حَمِدَكَ وَاسْتَرْجَعَ، فَيَقُولُ اللهُ: ابْنُوا لِعَبْدِي بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ، وَسَمُّوهُ بَيْتَ الْحَمْدِ».[2]

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب ما يقال عند المصيبة، برقم: (918)، واللفظ له، وأحمد في "مسنده" في مسند المدنيين، حديث أبي سلمة بن عبد الأسد، برقم: (16344).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب فضل المصيبة إذا احتسب، برقم: (1021).

"تاسو زما دَ بنده بچے وفات کړو؟ نو ملائک ورته وائي: آوا بیا ورته الله وائي: تاسو زما دَ بنده دَ زړهٔ میوه واغسته؟ (ځکه ماشوم بچي سره دَ مور او پلار ډیره مینه وي)، ملائک ورته وائي: آوا نو الله رب العزة بیا تپوس باوجود دَ علم نه کوي: چې پهٔ دغه وخت کښې زما بنده څهٔ وئیل؟ ملائک ورته وائي: ستا حمد او ثناء ئې وئیله او دا دَ "إِنَّا لله وإِنَّا إليه رٰجِعون" کلمه ئې وئیله، پیغمبر محمد مصطفی ﷺ فرمائي: الله بیا حکم اوکړي: چې زما بنده دپاره پهٔ جنت کښې یَو کور جوړ کړئ او هغې ته "بیت الحمد" نوم کیږدئ".

## دوه قسمه مبغوض او لعنتي آوازونه

نبي ﷺ فرمائي: «صَوْتَانِ مَلْعُوْنَانِ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ مِزْمَارٍ عِنْدَ نَعْمَةٍ وَرَنَّةٍ عِنْدَ مُصِيْبَةٍ».(1)

"دوه (۲) قسمه آوازونه دي، چې دنیا کښې هم دَ لعنت نه ډک دي او آخرت کښې هم دَ لعنت نه ډک دي (دَ الله ډیر بدې شي): (۱) یَو دَ خوشحالۍ پهٔ وخت کښې ګانې بجاني وئیل، او (۲) دویم دَ مصیبت پهٔ وخت کښې ژړاګانې کول".

نو دا دوه آوازونه الله ته ډیر بدي شي، او زمونږ پښتانهٔ رونړه وائي: غم پهٔ ژړا باندې ښهٔ ښکاري او وادهٔ پهٔ تنګ تکور ښهٔ ښکاري، نو خبره داسې نهٔ ده بلکه غم دې پهٔ دې ژړا باندې تباه کړو او وادهٔ دې پهٔ دې تنګ تکور باندې تباه کړو، ټول وادهٔ دې هم دَ لعنت نه ډک شو او ټول غم دې هم دَ لعنت نه ډک کړو.

## پهٔ مري پسې ژړا کول

رسول الله ﷺ سخت الفاظ وائي: «لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَطَمَ الخُدُودَ، وَشَقَّ الجُيُوبَ، وَدَعَا بِدَعْوَى الجَاهِلِيَّةِ».(2)

"زما امتي نهٔ دے هغه کس چې هغه (دَ غم پهٔ وخت کښې) مخونه پهٔ سپیړو وهي او کریوانونه شلَوي او چغې وهي پشان دَ چغو دَ جاهلیت".

نو کهٔ دا نارینه وي او کهٔ زنانه وي خو چې دَ غم پهٔ وخت کښې مخ تَکوي، کریوانونه شلَوي، لوئې لوئې چغې اوباسي، چې بل کلي کښې ئې هم خلق اوري، چې فلانکي کور کښې نن غم شوے دے،

(1) أخرجه البزار في "مسنده"، برقم: (7513).
(2) أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب ليس منا من شق الجيوب، برقم: (1294)، واللفظ له، ومسلم في كتاب الإيمان، باب تحريم ضرب الخدود وشق الجيوب والدعاء بدعوى الجاهلية، برقم: (103).

دومره غتې چغې وهي نو نبي ﷺ فرمائي: چې دا نارينه دے، که زنانه ده خو زما امتي نهٔ دے.

**کومهٔ زنانه چې مړي پسې ژاړي**

هغه زنانه چې غمونو کښې چغې اوباسي، دَ هغې متعلق نبي ﷺ ډير سخت وعيد فرمائيلے دے، اوږد حديث دے، نبي ﷺ فرمائي: «أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ، لَا يَتْرُكُونَهُنَّ: الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ، وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ، وَالْاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ، وَالنِّيَاحَةُ " وَقَالَ: «النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا، تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ، وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ». (1)

"څلور (٤) کارونه زما پهٔ امت کښې دَ جاهليت کارونه راروان دي، او دوي ئې نهٔ پريږدي:

(١) **اول:** «الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ» "پخپل خاندان باندې فخر کول"، چې زهٔ داسې دَ اوچت خاندان نه يم، دا دَ جاهلانو خلقو کار دے؛ ځکه الله تعالی ته خو خاندان نهٔ دے پکار، الله تعالی څهٔ وائي؟ الله خو دا فرمائي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ﴾، (2) "يقينًا پهٔ تاسو کښې خوښ سړے الله ته هغه څوک دے چې څوک زيات پرهيزګار دے"، الله تعالی ته خو پهٔ نسب سړے نهٔ نزدې کيږي، بلکه الله ته خو پهٔ تقوٰی باندې سړے نزدې کيږي نو دا خبره کول: "چې زهٔ ډير اوچت نسب والا يم او زهٔ ډير اوچت خاندان والا يم"، نو دا دَ جاهليت کار دے.

(٢) **دويم:** «وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ» "پهٔ نسبونو باندې طعن کول"، دا هم دَ جاهليت دَ کارونو نه يَو کار پهٔ مسلمانانو کښې راروان دے، چې کمزورو نسبونو والا ته سړے سپک ګوري، دا سپک نهٔ دي بلکه دا ټول الله پيدا کړي دي.

(٣) **دريم:** «وَالْاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ» "پهٔ ستورو باندې باران معلومول"، چې دا فلانے ستورے راوختو نو اوس به باران کيږي، فلانکے ستورے راوختو نو باران به کيږي، دا دَ جاهليت خبرې دي، پهٔ دورِ جاهليت کښې به چې باران اوشو نو جاهلانو خلقو به دا وئيل: "چې دا فلانکے ستورے راختلے وو؛ نو ځکه دا باران اوشو"، نو دا قسم خبرې کول دا دَ کارونو دَ جاهليت نه دي.

(٤) **څلورم:** «وَالنِّيَاحَةُ» "پهٔ مړي باندې ژړاګانې کول"، پهٔ دورِ جاهليت کښې چې به هغوي وفات کيدل نو هغوي به باقاعدګئ سره به هغوي وصيت کولو خپلو زنانه او خپلو بچو ته: "چې ما

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب التشديد في النياحة، برقم: (934).
(2) [سورة الحجرات: 13].

پسې به ژړاګانې کوئ"، او دَ ژړا دپاره به ئې پۀ پیسو باندې ښځې راوستلې، چې دې مړي پسې اوژاړه، چې دا غم دروند شي، او خلقو ته پته اولګي چې دا خو ډير غټ سړے وفات شوے دے، او ډيرو ښځو وريښې اوژړل، نن مسلمان کۀ نورې زنانه نۀ راولي خو هغه خپلې زنانه ئې دومره چغې اوباسي چې نورو زنانو ته ئې ضرورت نشته دے، او اکثر ډيرې زنانه داسې وي چې هغوي خو پۀ بدل ژړاګانې کوي، دا شے دَ شريعت نه بالکل خلاف دے، او دَ داسې زنانو يا نارينو باره کښې چې هغوي پۀ غمونو کښې ويرونه کوي او ژاړګانې کوي نو ګناهګار دواړه دي خو دا کار اکثر زنانه کوي، نو پيغمبر مصطفٰی ﷺ پۀ دې حديث کښې دَ دغسې زنانو باره کښې فرمائي:

«النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا، تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ، وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ».[1]

"دا وير کرې زنانه چې دَ خپل مرګ نه مخکښې مخکښې توبه اونۀ باسي نو دا به دَ قيامت پۀ ورځ راپاخولے شي او پۀ دې باندې به پرتوګ دَ کوکړو نه وي او قميص به ئې دَ "جَرَب" نه وي".

نو ويرکره زنانه او چغې وهونکي پۀ مړي باندې دغې زنانه ته به پۀ قيامت کښې دَ کوکړو پرتوګ اچولے شي؛ دا ځکه چې دا کوکړ نهايتې زر اُور اخلي، نو دا سخته سزا شوه.

نو عزتمندو! مونږ او تاسو له پکار دي: چې پۀ مونږ باندې غم راغلے نو چې غم پۀ هغه طريقه اوکړو، چې پۀ کومه طريقه نبي ﷺ کړے دے، دَ ژړا نه زۀ تاسو نۀ منع کوم، ژړا خو چې دَ چا زړۀ کښې نۀ وي نو دَ هغه زړۀ کښې رحم نۀ وي، ترس بيا دَ هغه زړۀ کښې نۀ راځي؛ ځکه بيا چا له ژړا نۀ ورځي، ژړا خو هغه چا له ورځي چې دَ هغه پۀ زړۀ کښې رحم وي.

**دَ نبي ﷺ دَ ژړا طريقه**

دَ پيغمبرِ کريم ﷺ خپل ځوي حضرت ابراهيم وفات کيدلو، زنکدن ئې وو (دَ نبي ﷺ بچي اکثر پۀ ماشوموالي کښې وفات شوي دي)، نو ابراهيم ماشوم بچے وو، نبي ﷺ چې دَ هغه حالت اوکتلو، نبي ﷺ اوژړل، دَ سترګو مبارکو نه ئې اوښکې رواني شوې، صحابه کرامو ﷺ کښې حضرت عبد الرحمٰن بن عوف ﷺ ترې نه تپوس اوکړو: "اے دَ الله پيغمبره ﷺ! تاسو خو مونږه دَ ژړا نه منع کوئ چې ژاړئ مه پۀ مړو باندې، او ستاسو خو خپله حالت بدل دے، تاسو خو پخپله ژاړئ؟"، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: "زۀ تاسو دَ دې ژړا نه نۀ منع کوم، چې تاسو ژاړئ او

(1) أخرجه مسلم في كتاب الجنائز، باب التشديد في النياحة، برقم: (934).

چغې نهٔ اوباسئ او دَ سترګو نه مو اوښکې لاړې نو زهٔ تاسو دَ دې قسم ژړا نه نهٔ منع کوم؛ ځکه دا خو رحمت دَ الله دے، بلکه زهٔ تاسو دَ دې نه منع کوم چې تاسو کريوانونه شلَوئ او مخونه وهئ، او اوږدې اوږدې چغې اوباسئ"، نو هسې خو دَ سرې دَ سترګو نه خامخه اوښکې ځي.

**دَ حضرت سعد ﷺ حالت**

"حضرت سعد ﷺ بيمار وو، نبي ﷺ دَ هغهٔ تپوس له لاړو، هغه باندې بے هوشي راغله او دَ زنكدن حالت ئې وو، نو دَ نبي ﷺ دَ سترګو مباركو نه اوښكې مُباركې روانې شوې".

دارنګې دَ نبي ﷺ نوَسے وفات كيدو، غالبًا دَ زينب ﷺ ځوي وو، نو زينب ﷺ نبي ﷺ پسې سؤال جواب راوليږو: "چې تاسو راشئ!"، نبي ﷺ ورته اووئيل: "بس چې وفات شو نو دَ الله امانت وو، الله تعالى خپل امانت واغستو او زما لور ته وايه: چې صبر كوه"، او تسلي ئې ورته راوليږله، خو لور ئې بيا خبر راوليږو چې: "تاسو خامخه راشئ!"، نبي ﷺ چې راغلے، چې وې كتل نو دَ هغهٔ زنكدن وو، نو نبي ﷺ هغه نوسے راواغستو او دَ سترګو مباركو نه ئې اوښكې روانې وې، ژړل ئې، خو دا داسې ژړا وه چې شريعت كښې جائز ده، منع نهٔ ده او دغه ژړا خو هر چاته ورځي، چې دَ سترګو نه اوښكې روانې دي او زړهٔ غمژن دے.

چې دَ نبي ﷺ ځوي وفات كيدو نو هغه وائي: «إِنَّ العَيْنَ تَدْمَعُ، وَالْقَلْبَ يَحْزَنُ، وَلاَ نَقُولُ إِلَّا مَا يَرْضَى رَبُّنَا، وَإِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا إِبْرَاهِيمُ لَمَحْزُونُونَ».(1)

"يقينًا دَ سترګو نه اوښكې ځي او زړهٔ غمژن كيږي او مونږ به صرف هغه خبرې وايُو چې زمونږ رب پرې زمونږ نه خوشحاليږي، او يقينًا مونږ اے ابراهيمه! پهٔ جدائئ ستا باندې خامخه غمژن يُو".

نو دا قسم ژړا جائز ده، كهٔ پهٔ دغه طريقه نارينه ژړا كوي يا زنانه نو بالكل جائز ده، هيڅ قسم څهٔ قباحت پكښې نشته، خو دَ دې نه ما سيوا پهٔ بله طريقه باندې ژړا كول ناروا دي، غم خو دے خو دا چغې اوباسل يا دَ مړي صفت كول دا لويه ګناه ده، او دا صفتونه دَ مړي كول دا خو هغه څوک كوي چې پهٔ زړهٔ ئې څهٔ غم درد نهٔ وي؛ ځكه چې دَ چا پهٔ زړهٔ غم وي نو هغه نه دا صفتونه نهٔ كيږي؛ ځكه دَ هغه دَ ډير خفكان دَ لاسه آواز نهٔ خيژي نو دا دومره پهٔ خوږ او ناشنا انداز باندې وزنونه جوړول او دَ مړي صفتونه به څوک څهٔ اوكړي؟ نو دا څيز بالكل دَ شريعت نه

(1) أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب قول النبي ﷺ: «إنا بك لمحزونون»، برقم: (1303).

خلاف دے، کۀ ژړا کوي نو تیک ده خو هغه ژړا به کوي چې هغه شریعت کښې منع نۀ ده.

**مسئله**

بیا چې کله مړے اوشو نو جنازه باندې به تلوار کوي، بیا به مړے نۀ حصاروي، نو دَ پیغمبر ﷺ طریقه دا ده: چې جنازه باندې به تلوار کوي.

**بله مسئله**

مړي ته چې کله غسل نۀ دے ورکړے شوے نو علماء کرام وائي: دَ هغه سره خوا کښې تلاوت کول دا مکروه دي، کۀ زنانه دغه وخت تلاوت کوي نو پۀ بله کمره کښې به جمع کيږي نو تلاوت به کوي، او دا غسل ورکول به هم چا پورې خاص کوي نه، چې تۀ وائې: فلانکے لا نۀ دے راغلے یا فلانکے استاذ لا نۀ دے راغلے نو مونږ لا غسل نۀ ورکوو، او بعضې خلق خو پکښې لا داسې وي چې هغوي پردي خلق راولي او مړي ته غسل ورکوي، مسئله دا ده: چې مړي ته به خپل وارث غسل ورکوي، پردو خلقو باندې خپلو مړو ته غسل مۀ ورکوئ، دَ مړي دَ غسل ورکولو زیات حقدار هغه سړے دے چې څوک وارث دے، دَ مړي پۀ لامبولو کښې ډیر زیات ثواب دے، نو بخپله لامبول پکار دي، او پۀ رشته دار ئي کۀ لامبوې نو پۀ رشته دارانو کښې به ئي هم پۀ هغه چا لامبوې چې کۀ چرته مړي کښې څۀ عیب یا نقصان ښکاره شي نو چې دَ مړي عیب او نقصان چا ته نۀ ښکاره کوي، بلکه دَ مړي عیب به پټ ساتي، دا به هیچ چا ته نۀ وائي.

بیا چې کله دې غسل ورکړو نو پۀ جنازه به تلوار کوي، حدیث مبارکه کښې راځي: "دَ صحابه کرامو ﷺ به دا عادت وو چې کله به دَ سحر نه مړے اوشو نو قیلوله به ئي قبر کښې راتله او چې دَ ماسپخین نه پس به مړے اوشو نو شپه به ئي قبر کښې راتله، صبا ته به ئي نۀ حِصارولو"، او نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته ترغیب هم دَ دې ورکړے دے: حضرت ابوطلحه ﷺ بیمار وو، نبي ﷺ هغه تپوس له راغلے، چې اووئي کتل نو دَ هغه حالات ښۀ نۀ وو، زنکدن ئي شروع وو، نبي کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته فرمائي: "زما خیال دا دے چې ابو طلحه ﷺ به وفات کيږي نو کله چې دے وفات شي بیا ما ته خبر راکړئ! او دا درته وایم: چې بیا دَ دۀ پۀ دفن کولو کښې تلوار اوکړئ"؛ ځکه چې دَ مسلمان دَ بدن نه روح اوځي نو بیا پکار نۀ ده چې کور کښې دې پروت وي او خلق ورته ګوري او ژاړي، نو پیغمبر ﷺ هم مونږ له دَ دې ترغیب راکوي: مړے پۀ تلوار دفن کړئ.

**دَ نبي ﷺ حضرت علي ﷺ ته وصيت**

حديث كښې راځي: نبي ﷺ علي ﷺ ته وصيت كړے وو، دَ درېو څيزونو چې كله دَ هغې وخت راشي نو هغه به نهٔ روستو كوې:

**(۱) اول:** «الصَّلَاةُ إِذَا آنَتْ».

"چې كله دَ مونځ وخت راغلے نو مونځ به دَ خپل وخت نه نهٔ روستو كوې".

بيا به دا نهٔ وائي: چې اوس ئې كوم او بيا ئې كوم او پهٔ دې كښې درنه مونځ نا وخته شي، نبي ﷺ فرمائي: چې دا خو دَ منافق سړي مونځ دے، چې هغه وائي: اوس مونځ كوم او دې كښې پرې نمر پهٔ زيړې شي نو دے بيا رامنډې كړي زر زر څارانډام اوكړي بيا لكه دَ چرگ پشان څلور ټونګې اولګوي او سلام اوكرځوي، بيا وائي: چې ما خو مونځ اوكړو، نو دا خو دَ منافقانو مونځ دے.

**(۲) دويم:** «وَالجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ».

"او جنازه چې كله ئې وخت حاضر شي نو بيا صبر مهٔ كوه".

چې سړے وفات شو، او قبر وغيره ئې تيار شول نو بيا جنازه فورًا كول پكار دي، دا نهٔ چې ديخوا قبر تيار دے او هر څهٔ تيار دي او زمونږ دا خلق به وائي: جنازه حصاره كړئ؛ ځكه چې دَ كراچئ نه هغه فلانكيان زاروان دي، او هغوي خو اوس ټكټ راغستے دے، او دَ فلانكي ځائے نه فلانكے راروان دے، او دَ هغوي دپاره ئې جنازه حصاره كړي وي نو دا كار دَ شريعت نه بالكل خلاف دے؛ ځكه نبي ﷺ فرمائي: چې مړے اوشو نو زر زر ئې دفن كړئ.

**(۳) دريم:** «وَالأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفُؤًا».(1)

"چې كله يَو پيغلې بے وادهٔ جينئ دپاره تا له ښوك تپوس له راغلل دَ غوښتو دپاره او دغه خلق ئې "كُفُؤ" وو نو بيا ئې مهٔ حصاروه".

كفؤ ديته وائي: چې مناسب ځائے ورته ميلاؤ شو، چې حسب نسب وغيره كښې دَ دې سره يَو شان وي، نو دا درې څيزونه به نهٔ حصاروې، بلكه پهٔ دې كښې به تلوار كوې؛ ځكه دَ دې پهٔ حصاريدو كښې نقصان دے.

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب في تعجيل الجنازة، برقم: (1075).

نو بله طریقه دَ نبي ﷺ دا ده: چې غم اوشو نو پهٔ جنازې به تلوار کوئ، نبي ﷺ فرمائي: "چې جنازه اوړئ نو زر ئې مقبرې ته یَوسئ؛ کهٔ هغه نیک عمله انسان وي نو ولې مو پهٔ دنیا کښې حصار کړے دے؟ دے خپل منزل ته اورَسوئ چې دے خپل منزل جنت ته اورَسي، او کهٔ بد عمله سړے وي بیا خو تاسو یَو مُرداره پهٔ اوګو باندې کیښودې ده دَ خپلو اوګو نه ئې لرې کړئ"، نو پهٔ جنازه باندې تلوار کول دا دَ پیغمبر ﷺ طریقه ده.

دَ جومات یَوه خادمه وه، هغه وفات شوه، نبي ﷺ ته پته نهٔ وه دَ شپې وفات شوې وه، صحابه کرامو ﷺ دَ شپې شپې دفن کړه، نبي ﷺ چې راغلے وائي: دَ جومات هغه خادمه یا خادم مې اونهٔ لیدلو دوه درې ورځې شوې دي؟ صحابه کرامو ﷺ ورته اوفرمائیل: "چې هغه خو وفات شوې وه او دَ شپې مونږ خخه کړه؛ مونږ تاسو ته ځکه اونهٔ وئیل چې شپه وه تاسو ته تکلیف وو"، نبي ﷺ ورته اووئیل: "ما ته ئې قبر اوښایئ!..."، نو حاصل دا چې: دَ شپې مړے شوے دے او سحر ته ئې پرې نهٔ ښودو، دَ شپې شپې ئې دفن کړه.

بیا چې کله سړے وفات شي او جنازه ئې اوشي نو زمونږ پهٔ خلقو کښې دا قانون دے چې کله جنازه اوشي نو دَ جنازې نه بعد به مړے حصاروي، نو دا طریقه دَ پیغمبر ﷺ نه نهٔ ده ثابت، او بیا دا وائي: چې ایماندارو! دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ، دا شے دَ پیغمبر ﷺ دَ طریقې نه بالکل خلاف دے چې تهٔ مړے حصار کړه، او بیا وائي: چې دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ!؛ ځکه چې جنازې ته اودریدې نو دغه دَ مړي دپاره دعاء وه کنه، نورې دعاګانې پکښې دَ کوم ځائے نه راغلې؟ خو دومره وه چې هغه دې پهٔ عربئ کښې اوکړه، نو دغه پهٔ عربئ کښې دعاء دَ مړي دپاره کافي وه کنه، نو دَ جنازې نه پس بیا ډارک مړے رسَوه بیا بیا دعاګانې نشته دے، "فتاوٰی رحیمیه" پهٔ دې باندې اوږد بحث کړےدے؛ ځکه بعضې وخت داسې اوشي چې جنازه اوشي نو سړه دَ استاذ نه هغوي به وائي: ایماندارو! دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ.

**دَ جنازې نه روستو دعاء شته یا نشته؟**

نو مسئله دا ده، "فتاوٰی رحیمیه" دَ مفتي عبد الرحیم لاجپوري ﷫ ډیر زیاتې حوالې ذکر کړې دي، مونږ پهٔ دې یَو څو حوالې او څهٔ عبارات رانقل کوو؛ دَ دې دپاره چې دې خلقو ته پته اولګي چې دا یَو بدعت دے، او دَ دې نه ځان ساتل پکار دي، لکه اوګوره:

(۱) "فتاویٰ رحیمیه" کښې مفتي عبد الرحيم لاجپوري ﷫ وائي: "دا بدعت دے او دَ دې هيڅ خهٔ ثبوت پهٔ شريعت کښې نشته".

(۲) "إِنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ مَكْرُوْهٌ".

"دَ جنازې دَ مونځ نه روستو دعاء کول دا مکروه دي":

(۳) علامه سعدي الحنفي ﷫ ذکر کوي: "لَا يَقُوْمُ الرَّجُلُ بِالدُّعَاءِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ".[1]

"دَ جنازې دَ مونځ نه روستو به بيا دَ دعاء دپاره نهٔ اودريږي". چې ايماندارو دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ، بس خو چې څنګه جنازه اوشوه نو فورًا به کټ اوچتوي او مقبرې ته به ئې اوړي.

(٤) امام طاهر بن احمد البخاري الحنفي ﷫ ليکلي دي: "لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ فِي قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ لِأَجْلِ الْمَيِّتِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ وَقَبْلَهَا".[2]

"دَ مړي دَ دعاء دپاره به نهٔ اودريږي پس دَ جنازې دَ مونځ نه، او نهٔ به مخکښې دَ جنازې دَ مونځ نه دَ دعاء دپاره اودريږي".

بس دغه جنازې والا دعاء ورله کافي ده کنه.

(٥) علامه سراج الدين اودي الحنفي ﷫ ليکلي دي: "إِذَا فَرَغَ مِنْ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ".[3]

"کله چې دَ جنازې دَ مونځ نه فارغ شوې نو بيا به دعاء دپاره نهٔ اودريږي"، چې چغې وهې: ايماندارو! صبر اوکړئ! دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ.

(٦) امام حافظ الدين محمد شهاب کردري الحنفي ﷫ ليکلي دي: "لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ؛ لِأَنَّهُ دَعَا مَرَّةً؛ لِأَنَّ أَكْثَرَهَا دُعَاءٌ".[4]

"دَ جنازې دَ مونځ نه پس به دعاء ته نهٔ اودريږي؛ ځکه چې دهٔ يَو ځيره دعاء پهٔ جنازه کښې اوغوښتله؛ دا جنازه چې ده نو اکثر پهٔ دې کښې دعاء ده".

(۷) امام شمس الدين محمد الخراساني ﷫ ليکلي دي: "لَا يَقُوْمُ دَاعِيًا لَهُ".[5]

(1) انظر: "القنية" للعلامة السعدي الحنفي: (56/1).
(2) انظر: "خلاصة الفتاوى" للإمام طاهر بن أحمد البخاري الحنفي: (225/1).
(3) انظر: "فتاوى سراجيه" لسراج الدين أودي الحنفي: (161/1).
(4) انظر: "فتاوى بزازيه": (283/1).
(5) انظر: "جامع الرموز شرح مختصر الوقاية المسمى بالنقاية": (125/1).

"مړي ته به دَ جنازې نه روستو بیا په جمع دعاء نهٔ کوي"؛ ځکه دا بدعت دے، دَ پیغمبر ﷺ نه دا ثابت نهٔ دے.

(۸) علامه ابن نجیم رحمه الله لیکلي دي: "لَا يَدْعُو بَعْدَ التَّسْلِيمِ".[1]

"دَ جنازې دَ سلام ګرځولو نه بعد به بیا دعاء دَ مړي دپاره نهٔ کوي".

بعضې خلق دا وائي: یره جي! ټیک ده دعاء خو نشته خو چې صفونه ذې نهٔ وي مات کړي، او چې صفونه دې مات کړل نو بیا دعاء بعد الجنازه شته دے، نو جواب اوشو: دَ "بحر الرائق" عبارت نه معلومه شوه: چې ټکے دَ "بَعْدَ التَّسْلِيمِ" ئې راوړے، پس دَ سلام نه دعاء نشته کهٔ هغه بیا صفونو کښې وي او کهٔ نه صفونه دې ورته مات کړل خو پهٔ دواړو صورتونو کښې دعاء نشته، نو چې کېږ تر څو نهٔ دے اوچت شوے دَ هغې نه مخکښې دعاء کول پس دَ جنازې دَ مونځ نه نشته دے؛ ځکه چې جنازه اوشوه نو دعاء پکښې مړي ته اوشوله، دا دعاء وه کنه: چې تا وئیل: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيرِنَا وكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا..."، دَ دې نه بله بهتره دعاء نشته دے.

(۹) ملا علي القاري رحمه الله لیکلي دي: "وَلَا يَدْعُو لِلْمَيِّتِ بَعْدَ صَلَاةِ الْجَنَازَةِ لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الزِّيَادَةَ فِي صَلَاةِ الْجَنَازَةِ".[2]

"دَ جنازې دَ مونځ نه روستو به دَ مړي دپاره دعاء نهٔ غواړي؛ ځکه چې دا پهٔ مونځ دَ جنازه کښې زیادت سره مشابه کرځي".

## دَ مړي دَ دفن کولو نه پس دعاء

چې کله مړے دفن شو بیا دغه دعاء دَ نبي ﷺ نه ثابت ده، چې پیغمبر ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته اوفرمائیل: "اوس تاسو دَ دهٔ دپاره دَ الله نه بخښنه اوغواړئ؛ «فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْئَلُ» ځکه دَ دهٔ نه به اوس تپوس کیږي"، نو چې کله مړے دفن شو نو بیا دَ قبر پهٔ خوا کښې دَ هغه دپاره دعاء ثابته ده، خو دا دعاء نشته چې مړے لا دفن شوے نهٔ دے او تهٔ وائي: چې دَ دې عاجز پهٔ حق کښې دعاء اوکړئ.

## دَ تعزیت پهٔ موقع دعاء کول

او زما عزتمندو! دارنګې دا دعاء کاني لکه څنګه چې زمونږ او ستاسو پهٔ حُجرو کښې

---

(1) انظر: "بحر الرائق" لابن نجيم المصري: (197/2).

(2) انظر: "مرقاة المفاتيح" لملا علي القاري، : (1213/3).

رواج دے، چې لس کسان روان ئې او تپوس ترې اوکړي: چرته ځې؟ نو دوي به وائي: دعاء له ځم، هر يَو سړي سره به چائے وي اول خو دا دَ چائے کار صحيح نۀ دے، ولې غمونه دَ دې دپاره وو څۀ چې صرف چائے څښکه او خلقو له ئې ورکوه؟ دَ دې درېو ورځو دَ ناستې مقصد ياد کړه! دا درې ورځې چې پۀ حُجرو کښې ناسته کيږي، نو دَ دې مقصد دا دے: چې غم رازي دَ مړي دَ وارثانو اوشي، نو بهتره طريقه خو دَ دې دا وه: چې دَ مړي وارثان کور کښې ناست وي او خلق ورځي، او غم رازي ورسره کوي، نو دوي به څۀ کوي؟ روان به وي چې کۀ پنځۀ کسان ملګري وي، نو استاذ به پکښې اووائي: "الله أکبر!"، نو يَو ملګرے به آواز اوکړي دعاء اوکړئ! بيا به بل ملګرے آواز اوکړي: ايماندارو! دعاء اوکړئ...، بيا به استاذ اووائي: "الله أکبر!"، دا استاذ ئې صرف "الله أکبر" ته کښينولے وي، دا خو مونږ دَ دعاء پورې توقې کوو، يَو لاس کښې به ئې پيالۍ نيولې وي او بل لاس کښې به ئې پرچ نيولے وي او آوازونه به وي چې ايماندارو! دعاء اوکړئ! يَو تکے به ئې وئيلے وي يا نه خو بس لاس به بشکته کړي، کۀ څوک لاس اوچتوي نو دے به هم لاس اوچت کړي، دا خو بالکل دَ نبي ﷺ طريقې پورې خندا ده؛ ځکه چې «الدُّعَاءُ مُخُّ العِبَادَةِ».(1)

"دعاء دَ عبادت مَغز دے".

نو عبادت پورې به توقې او مسخرې نۀ کوئ، بلکه عبادت به پۀ طريقه دَ محمد مصطفٰی ﷺ باندې کوې، چې زما دَ پيغمبر ﷺ کومه طريقه ده؟ دَ غمونو دعاء چې کوئ نو کۀ لس کسان لاړئ او کۀ شل کسان لاړئ نو هر يَو دې دعاء دپاره آوازونه نۀ کوي: چې ايماندارو! لاس اوچت کړئ! بلکه يَو کس دې پکښې اووائي: ايماندارو! دعاء اوکړئ چې الله دۀ ته مغفرت نصيب کړي، بس خبره ختمه، کۀ لسو کسانو لاس اوچت کړل نو ولې هغوي دعاء اونۀ کړه؟ خو دا خو مونږ هر يَو ځان ښائيُو: چې زۀ هم راغلے يم، چې کښيني نو هم آواز کوي چې: دعاء اوکړئ او چې بيا پاسي نو هم آواز کوي چې: لاس اوچت کړئ يَو دعاء دَ جمعي به اوکړو، دا دعاء بالکل خلاف شريعت ده، هر سړے تش لاس پورته کوي، الله ګواه دے کۀ څۀ شے پکښې هم وائي، نو دا شے دَ الله دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې خلاف دے، او افسوس دا دے چې هغه کار چې دَ نبي ﷺ طريقه ده نو هغه مونږ دَ خپو دَ لاندې کوو او کومه چې دَ نبي ﷺ طريقه نۀ

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الدعوات، باب ما جاء في فضل الدعاء، برقم: (3371).

وي نو پهٔ هغې باندې مونږ ډير زور لګوو، بهر حال پهٔ دې طريقه باندې دا دعاګانې نشته.

## پهٔ غم کښې ميلمستوب کول

بيا چې کله غم اوشي نو بعضې خلق داسې کوي: چې مړے به پروت وي او ديګونو والا پسې به سؤال جواب کړے وي، ديځوا مړي له غسل ورکولے کيږي، او بل خوا ديګونه پخيږي نو دا څنګه دي؟ نو تمام علماء کرامو ليکلي دي: چې دا شے ناروا دے، خلق خو پهٔ پنج پيريانو باندې الزام لګوي چې دوي خيرات نهٔ مني او دوي دعاء نهٔ مني او حال دا دے چې تمامو علماؤ ليکلي دي چې دا خيرات کول ناروا دي، مونږ دعاء منو، مونږ خيرات منو خو مونږ وايُو: چې خيرات هغه خيرات دے چې پهٔ طريقه دَ نبي ﷺ باندې وي، خيرات کوي نو خيرات اوکړه خو پهٔ طريقه دَ پيغمبر ﷺ باندې، دا تهٔ چې کوم خيرات کوې نو کهٔ دا دومره تاوان تا پهٔ صحيح طريقه باندې اوکړو نو دومره اجر به درته ميلاؤ شي او مړي ته به دې هم دومره اجر ميلاؤ شي چې څهٔ وايه ئې مه، او کهٔ چرې دَ پيغمبر ﷺ دَ طريقې نه خلاف ئې کوې نو هسې دې مال اولګولو دَ يَو روپۍ ثواب درته هم ميلاؤ نهٔ شو، تمامو علماؤ ليکلي دي: چې دَ مړي کور کښې راجمع کيدل او دغه خوراک کول ناروا دي، ابن ماجه پخپل "صحيح" کښې باب پهٔ دې باندې کيخودلے دے: "بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ الاِجْتِمَاعِ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ وَصَنْعَةِ الطَّعَامِ".

"باب دے پهٔ بيان دَ دې کښې چې دَ مړي پهٔ کور کښې راجمع کيدل او دَ مړي کور والا دغه خلقو له خوراک تيارول دا ناروا دي".

او بيا ابن ماجه پهٔ دې باندې حديث ذکر کړے دے دَ عبد الله بن جرير رضي الله عنه: عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ، قَالَ: «كُنَّا نَرَى الاِجْتِمَاعَ إِلَى أَهْلِ الْمَيِّتِ وَصَنْعَةَ الطَّعَامِ مِنَ النِّيَاحَةِ».[1]

"مونږ به دَ مړي پهٔ کور کښې راجمع کيدل او بيا دَ هغوي نه ډوډۍ خوړل داسې حرام ګڼړل لکه څنګه چې مړي پسې ژړا کول حرام دي".

نو کهٔ يَو سړي ديګ پوخ کړو او تا له ئې دعوت درکړو: چې تهٔ به راځې او دا به خورې نو ياد ساته! داسې حرام دي لکه مړي پسې پهٔ چغو چغو ژړل حرام دي، نو دَ دې دَ خوراک نه به ځان ساتې، دا خيرات نهٔ دے.

(1) أخرجه ابن ماجة في كتاب الجنائز، باب ما جاء في النهي عن الاجتماع إلى أهل الميت وصنعة الطعام، برقم: (1612).

## دَ خيرات طريقه

دَ خيرات طريقه خو دا ده: نبي ﷺ ته خبر راغلو چې ستا دَ تره ځوي حضرت جعفر رضي الله عنه وفات شوے دے، نو نبي ﷺ کور کښې زنانوُ ته وائي: «اصْنَعُوا لأَهْلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا، فَإِنَّهُ قَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ».[1]

"حضرت جعفر رضي الله عنه وفات شوے دے، دَ هغوي پهٔ کور والا باندې غم راغلے دے هغوي ته ډوډئ پخه کړئ".

دا زما دَ پيغمبر ﷺ طريقه ده: چې چا باندې غم راغلے نو تهٔ به ئې خپل کور کښې پخوي او هغوي کره به ئې ليږې، تهٔ دا مهٔ کوه چې خپل کور کښې مهٔ پخوه، هغوي کره خو هسې هم غم شوے دے او هغوي به وريژې پخوي او مونږ به هم ورسره اوخورو، نا! داسې مهٔ کوه، بلکه تاسو به دَ هغوي دپاره ډوډئ پخوئ، او پهٔ هغوي به ئې خورئ، بعضې خلق وائي: زمونږ چې ميلمانهٔ راشي نو هغوي ته خو به څهٔ غم کوو کنه! نو ستا ميلمه چې راغلے ستا کاونډيان دَ څهٔ دپاره دي؟ ستا کاونډيان به دَ هغوي غم کوي کنه! خو دا نن ئې چې ستا کاونډي غم نهٔ کوي؛ نو دا ځکه چې هغه دېګونه ليدلي دي، چې تا راوړي دي نو هغه به ئې څهٔ غم اوکړي؟ چې تهٔ وريژې نهٔ پخوي نو لازمًا به ستا کاونډي ستا دَ ميلمه انتظام کوي، دا شے ناروا دے.

### اقوال دَ علماؤ

ابن شهاب رحمه الله ذکر کوي: "وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ فِي أَيَّامِ الْمُصِيبَةِ؛ لِأَنَّهَا أَيَّامُ غَمٍّ فَلَا يَلِيقُ فِيهَا مَا يَخْتَصُّ بِإِظْهَارِ السُّرُورِ".[2]

"دَ غم پهٔ وخت کښې ډوډئ پخول دا مکروه دي؛ ځکه دا خو دَ غم ورځې وي نو مناسب نهٔ دي پهٔ دې کښې هغه ډوډئ کانې ورکول چې خاص دي پهٔ خوشحالو کښې".

نو دا دېګونه وغيره راوړل دا خلق پهٔ ودونو کښې او پهٔ خوشحالو کښې کوي، پهٔ غمونو کښې څوک دا شے نهٔ پخوي.

### صاحب دَ "مراقي الفلاح" ذکر کوي

"وَيُكْرَهُ الضِّيَافَةُ مِنْ أَهْلِ الْمَيِّتِ لِأَنَّهَا شُرِعَتْ فِي السُّرُورِ لَا فِي الشُّرُورِ وَهِيَ بِدْعَةٌ مُسْتَقْبَحَةٌ".[3]

---

(1) أخرجه الترمذي في أبواب الجنائز، باب ما جاء في الطعام لأهل الميت، برقم: (998).
(2) انظر: "فتاوى بزازيه": (379/6).
(3) انظر: "مراقي الفلاح" كتاب الصلاة: (291).

"دَ مړي په کور کښې راجمع کیدل او دا ډوډئ خوړل دا مکروه دي؛ ځکه چې دا میلمستوب مشروع دے په خوشحالو کښې نهٔ که په غمونو کښې او دا ناکاره بدعت دے".

نو دا دَ میلمستوب ډوډئ کانې خلق په خوشحالو کښې ورکوي، په غمونو کښې څوک دا ډوډئ نهٔ ورکوي.

**"فتاوی بزازیه" کښې ذکر کوي**

"أَنَّهٗ يُكْرَهُ اتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالثَّالِثِ وَبَعْدَ الْأُسْبُوْعِ".

"دَ مړي په کور کښې راجمع کیدل دَ خوراک دپاره په رومبئ ورځې (دیګونه ئې چې پخ کړي وي) او په دریمه ورځ او په اوومه ورځ مکروه دي".

نو دا ورځې دَ خیرات دپاره خاص کول مکروه دي، زمونږ دې خلقو کښې دا رواج ذے چې اکثر کهٔ ستاسو خیال وي نو دَ دوي رواج دَ هندوانو رواج وي؛ ځکه په دې ملک کښې پخوا هندوان پاتې شوي دي، دَ هندوانو طریقه څهٔ ده؟ چې هغوي په خاصو خاصو ورځو کښې ډوډئ کانې ورکوي، په څهٔ خاصو ورځو پسې ئې خیراتونه خاص کړي وي، زمونږ خلق په رومبئ ورځ خیرات خاص کوي چې کني په دې کښې ډیر زیات ثواب دے، بیا په دریمه ورځ باندې، بیا دَ هرې جُمعې په شپه باندې، دا نورې شپې نهٔ دي صرف دَ جُمعې دا شپه ده، په نورو کښې ئې هم پوخ کړه کنه، خو دوي دا وائي: چې دَ جُمعې په شپه ئې کهٔ پخوي نو ډیر ثواب ئې دے، نو بیا نور خیراتونه نهٔ کوي، کله چې خلویښتمه ورځ شي نو بیا دے وائي: نن زمونږ دَ هغې بابا خلویښتې ده، بیا چې خلویښتې اوشي نو دَ خیراتونو به چهټي شي خو چې کال کله پوره شي نو بیا به خیرات کوي وائي: به دا ئې کلیزه ده، دا خو دَ هندوانو طریقه ده، خلویښتې، کلیزه، دَ جُمعې شپه خاص کول او رومبئ ورځ، دریمه ورځ خاص کول دا تخصیص بالکل په دین کښې نشته، کهٔ دَ درې ورځو نه پس خیرات کوي نو چې څنګه خیرات دې خوښ وي نو هغه شان خیرات اوکړه، خو دا مهٔ وایه: "چې دَ جُمعې په شپه ئې ثواب زیات دے، او په بله شپه ئې ثواب نشته دے، په خلویښتمه شپه ئې ثواب دے او په بله شپه ئې ثواب نشته دے، دارنګې په کلیزه ئې ثواب دے او په بله ورځ ئې ثواب نشته.

**امام نووي رحمه الله لیکلي دي**

"وَاتِّخَاذُ الطَّعَامِ فِي أَيَّامِ الْمُصِيبَةِ كَالثَّالِثِ وَالْخَامِسِ وَالتَّاسِعِ وَالْعِشْرِيْنَ وَالْأَرْبَعِيْنَ وَشَهْرِ

السَّادِسِ وَالسَّنَةِ بِدْعَةٌ".

"دا دوديځ ورکول دَ غم پهٔ دريمه ورځ، پهٔ پنځمه ورځ، پهٔ نهمه ورځ، پهٔ شلمه ورځ، پهٔ څلويښتمه ورځ، پهٔ شپږمه مياشت او کال پس دا بدعت دے".

**دَ قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله قول**

دارنګې قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله ذکر کوي، هغه خپله يَو وصيت نامه ليکلي ده: "وبعد مردن من رسوم دنياوی...".

"زما دَ مرګ نه بعد کوم چې زمونږ پهٔ دې ملک کښې رواج دے لکه خلق دا کوي: لسمه ورځ، شلمه ورځ، څلويښتمه ورځ، شپږمه مياشت، کال بعد وريسې پهٔ دې خاصو خاصو ورځو کښې خيراتونه کوي، نو دے وائي: دا به ما پسې بالکل نهٔ کوئ؛ ځکه دا څيز ناروا دے؛ او دا ځکه ناروا دے چې دا خاص دَ الله دَ رضاء دپاره نهٔ وي".

دَ دوي مقصد خو دا وي چې خلق دا اونهٔ وائي: "چې پلار ئې وفات شو او رور ئې وفات شو او دوي وريسې هډو څهٔ اونهٔ کړل"، چې دَ دې دپاره ئې کوې نو ستا دَ يَو روپۍ ثواب هم اونشو، کهٔ ډېر پهٔ ښې طريقې سره ئې اوکړې، دا ورځې هم پکښې خاص نهٔ کړې خو چې دَ رياء دپاره وي نو ستا هډو ثواب اونشو، هله به دې ثواب کيږي چې خالص دَ الله دَ رضاء دپاره وي، او چې ستا پهٔ نيت کښې دَ الله رضاء نشته، بلکه ستا پهٔ نيت کښې صرف دا خبرې وي او ښځه هم ورته وائي: پوزه به مې پرې کړے شي او خلق به راپسې خبرې کوي کهٔ خيرات مو اونهٔ کړو، نو بيا دې ثواب دَ کوم ځائے نه کيږي؟

**خيرات دَ مرګ نه مخکښې مخکښې کول پکار دي**

دا مسئله هم واورئ! چې پهٔ ژوند باندې خيرات کښې ډېر ثواب دے او کهٔ مرګ نه روستو ډېر ثواب دے؟ ډېر ناپوهه خلق داسې دي چې پهٔ ژوند ورسره پيسې پرتې دي هغه نهٔ لګوي وائي: "چې زهٔ مړ شم نو دا به ما پسې لګوئ"، نو دا هغه خلق دي چې هغوي نهٔ پوهيږي، پهٔ ژوند باندې پخپل لاس يَوه روپۍ لګول او دَ مرګ نه بعد سل روپۍ لګول دا دواړه برابر دي.

**نبي ﷺ ته دَ يَو صحابي راتلل**

نبي ﷺ ته يَو صحابي راغلے او ورته وائي: "يَا رَسُولَ اللهِ! أَيُّ الصَّدَقَةِ أَعْظَمُ أَجْرًا؟".

"اے دَ الله رسول ﷺ! کومه صدقه بهتره ده؟".

نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: «أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ تَخْشَى الفَقْرَ، وَتَأْمُلُ الغِنَى، وَلاَ تُمْهِلُ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الحُلْقُومَ، قُلْتَ لِفُلاَنٍ كَذَا، وَلِفُلاَنٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلاَنٍ».[1].

"هغه خيرات بهتر دے چې ته پخپل لاس باندې اولکوې داسې حال کښې مال اولکوې چې ته روغ رمټ ئې، بخل درکښې موجود دے او دَ غريبئ نه يريږې او دَ مالدارئ طمع کوې او دا صدقه او خيرات تهٔ داسې حال ته مهٔ روستو کوه چې کله ستا ساه ستا مرئ ته اورسيږي او دغه وخت کښې بيا وائې: چې دَ فلانکي دپاره دومره او دَ فلانکي دپاره دومره او حال دا دے چې دغه وخت خو بيا دغه مال پخپله دَ فلانکي کرځيدلے وي (دغه وخت کښې پکښې بيا ستا اختيار نهٔ چليږي نو ولې دغه حالت ته صدقه روستو کوې؟)".

نو پهٔ ژوند به ئې پرې زړهٔ نهٔ کيږي وائې: بيا به څهٔ خورم؟ او دَ ژوند نه بعد خو پوهيږي چې دا وارثانو ته پاتې کيږي، نو بيا وائې: ما پسې دومره مال اولکوئ، نو تا پهٔ دې خپل ژوند ولې ځان پسې خيرات نهٔ کولو؟ نو يَو خو دا خيرات څکه نهٔ دے صحيح چې دا دَ الله دَ رضاء دپاره نهٔ وي.

دويم زمونږ پهٔ دې ملک کښې چې کوم رواجي خيراتونه دي نو دې ته سوچ کوئ: چې کله سړے وفات شي نو چې کوم مال پاتې شو دَ هغې پسې څو حقوق متصل او يَو ځائے دي:

(۱) **اول:** دَ مړي دَ کفن دفن حق دے، چې دَ مړي کفن وغيره به دَ دهٔ دَ مال نه پوره کولے شي.

(۲) **دويم:** پهٔ مړي باندې چې کوم قرضونه دي هغه به دَ مړي دَ مال نه ورکولے شي، چې کله دَ دې دوارو حقونو دَ اداء کولو نه پس څهٔ مال پاتې شو، نو:

(۳) **دريم:** مړي چې کوم وصيت کړے دے هغه به دَ دې مال نه پوره کولے شي، او کهٔ بيا دَ دې نه روستو مال وو نو هغه دَ وارثانو حق دے، دغه مال به بيا پهٔ وارثانو تقسيميږي، نو اوس مړي ته خو تيک ده کفن راوړے شوے دے او مړے خخ شوے دے، خو دويم حق چې پهٔ مړي دَ چا قرضې دي هغه خو لا نهٔ دي ورکړے شوي، دارنګې دَ مړي وصيت پکښې لا نهٔ دے پوره شوے او دغسې دا مال لا دَ وارثانو پهٔ مينځ کښې نهٔ دے تقسيم شوے نو دَ مخکښې نه تهٔ څنګه شريک مال کښې خيراتونه کوې؟ شريک مال نه خيرات کول جائز دي او کهٔ نا جائز؟

(۱) أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، باب فضل صدقة الصحيح الشحيح، برقم: (1419).

**مسئله**

نو مسئله واورئ: "دَ شریک مال نه خیرات کول چې هغې کښې نابالغه وارث دے او دَ هغه مال دې پۀ خیرات کښې اولګولو نو دا خیرات بالکل نۀ کیږي"، پلار چې وفات شي نو پۀ ځامنو کښې کله کله نابالغه ماشومان بچي هم وي نو دَ نابالغه ماشوم نه څوک تپوس نۀ کوي، خو بس وائي: راځئ! چې میښه وریسې حلالوو، دیګونه وریسې پخوو، دَ دغه نابالغه بچي پۀ دې مال کښې پوره برخه ده، دَ هغه نه تپوس نۀ دے شوے بلکه علماء کرام ذکر کوي: چې کۀ هغه ماشوم اجازت درکړي نو هم به پکښې خیرات نۀ کوې؛ ځکه دَ هغه اجازت پۀ شریعت کښې معتبر نۀ دے، دَ هغه حق به جدا کوې نو هله به خیرات کوې.

بله مسئله: کله کله داسې هم وي چې ځوي ئې نشته، سعودي کښې دے، یا بل ځائے کښې دے، هغه اجازت نۀ دے ورکړے او دوي دَ هغه دَ مال نه خیرات کوي نو دا پردے مال خیرات کول دي چې، جائز نۀ دي، دَ شریک مال نه خیرات کول جائز نۀ دے.

**بله مسئله**

چې کله مړے اوشي نو خلق دَ ختم دپاره قاریان راجمع کړي، دا دَ پیغمبر ﷺ او دَ صحابه کرامو ﷺ نه ثابت نۀ دي، چې ستا پلار وفات شو نو کوم چې ستا ملګري دي هغوي ته اووایه: "زما پلار وفات شوے دے یَو سیپاره سبق وریسې اووایه او ثواب ورته اوبخښه"، دا صحیح طریقه ده، خو دا دَ ټولو راجمع کول او مړي کور والا هغوي ته ورتۀ پخوي یا ورته پیسې ورکوي دا ناروا دي، علامه شامي ؒ پۀ دې اوږد بحث کړے دے چې دا ناروا دي، قاري صاحب چې راغلے، هغه ډوډۍ اوخوړه او چائے ئې اوڅښکله، پیسې ئې واغستې نو دَ هغه ثواب پخپله اونشو نو مړي ته به ئې څۀ اوبخښي؟ زنانه دي وریسې ختم اوکړي، یاران دوستان دې وریسې سبق اووائي، دَ مړي کور ته قاریان راغوندول دا صحیح طریقه نۀ ده.

نو خپل غمونه او ښادۍ پۀ هغه طریقه کول پکار دي چې پۀ کومه طریقه نبي ﷺ او صحابه کرامو ﷺ کړي دي، الله تعالی دې مونږ او تاسو له دَ عمل کولو توفیق رانصیب کړي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

بسم الله الرحمن الرحيم

وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ

(سورة العنكبوت: 69)

# موضوع

# دَشيطان وسوسي

بتاريخ: 03-09-2008

مقام: جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ شیطان وسوسې

اَلْحَمْدُ لله نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِالله مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِالله مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾.(1)

وقال اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي مَقَامٍ آخَرَ: ﴿وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾.(2)

وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «نِعْمَتَانِ مَغْبُوْنٌ فِيْهِمَا كَثِيْرٌ مِنَ النَّاسِ: الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ».(3)

عزتمندو حاضرينو مسلمانانو رونړو! دَ رمضان المبارک نه مخکښې جُمعو کښې تاسو ته ما عداوت دَ شيطان او دَ هغوي دَ بُغض او حسد دَ انسان سره دَ هغې څهٔ بعضې عداوتونه بيان کړي وو، بيا دَ رمضان المبارک دَ درسِ قرآنِ کريم پهٔ وجه هغه مسئله پوره نشوه، نيمګړې پاتې شوې وه، کوشش کوو: چې دَ شيطان بعضې عداوتونه چې دَ انسان سره دي، چې دَ هغې وضاحت اوشي، دا دَ شوال مياشت ده، دَ دې نه مخکښې دَ رمضان مياشت تيره شوه، چې هغه ډيره عظيمه مياشت وه.

### دَ نبي ﷺ صحابه کرامو ؓ ته تقرير

نبي کريم ﷺ يو ځل صحابه کرامو ؓ ته تقرير کولو، اوږد حديث دے، او دا تقرير ئې

(1) [سورة العنكبوت: 69].

(2) [سورة المزمل: 20].

(3) أخرجه البخاري في كتاب الرقاق، باب لا عيش إلاّ عيش الآخرة، برقم: (6412).

هغه دور کښې کولو چې دَ رمضان المبارک میاشت راروانه وه، دَ شعبان میاشت په ختمیدو وه، نو نبي ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته وائي: «قَدْ أَظَلَّكُمْ شَهْرٌ عَظِيمٌ شَهْرٌ مُبَارَكٌ».(1)

"اے خلقو تاسو ته یو میاشت راروانه ده، رانزدې شوې ده، هغه ډیره عظیمه میاشت ده، ډیره زیاته مبارکه میاشت ده".

نو دَ خیر او برکت په لحاظ سره ډیره زیاته مبارکه ده، دغه میاشت کښې الله رب العزة دَ مسلمانانو گناهونه معاف کوي، اولنۍ لس (۱۰) ورځې دَ هغې رحمت دے دَ الله تعالی دَ طرف نه، وریښې لس ورځې مغفرت دے، الله پکښې خلق معاف کوي، آخرۍ عشره کښې الله تعالی خلق دَ أور نه خلاصوي".

نو ډیره زیاته مبارکه میاشت وه، هر کله چې دا میاشت مبارکه وه او په دې کښې اعمال ډیر قیمتي وو، او هغه دا چې دَ رمضان په میاشت کښې یو فرض عبادت دومره ثواب لرلو لکه په نورو میاشتو کښې چې سړے اویا فرض عبادتونه اوکړي، دَ رمضان دَ میاشتې دَ یو نفل عبادت دومره فضیلت لرلو، او دومره مقام ئې لرلو لکه بغیر دَ رمضان نه چې یو سړے فرض عبادت اوکړي، هغه نفل ئې دومره قیمتي وو.

### دَ شیطان کوشش او محنت

نو شیطان سره خو ډیر غم وو، دَ شیطان محنت خو دا دے: چې دا انسانان دَ صحیح لارې نه واړوي، چونکه شیطان به انسانان دَ الله دَ عبادت نه منع کوي؛ ځکه دا خو دَ لوټ میاشت ده په اعتبار دَ اعمالو سره، نو دا خو دَ مسلمان دپاره ډیره لویه دَ غنیمت خبره ده، نو شیطان خپل کوشش کولو چې دا خلق دَ عبادت نه منع کړي، نو حدیث کښې راځي: «إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ صُفِّدَتِ الشَّيَاطِينُ، وَمَرَدَةُ الجِنِّ، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ النَّارِ، فَلَمْ يُفْتَحْ مِنْهَا بَابٌ، وَفُتِّحَتْ أَبْوَابُ الجَنَّةِ، فَلَمْ يُغْلَقْ مِنْهَا بَابٌ».(2)

"چې دَ رمضان المبارک میاشت داخله شي شیطانان او هغه پیریان چې سرکش دي هغه اوتړلے شي، او دَ أور دروازې بندې کړے شي، نو یو دروازه هم دَ دې نه نۀ کولاؤ ویږي، او دَ جنت

(1) أخرجه البيهقي في "فضائل الأوقات" برقم: (37).
(2) أخرجه الترمذي في أبواب الصوم، باب ما جاء في فضل شهر رمضان، برقم: (682).

دروازې کولاؤ کړے شي نو بیا ترې هم نۀ بندیږي".

نو دَ جنت اتهٔ واړه دروازې کولاوې شي وا دَ جهنم دروازې بندې شي، او هغه سرکش شیطانان اوتړلے شي، چې دوي انسانانو ته وسوسې نۀ غورځوي، دَ الله نیکان بنګان دَ عبادت نه منع نۀ کړي، نو هغه شیطانان اوتړلے شي، او پۀ رمضان المبارک کښې ئې ځکه اوتړي چې دَ انسان عبادت ته پوره توجّو پیدا شي، او دَ دۀ توجّو بل طرف ته واونړي، نو چې کلۀ تۀ پۀ رمضان کښې دَ عبادت سره عادت شوې، دَ عبادت پۀ خوند او لذّت باندې پوهه شوې نو رمضان ختم شو خو تۀ به خپل عبادت نۀ ختموې، تۀ به خپل دَ عبادت هغه عادت جاري ساتې.

**دَ شوّال شپږ (٦) روژې**

دَ دې وجې نه نبي ﷺ فرمائي: چې رمضان ختم شو: «مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ، كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ».[1]

"چا چې دَ رمضان المبارک ټوله میاشت روژې اونیولې او بیا ئې دَ رمضان نه بعد شوّال شپږ روژې اونیولې دومره ثواب ئې اوشو لکه چې دا سړے ټول عمر روژې اونیسي".

دَ شوال دَ دې میاشت دَ روژو دومره فضیلت دے، او دا لازمه هم نۀ ده چې کَنې دَ اختر پۀ دویمه ورځ ئې خامخه شروع کړه، علماء وائي: کۀ یَو سړے اختر پسې دارک شروع کوي نو هم صحیح ده، کۀ مینځ کښې پکښې تفرقه (جداوالے) راغله نو هم صحیح ده، خو شپږ (٦) روژې دې دَ شوال اونیسي؛ دا دَ دې دپاره چې هسې نه چې خلق وائي: رمضان کښې روژه وه بغیر دَ رمضان نه روژه نشته، رمضان کښې درباندې فرض وه نو کۀ بغیر دَ رمضان نه روژه نیسې بیا هم ستا دپاره لوئې اجر او ثواب دے.

**دَ ایام البیض روژې**

دارنګې ایّام البیض هره میاشت کښې درې روژې نیول دا دَ نبي ﷺ طریقه وه، نبي ﷺ به هم دا روژې نیولې، او صحابه کرامو ﷺ ته به ئې هم ترغیب ورکولو، هغې کښې هم دَ ټول کال ثواب میلاویږي.

"أيّام البیض" دېته وائي: چې کلۀ دا سپوږمۍ دَ دیارلسمې او څوارلسمې، پنځلسمې ورځې ته اورسیږي.

او دې درېو (۳) ورځو ته "أيّام البیض" ځکه وائي: چې "أَيَّامُ الْبِيْضِ" کښې دا "أيّام" جمع دَ

---

(1) أخرجه مسلم في كتاب الصيام، باب استحباب صوم ستة أيام من شوال إتباعا لرمضان، برقم: (1164).

"يَوم" ده، "يَوم" ورځ ته وائي، او "البِيْض" سپين والي ته وائي، نو معنی: هغهٔ ورځې چې هغې کښې دَ شپورمئ سپين والے ښهٔ ښکاره وي، نو دَ هرې اسلامي مياشت ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاريخ کښې، دې دريو ورځو کښې دا سپوږمئ ډيره سپينه، مزيداره او ډيره ځمکداره ښکاري څکه ورته "أَيَّام البِيْض" وائي.

دَ دې دريو (۳) روژو ډير فضيلت دے، نو چې يَو سړے دَ رمضان روژې اونيسي، بيا وريسې شپږ روژې دَ شوال اونيسي، او هره مياشت کښې دغه درې روژې نيسي نو دَ دهٔ گناهونه به الله معاف کړي، او دَ ټول عمر دَ روژو ثواب به ورته ميلاؤ شي.

نو پهٔ رمضان المبارک کښې روژې متواترې وې، شيطان وسوسه غورځوله نو الله تعالی سرکشه شيطانان اوتړل.

**دَانسان دُشمنان**

عزتمندوا دا ياد اوساتئ! دَ انسان دپاره صرف دغه يَو جنّي شيطان دشمن نهٔ دے، نور شيطانان هم شته چې هغه هم پيژندل غواړي، او هغې دشمنانو سره داسې عداوت او دشمني کول غواړي لکه څنگه چې دَ شيطان سره سړے عداوت او دشمني کوي، اګر چې مونږ پهٔ خُلې باندې وايُو: چې شيطان زمونږ دشمن دے، او زړهٔ کښې مونږ دَ شيطان رونړه او ملګرې يُو، پهٔ اعمالو کښې مونږ دَ هغهٔ ملګرې يُو، دا خو زمونږ دَ خُلې هغه وينا ده، خو پکار دا ده: چې سړے چا ته دشمن اووائي چې دَ دشمن پهٔ لار لاړ نهٔ شي، دَ دشمن پهٔ کردار خوشحاله نشي.

**(۱) يَودشمن دَانسان دنيا ده**

دَ انسان يَو دشمن دنيا ده او دا دَ انسان دپاره لوئې دشمن دے.

**دَفقيه ابوالليث السمرقندي ﷫ قول**

فقيه ابو الليث ﷫ ذکر کړي دي: "دَ انسان پهٔ دشمنانو کښې لوئې دشمن هغه دنيا ده، دا دنيا دَ انسان دپاره ډير لوئې دشمن دے"، خو داسې دشمن هم نهٔ دے چې کني ستا دَ هر څهٔ دپاره دشمن دے، نا! يَو ځل يَو سړے لګيا شو دَ سيدنا علي ﷜ مخکښې دنيا پسې ردې بدې او کنځلې کولې، سيدنا علي ﷜ ورته فرمائي: "دنيا پسې کنځلې مهٔ کوه، پهٔ دې دنيا باندې مونږ آخرت ګټو،

پهٔ دې دنیا باندې مونږ نیک اعمال اوکړو نو پهٔ دې ځان له آخرت گټو".

نو دا نهٔ ده گڼي چې تهٔ ئې پهٔ نیک ځائے باندې هم مهٔ استعمالوه، خو دَ دنیا ناجائز استعمال، دَ دنیا سره ناجائز محبت دا دَ انسان دپاره لویه دشمني ده.

**دَ دنیا خساست او سپکوالے**

قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾.(1)

"نهٔ دے ژوند دَ دنیا مگر څکه دَ دهوکې ده".

دَ دنیا دا ژوند دا يَو دهوکه ده، دا دَ دهوکې يَو خوند او لذّت او يَو مزه ده، هيڅ لذّت پکښې نشته، کلهٔ چې تهٔ دنیا صرف دَ دنیا دپاره استعمالوې او آخرت دې هیر کړے دے، تهٔ ئې دهوکه کړے ئې، خو یاد ساته! چې پهٔ دې دهوکه کیږه مهٔ گورے!، يَو شاعر وائي:

وَمَا دُنْيَاكَ إِلَّا فَيْءُ ظِلٍّ أَظَلَّكَ ثُمَّ آذَنَكَ بِالرَّحِيْلِ

"نهٔ ده ستا دنیا مگر دَ دې خو داسې مثال دے لکه يَو سورے چې پهٔ تا باندې ئې سور کړے وي او بیا تا ته دَ تلو خبر درکړو".

ستا دَ دنیا خو داسې مثال دے: اوس پهٔ تا باندې سورے دے او بیا دا سورے ستا نه روان شي، تهٔ پهٔ غرمو پاتې شوې، او سورے بل ځائے ته روان شو، دا دنیا تاویږي راتاویږي، پهٔ دې مهٔ دهوکه کیږئ، قرآنِ کریم کښې الله رب العزة فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾.(2)

"اے خلقو دَ الله وعده حقه ده (الله چې څهٔ وئیلي دي هغه بالکل ریشتیا دي)، گورے خبردار! دَ دنیا ژوند دې تاسو پهٔ دهوکه کښې وانهٔ چوي (دَ دنیا ژوند دې تاسو دهوکه نهٔ کړي دَ الله دَ دین نه او دَ آخرت نه)، او دهوکه دې نهٔ کړي تاسو لره دهوکه باز شیطان دَ الله دَ دین نه".

نو لوئي دشمن دَ انسان دپاره يَو دَ دنیا غلط استعمال دے، چې صرف دنیا پسې ئې، او دَ حلالو او حرامو تمیز نهٔ کوې، دَ جائز او ناجائز تمیز نهٔ کوې، بس صرف دنیا ده او تهٔ وریسې ئې، دین درنه پاتې دے، مونځ درنه پاتې دے، روژه درنه پاتې ده، زکوٰة نهٔ ورکوې، حج ورباندې نهٔ کوې، خیرات

(1) [سورة آل عمران: 185].

(2) [سورة الفاطر: 5].

ترې نهٔ کوې، صدقې ترې نهٔ ورکوې، دَ دین یَو کار ته ځان نهٔ اوزګارے، او صرف دنیا پسې منډې وهې، نو دا دنیا بیا زمونږ دپاره لوئي دشمن دے، دَ دې ذرّې ذرّې حساب کتاب به زمونږ سره کیږي.

**(۲) دویم دشمن دَ انسان: "نفس وخواهشات" دي**

دَ انسان دویم دشمن هغه دَ انسان نفس دے، دَ انسان خواهشات دي، چې بس خپل خواهش پسې روان وي، خپل نفس رضاء کولو پسې روان وي، دے دَ دې دپاره منډې وهي چې خپل نفس خوشحاله کړي، خپل خواهش خوشحاله کړي، دَ الله حکم ماتیږي پروا نشته، دَ محمد عربي ﷺ حکم ماتیږي پروا نشته خو چې دې نفس له نقصان اونهٔ رسیږي، دَ دهٔ نفس له تکلیف اونهٔ رسیږي، نا! نا! ستا نفس دې پهٔ تکلیف باندې شي، مال دې اولګي، ستا عزت دې ختم شي خو چې دین او شریعت دَ محمد رسول الله ﷺ ته بچاؤ میلاؤ شي، او پهٔ هغې لار باندې روان شې.

نو دویم دشمن دَ انسان دپاره هغهٔ نفس دے، نفس به درنه آرام غواړي، درته به وائي: تهٔ اوس دِ کار نه ستړے راغلے ئې، تهٔ به اوس مونځ کوې، تهٔ به روژه نیسې، تهٔ به درس له ځې، تهٔ به فلانکے دَ نیکئ کار کوې، لږ دمه ولې نهٔ کوې؟ نفس به تا دَ الله دَ دین نه پاتې کوي، دا نفس دشمن دَ الله دَ دین دپاره دے، دا نفس به تا ته ګناهونه خائسته کوي، تهٔ به دَ هغې نه ځان بچ کوې، تهٔ به دا خپل نفس پهٔ هغې طرف بوځې چې الله پرې خوشحالیږي.

**(۳) دریم دشمن دَ انسان: "شیطان" دے**

دَ انسان دریم دشمن هغهٔ شیطان دے، چې هغه انسان دَ الله دین نه منع کوي، وسوسې به درته زړهٔ کښې غورځوي، دَ نیکئ دَ کار نه به دې پاتې کوي.

**(٤) څلورم دشمن دَ انسان: "انسي شیطان" دے**

څلورم دشمن دَ انسان هغهٔ "انسي شیطان" دے، تاسو دَ قرآنِ کریم پهٔ درس کښې بار بار واوریدل چې شیطانان پهٔ دوه (۲) قسمه دي: کلهٔ چې دَ قرآنِ کریم آخري سورت ختمیږي هغې کښې الله تعالی فرمائي: ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ * مَلِكِ النَّاسِ * إِلَٰهِ النَّاسِ * مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ * الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ * مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ﴾.[1]

"اووایه! فناه غواړم پهٔ پالونکي دَ خلقو، بادشاه دَ خلقو، حاجت پوره کونکے دَ خلقو، (دَ

(1) [سورة الناس: 1-6].

څۀ نه فناه غواړم؟) دَ شر دَ هغه وسوسې اچونکي پټ نه، دَ هغې نه چې وسوسې غورځوي پۀ سينو دَ خلقو کښې، (هغه څوک دے؟) چې هغۀ شيطان دے دَ انسانانو نه او دَ پيريانو نه".

﴿مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ﴾ بعضې جنّي (دَ پيريانو نه) شيطانان وي او بعضې دَ انسانانو نه هم شيطانان وي، چې هغه به تا دَ ګناه پۀ کار مجبوره کوي، دَ دنيا کار به درته خائسته ښکاره کوي، او تا به دَ دين دَ کار نه پاتې کوي، دا انسي شيطان وي.

**دَ وهب بن منبّه ﷫ قول**

وهب بن منبّه ﷫ فرمائي: "زۀ دَ پيريانو دَ شيطان نه دومره نۀ يريږم لکه څومره چې دَ انسانانو دَ شيطان نه يريږم؛ ځکه چې کلۀ ماته جنّي شيطان راشي او ما ته زړۀ کښې وسوسه غورځوي نو چې زۀ "أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ" اووايم نو هغۀ زما نه لاړ شي، اوتخښتي، او انسي شيطان چې دے "أَعُوْذُ بِاللهِ..." نه، کۀ دا ټول قرآن ورته ختم کړم هم هغه زما نه نۀ ځي".

نو دا انسي شيطان پۀ "أَعُوْذُ بِاللهِ..." باندې هم نۀ ځي، دے پۀ هيڅ طريقه باندې ستا نه نۀ ځي، هله به ځي چې تۀ دَ هغۀ مخالفت شروع کړې، نو څلورم دشمن دَ انسان دپاره انسي شيطان دے، چې انسان دَ الله دَ دين نه منع کوي، عزتمندوا دا خپل دشمنان پيژندل پکار دي او دَ هغوي سره عداوت پکار دے، دَ هغوي سره دشمني هم پکار ده.

**دَ فقيه ابو الليث سمرقندي ﷫ دويم قول**

دَ دې وجې نه فقيه ابو الليث سمرقندي ﷫ ذکر کړي دي، وائي: دَ عقل مند انسان دپاره دا لازمي ده: "أَنْ يَعْرِفَ صَدِيْقَهٗ مِنْ عَدُوِّهٖ".

"چې دے خپل دوست او دشمن معلوم کړي".

◦ دوست ته دوست اووائي او دشمن ته دشمن اووائي، بيا وائي: "فَيُطِيْعُ صَدِيْقَهٗ، وَلَا يُطِيْعُ عَدُوَّهٗ".

"دے به دَ خپل دوست خبره مني، او دَ دشمن خبره به نۀ مني، دَ دشمن مخالفت به کوي".

**دَ جاهل سړي څلور نخښې**

**(١) يو نخښه**

"اَلْغَضَبُ مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ".

"څۀ مسئله نشته او دے غصه دے".

نو دا دَ هغهٔ دَ جهالت نخښه ده، بغیر دَ څهٔ عارِض نه، بغیر دَ څهٔ مسئلې نه غصه دے دا دَ هغهٔ دَ جهالت علامه ده.

**(۲) دویمه نخښه**

"اِتِّبَاعُ النَّفْسِ فِي اتِّبَاعِ الْبَاطِلِ".

دَ جاهل سړي نخښه دا ده: چې "دے به پهٔ باطلو کښې خپل نفس خوشحالئ، خپل نفس پسې روان دے".

یَو شے نهٔ پهٔ قرآن کښې شته، نهٔ پهٔ احادیثو کښې شته، نهٔ شریعت کښې شته، او دے ئې کوي صرف خپل زړهٔ پرې خوشحالوي، دا دَ هغهٔ دَ جهالت نخښه ده، چې یَو کار کوي نو دا سوچ اوکړه: چې دا کار دَ ینې دے او کهٔ دنیاوي دے، نو کهٔ دیني کار وي نو اوګوره! چې آیا زهٔ ورته دین وایم او کهٔ نا دا دین دے هم؟ نو کهٔ تهٔ ورته دین وائې او هغهٔ دین نهٔ وي نو هسې ځان مهٔ ستړے کوه، ثواب پرې نهٔ میلاویږي، او کهٔ چرې دین کښې وي نو بیا هغه کوه، پهٔ هغې به تا ته ثواب میلاویږي؛ دَ دې وجې نه زمونږ دغه چغه ده: دې خلقو ته وایُو: اے زمونږ رونړوا لږ غوندې سوچ اوکړئ! لږ دَ سوچ نه کار واخلئ، دَ هر څهٔ دپاره دَ هغې موافِق اشیاء وي، مثلل پهٔ طور تهٔ لا ړ شې او دین زده کوې، او دَ دوکاندار دوکان ته اودریږې، او هغهٔ تهٔ وائې: چې ماته یَو تکے اوښایه، نو تهٔ دَ هغهٔ نه یَو تکے نشې زده کولے، او کهٔ تهٔ لا ړشې او څهٔ شے اخلې او عالم ته وائې: چې دا څیز مې پکار دے، نو هغه تا ته نشي درکولے، دَ دین تپوس دَ علماؤ نه کوئ، او دَ دنیا تپوس دَ دنیاوي خلقو نه کوئ، او څنګه چې دَ دنیا کار پخپله باندې نشئ کولے کادے خراب شي، نو هغه مستري له بوځئ، بیمار شي نو ډاکټر له ځې، هډوکے دې مات شي دَ هډوکو ډاکټر له ځې، کهٔ زړے دَرباندې راشي نو دَ زړې ډاکټر له ځې، کهٔ رګونه دې کار نهٔ کوي نو دَ رګونو ډاکټر له ځې، کهٔ غوږونه دې درد کوي دَ غوږونو ډاکټر له ځې، دغسې پهٔ دین کښې اوګوره! پهٔ علماؤ کښې هم مراتب دي، بعضې دَ اوچتې مرتبې والا عالمان دي، بعضې دَ ښکته مرتبې والا عالمان دي، بعضې پوهه دي، بعضې ناپوهه دي، کهٔ تپوس کوې نو دَ پوهه عالم نه تپوس کوه.

دَ دین کار به پخپل عقل باندې نهٔ کوې، دا به پهٔ نقل باندې کوې، او چې کلهٔ یَو کار کوې

نو دَ هغې دپاره سوچ کوه، دَ هغې دپاره ګوره! چې دا دَ دین کار دے؟ فرض دے، که واجب دے، که سنت دے، که مباح دے او که مستحب دے؟ په هغې خپله مرتبه باندې ئې کوه، فرض دَ وجوب درجې ته مهٔ رسوه، وجوب دَ فرضو درجې ته مهٔ رښوه، مستحب او مباح لازم کوه مهٔ، او واجب او مستحبات مباحو ته مهٔ راکوزه وه، هر شے پخپله طریقه باندې اداء کړه، او که یَو کار په دین کښې نهٔ وي، نهٔ فرض دے، نهٔ واجب دے، نهٔ سنت دے، نهٔ مباح دے نو هغه کار مهٔ کوه، هغې ته دین مهٔ وایه، او که هغې ته دین وائې نو هغه نقصان دے، او هغه بے دیني ده، او کله چې یَو کار کوې او هغه دَ دین کار نهٔ دے او هغه دَ دنیا کار دے، نو هغه په هغه طریقه باندې اوکړه چې هغه جائز وي، دا نه کنې چې صرف جیب ډک کړه، که حلال وي او که حرام وي.

نو دَ جاهل سړي نخښه دا ده: چې هغه صرف خواهش پسې روان دے، په دین کښې خواهشات نهٔ چلیږي، په دین باندې هغه سړے نشي چلیدے چې هغهٔ په دین باندې نهٔ پوهیږي، او دین کښې ئې دَ ځان نه مشر جوړ کړے دے، بلکه دے به په دین کښې تابع وي دَ پوهه خلقو، عزتمندوا لږ سوچ اوکړئ: یَو سړے دے او هغه سره ډیر مزیدار ګاډے دے، هغې ته هر څوک نهٔ کښیني، هر څوک ئې نشي چلولے، او بل یَو تن سره ډیر مزیدار ګاډے دے او دَ دهٔ خپل ګاډے دے، او دهٔ له چل نهٔ ورځي، دَ هغې دپاره دے ډرائیور نیسي، او ډرائیور ته وائي: دا ګاډے چلوه او دے پخپله روستو ناست وي، هغه ډرائیور ئې بوځي او دَ خطرناک ځائے نه ئې بچ کوي، دَ نورو ګاډو نه ئې بچ کوي، په لار باندې ئې نیغ بوځي، او که چرې دے وائي: چې څنګه زهٔ انسان یم دغسې تهٔ انسان ئې، تهٔ خو زما نه څهٔ ښهٔ نهٔ پوهیږې، او دے وائي: دا ګاډے زهٔ پخپله چلوم، نو که یَو کلو میټر هغهٔ ګاډے بوځي نو ډیر نقصان به ئې کړے وي، دغه شان دین هم دے دین پخپل عقل مهٔ چلوئ، دَ خپلې مرضۍ مطابق ئې مهٔ چلوئ، په دین کښې دَ هغې خلقو تابع شه چې کوم علماء دي: ﴿فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾.[1]

"تپوس اوکړئ دَ علماؤ نه که تاسو نهٔ پوهیږئ".

دَ دین تپوس چې کوې نو دَ حق پرست علماؤ نه به تپوس کوې.

(1) [سورة النحل: 43].

**دَ مفسر ابن كثير رحمه الله قول**

مفسر ابن كثير رحمه الله دَ ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾[1] آيت لاندې ذكر كړي دي: ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾.

"يقينًا يريږي دَ الله نه پهٔ بندګانو کښې علماء".

نو هغهٔ وائي: چې علماؤ کښې اقسام دي:

**(۱) اول قسم:** " عَالِمٌ بِاللهِ عَالِمٌ بِأَمْرِ اللهِ".

"هغهٔ دَ الله پهٔ توحيد هم پوهيږي، دَ الله پهٔ احکاماتو هم پوهيږي". دا لوئي عالم دے.

**(۲) دويم قسم:** "وَعَالِمٌ بِاللهِ لَيْسَ بِعَالِمٍ بِأَمْرِ اللهِ".

"هغهٔ عالم دے: چې دَ الله پهٔ توحيد خو ښهٔ پوهه دے، دَ الله توحيد ورته معلوم دے خو نور پهٔ ديني مسائلو باندې کم پوهيږي"، دَ الله پهٔ توحيد باندې پوهيږي خو نور مسائل ورته کم معلوم دي، دے هم ښهٔ دے.

**(۳) دريم قسم:** يَو عالم دے: چې هغهٔ: "وَعَالِمٍ بِأَمْرِ اللهِ لَيْسَ بِعَالِمٍ بِاللهِ".[2]

"عالم بامر الله دے، احکاماتو باندې پوهيږي، خو عالم بالله نهٔ دے، پهٔ توحيد باندې نهٔ پوهيږي".

مونځ باندې پرهيږي، روژه باندې پوهيږي، پهٔ زکٰوة باندې پوهيږي، دَ فقهي مسائلو باندې پوهيږي، پهٔ منطق او نورو مسائلو باندې پوهيږي خو دَ توحيد پهٔ عقيده نهٔ پوهيږي، نو دا هيڅ عالم هم نهٔ دے؛ ځکه "اَلتَّوْحِيْدُ رَأْسُ الطَّاعَاتِ" توحيد دَ تمامو طاعاتو سر دے، توحيد دَ تمامو طاعاتو بنياد دے، کوم سړے چې هر څومره لوي عالم دے، خو چې پهٔ توحيد نهٔ پوهيږي نو هغهٔ عالم نهٔ دے، لوئي علم هغه دَ توحيد علم دے، نو دَ دې وجې نه کهٔ لوئي عالم دے خو دے به خپلې مرضئ پسې روان نهٔ وي، علماء هغه دي چې هغوي کښې دَ الله تعالىٰ نه خشيت وي، کهٔ يَو عالم خپلې مرضئ پسې روان وي، دا دَ هغهٔ دَ هلاکت دپاره بس دے.

نو دا دَ جاهل سړي نخښه ده: چې دے صرف خپل خواهش پسې روان دے، او دَ الله دين پسې نهٔ ځي.

**(۳) دريمه نخښه**

دَ جاهل دريمه نخښه دا ده: چې دے مال پهٔ ناجائز ځايونو باندې لګوي، تې وي پرې

(1) [سورة الفاطر: 28].

(2) انظر: "تفسير ابن كثير": (545/6).

اخلي، وي سي آر پرې اخلي جوارئ پرې کوي، سود پرې کوي، دغه شان مسلمان سره پرې دهوکې کوي، دا دَ هغهٔ دَ جهالت نخښه ده، دغه مال به دَ هغهٔ دَ هلاکت سبب جوړ شي.

**(٤) څلورمه نخښه**

دَ جاهل څلورمه نخښه دا ده: چې دے به خپل دوست او دشمن نهٔ پيژني، دے دَ شيطان خبره مني، او دَ الله خبره نهٔ مني، چې الله دَ دهٔ دوست دے، الله ورته دَ خير لار ښائي، دَ الله پيغمبر ﷺ ورته دَ خير لار ښائي، دے دَ الله پهٔ لار باندې نهٔ ځي، دَ الله دَ پيغمبر ﷺ پهٔ لاره باندې نهٔ ځي، او دَ شيطان پهٔ لار باندې روان دے.

الله تعالى وائي: ﴿وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ﴾.[1]

"دَ شيطان پهٔ قدمونو مهٔ ځئ، دَ شيطان پهٔ قدم باندې قدم مهٔ ايږده؛ ځکه دا ستاسو دپاره ښکاره دشمن دے".

نو دا دَ جاهل سړي علامه ده: چې هغهٔ خپل دوست او دشمن نهٔ پيژني، شيطان دَ انسان دپاره لوئې دشمن دے، پکار دا دے: چې تهٔ دَ هغهٔ دَ دشمنۍ نه ځان بچ کړې.

**دَ فقيه ابو الليث سمرقندي رحمه الله قول**

دهٔ دَ يَو عالم قول ذکر کړے دے: وائي: "چې ما سوچ کولو چې دَ کومو لارو نه دا شيطان انسان ګمراه کوي چې هغهٔ لارې زهٔ بند کړم او دَ شيطان دَ وسوسو نه ځان بچ کړم؟ نو چې ما سوچ اوکړو نو لسو (١٠) طريقو باندې شيطان کوشش کوي، چې انسان ګمراه کړي".

نورې هم ډيرې طريقې دي، خو دا دَ هغهٔ دَ سوچ مطابق دي، نو دا لس (١٠) وسوسې دَ شيطان ذکر کوو چې پهٔ کومو سره شيطان انسان ګمراه کوي:

**(١) اوله وسوسه**

اوله وسوسه دَ شيطان دَ ګمراه کولو دا ده: چې دے به پهٔ سړي کښې حرص پيدا کوي، حرص پهٔ انسان کښې دا دَ شيطان وسوسه ده، او دَ الله تعالى پهٔ قدرت باندې انسان بد ګمانه کوي، دے وائي: "کهٔ دا پيسې زهٔ اولګوم نو ما له به دَ کوم ځائے نه پيسې ميلاؤ شي؟"، يره! کهٔ زهٔ دا سود

(1) [سورة البقرة: 168].

نۀ کوم نو ما له به دَ کوم ځائے نه پیسې میلاؤ شي، نبي ﷺ ته یَو کس راغلے، دم وو، ورته وائي: "دَ الله پیغمبره ﷺ! ما له الله تعالی پۀ دې کښې رزق مقرر کړے دے، نو تۀ ئې ولې ما باندې بندَوې؟"، نبي ﷺ ورته اوونئيل: "تا دروغ اوونئیل، تا له به الله تعالی رزق درکوي خو تۀ ئې پۀ دې کښې مۀ کوره، الله به ئې پۀ بل څۀ کښې درکوي، او چې تۀ پۀ دې کښې طلب کوې نو خود به ئې پۀ دې کښې درکوي، الله ستا دَ رزق ذمّه وار دے، الله تعالی به رزق درکوي نو تۀ ئې ولې پۀ حرامو کښې طلب کوې؟ تۀ ئې پۀ حلالو کښې طلب کړه"، نو هغۀ عالِم وائي: "ما دَ شیطان دَ دې وسوسې مقابله شروع کوله چې زۀ به دَ دۀ سره پۀ څۀ باندې مقابله کوم، نو ما چې سوچ اوکړو نو دَ الله دَ کتاب پۀ یَو آیت ما دَ شیطان مقابله اوکړه، او دَ دې وسوسې نه مې ځان بچ کړو، هغۀ کوم آیت وو؟ هغۀ دَ سورة هود آیت وو، الله رب العزة فرمائي: ﴿وَمَامِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾.[1]

"نشته یَو زندہ سر پۀ زمکه کښې مګر پۀ الله تعالی باندې دَ هغې رزق دے".

پۀ دې آیت کښې مې سوچ اوکړو، پوهه شوم چې دا دَ شیطان وسوسه ده، کوره! هغه الله چې ماشي له رزق ورکوي، هغه الله چې ځناورو له رزق ورکوي، هغه الله چې سپي له رزق کوي، هغه الله چې زمرو له پۀ ځنګل کښې رزق ورکوي، هغه الله چې هغې ځناورو له رزق ورکوي چې انسان هغې ته کتل هم نشي برداشت کولے، بلکه انسان ئې دَ مرګ کوشش کوي، هغه ځناور چې انسان پخپل ګمان کښې هغې له یَو شے هم نۀ پریږدي، بلکه هر څۀ کور ته راوړي هغې ځناورو له الله رزق ورکوي نو الله تعالی ما او تا له هم رزق راکوي، نو ولې بیا مونږ پۀ الله باندې بدګمانه کیږو، او حرامو پسې ګرځو؟".

**پۀ الله تعالی باندې ځان سپارل**

دَ دې وجې نه یَو حدیث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «لَوْ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَوَكَّلُونَ عَلَى اللهِ حَقَّ تَوَكُّلِهِ لَرُزِقْتُمْ كَمَا يُرْزَقُ الطَّيْرُ تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا».[2]

"کۀ چرې تاسو الله باندې صحیح طریقې سره ځان سپارلے وے، صحیح توکل مو کړے وے تاسو له به داسې رزق میلاویدو لکه څنګه چې مارغانو له رزق میلاویږي، سحر دَ خېټو

(1) [سورة هود: 6].
(2) أخرجه الترمذي في أبواب الزهد، باب في التوكل على الله، برقم: (2344).

جالو نه بهر لا ړشي، او مابنام چې راځي نو مارۀ راروان وي خپلو جالو ته راځي".

آيا تۀ نۀ ګورې! کوم يَو مارغۀ جواري اوکړه، کوم يَو مارغۀ دهوکه اوکړه، کوم يَو مارغۀ چا ته نقصان اورَسولو، کوم يَو پکښې غلا اوکړه، کوم يَو پکښې حرام طلب کړل، الله ورله رزق پيدا کوي، رزق خو الله ورکوي، تۀ ګورې نه؟ تۀ ځان له غنم کرې، اوربشې کرې، ځان له نور فصل کرې، ډير کم خلق به وي چې هغوي ځان له ګياګانې کري، چې دَ چا ارت کښې زمکه وي اوکري او دَ چا چې ميره کښې زمکه وي نو نۀ کري، تۀ لګيا ئې دَ خپل پټي نه ګيا اوباسې، الله ئې بيا بيا زرغونَوي، دَ دې ځناورو دپاره الله تعالى رزق پيدا کوي، هر سړے وائي: چې زما پوله دې صفا وي، ليکن پوله باندې هم ګيا زرغونيږي، پټي کښې هم زرغونيږي، دَ دې دپاره چې دې ځناورو له الله رزق پيدا کوي، تۀ دَ الله پۀ ذات توکل اوکړه، الله به ئې درکوي، هغې بے زبانه ځاروو ته اوګوره! کۀ هغوي اوږي شي نو وئيلے نشي چې زۀ اوږے يم، کۀ تګے شي نو وئيلے نشي چې زۀ تګے يم، تا له ئې درکړي دي، او تۀ ئې دَ هغې تابع کړے ئې، او وخت پۀ وخت ورته اوبۀ او ګيا ورکوې، نو تۀ حلالو پسې شي الله به حلال درکوي، حرامونه ځان بچ کړه، الله به دې دَ حرامونه بچ کوي.

**(۲) دويمه وسوسه**

دويم جال دَ شيطان دا دے: چې شيطان انسان له دهوکه ورکوي، دَ اعمالو نه ئې پاتې کوي، پۀ دې باندې چې انسان ته وائي: دا خو لا تۀ ورُوکے بچے ئې، او چې دَ اوس نه تۀ دَ ځان نه داسې امير صاحب او نيک سړے جوړ کړې کنه، دا خو لا تولۀ زندګي پاتې دۀ، آخر کښې به توبه اوباسې، الله به دې معاف کړي، اوږد اوږد اميدونه دَ انسان پۀ زړۀ کښې غورځوي، مرګ ئې دَ انسان نه هير کړے وي، دا ځکه چې دَ انسان نيکو اعمالو طرف ته توجّو پيدا نشي، کلۀ چې دَ انسان نيکو اعمالو طرف ته توجّو پيدا شي نو دَ انسان دنيا سره مينه کمه شي.

**مثال**

رسول الله ﷺ فرمائي: "چې دَ دې انسان دَ اميد مثال او دَ دۀ دَ اجل مثال داسې دے نبي ﷺ خلور ګوټه کرټه جوړه کړه (مربّع شکل)، او پۀ دې کښې ئې مينځ کښې وړې وړې کرښې اوکړې، او دَ دې نه ئې يَو کرښه بهر کړه، نبي ﷺ فرمائي: دا مربّع شکل کښې کرښې چې دي دا دَ انسان

هغه اجل دے، او دا مینځ کښې نښه چې ده دا انسان دے، دا مینځ کښې وړې وړې کرښې چې دي دا عوارض دي (خوشحالئ دي، تکالیف دي)، دا به په انسان راځي، او دَ دې مربّع کرښې نه بهر چې اوږده کرښه اوتې ده دا دَ انسان هغه امید دے، دا انسان راروان دے تردې ځائے پورې".

دا مربع کرښه ده




اوس امید خو هغه ځائے ته وتلے دے، دَ ده امید خو دومره اوږد دے چې هغې ځائے ته رسیدلے دے، دلته کښې دَ ده نیته راورسیده، انسان مړ شو، امید ټول پاتې شو، دَ ده په ذهن کښې دا سوچونه دي: چې زه به صبا دا کار کوم، بله ورځ به هغه کار کوم، او مرګ راشي، هغه هر څه ترې نه پاتې شي، نو شیطان مونږه او تاسو دهوکه کوي چې زمونږ امید اوږد کوي.

**دَ نبي ﷺ طریقه**

حالانکه حدیث پاک کښې راځي: "چې نبي ﷺ به کله هم واړه بول اوکړل نو په هغې ځائے باندې به ئې تیمّم اووهلو"، نو دا نه ده چې کنې بس ته هم تیمم وهه، دا دَ نبي ﷺ یو عجیب تقوٰی او زهد وو، صحابه ﷺ ورته وائي: "دغه خوا کښې اوبه دي او تاسو تیمم وهئ، داسې ولې کوئ؟"، نبي ﷺ ورته فرمائي: "ما ته څه پته ده چې زه دغې اوبو ته رسیدلے شم او که لار کښې مرګ راځي".

داسې دَ نبي ﷺ دَ دنیا سره تعلق ختم وو، اوس هم بعضې خلق داسې کوي، خو ستا تیمم نه کیږي، چې خوا کښې دې اوبه موجود وي، بعضې خلق وائي: "چې سړے په جنابت کښې وي نو ښکته به په زمکه خپه نه ایږدي، او که خپه ایږدي نو زمکه چغې اوباسي، نو دے به په کټ کښې تیمم وهي"، چې خوا کښې دې اوبه دي نو تیمم کیږي نه، نو ته څنګه تیمم کوې؟ سنت طریقه دغه ده که غسل نشې کولے نو اودس اوکړه بیا اوده شه بیا سحر غسل اوکړه، او که کولے شې نو بهتره خبره ده، دا سنت طریقه ده نو دوي هغه سنت طریقې پریخودي دي، نورې

طريقې ئې پکښې دَ ځان نه وردننه کړي.

بعضې دَ جنابت پهٔ حالت کښې وي نو پهٔ چا به سلام نهٔ اچوي، بس پهٔ چپه به روان دي، هلکه دا ولې؟ يره جي! زهٔ پاک نهٔ اووم، نو ولې دَ سلام دپاره به سرے اودس کوي؟ غسل به کوي؟ ولې دا څهٔ قرآن دے؟ سلام خو دعاء ده، هر حالت کښې کولے شې، ذکر هم دَ جنابت پهٔ حالت کښې کولے شې، صرف دَ قرآنِ کريم تلاوت به نهٔ کوې، او قرآنِ کريم ته به لاس نهٔ اوړې، خبرې هم کولے شې، خوراک څښکاک هم کولے شې، صرف دَ قرآنِ کريم تلاوت به نهٔ کوې، سيدة عائشه ﷺ فرمائي: نبي ﷺ به پهٔ جنابت کښې وو، نبي ﷺ به پاسيدو او مونړه له به ئې پيشمنے اوکړو، او دَ هغې نه پس به ئې غسل اوکړل، نو دين ډير آسان دے، خو مونږ ځان له ډير کران کړے دے.

بهر حال شيطان انسان له وسوسه اوغورځوي، چې دا خو لا ډير عمر دے، دَ نيکۍ کار به اوکړې، وائي: ما دَ هغې مقابله دَ قرآنِ کريم پهٔ يَو آيت باندې اوکړه: چې الله تعالى فرمائي: ﴿وَمَا تَدۡرِي نَفۡسُۢ بِأَيِّ أَرۡضٖ تَمُوتُۚ﴾.[1]

"نهٔ پوهيږي يَو نفس چې دے به پهٔ کومه زمکه باندې مړ کيږي".

نو دا يَو تن ته هم پته نهٔ لګي چې کوم ځائے به مړ کيږي، تلے خپل کارپسې دے او راځي نو بيا ئې خلقو کټ رااوچت کړے دے، وائي: فلانکي ځائے کښې مړ شو، پته خو نهٔ لګي، مرګ ناڅاپه راځي، مرګ چا له خبر نهٔ ورکوي، مرګ چا له ټائم نهٔ ورکوي، نو تهٔ سوچ کوه: چې مرګ راروان دے او دَ هغې دپاره تيارے پکار دے.

**(۳) دريمه وسوسه**

دريم: شيطان راځي او انسان ته وسوسه اچوي: چې الله درباندې ښهٔ احسان کړے دے، ښهٔ مال او دولت ئې درکړے دے، بس دا ستا دَ نيک بختيا علامه ده کنه، نو کلهٔ کلهٔ پهٔ دې باندې انسان دهوکه کړي، نو ما دَ هغهٔ مقابله پهٔ دې آيت باندې اوکړه، چې الله فرمائي: ﴿ذَرۡهُمۡ يَأۡكُلُواْ وَيَتَمَتَّعُواْ وَيُلۡهِهِمُ ٱلۡأَمَلُۖ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُونَ﴾.[2]

---

(1) [سورة لقمان: 34].

(2) [سورة الحجر: 3].

"پرېږدوه دوي چې خوراکونه کوي او څښکاکونه کوي او په غفلت کښې اچولي دوي لره اميدونو نو عنقريب دوي به پوهه شي".

نو دَ دې هر څهٔ باره کښې به ترې تپوس کيږي، نو هغهٔ عالم وائي: ما دَ شيطان دَ دې وسوسې مقابله په دې آيت سره اوکړه.

**(٤) څلورمه وسوسه**

وائي: شيطان راغے نو زهٔ به ئې په تعجب کښې واچولم چې تهٔ خو ډير ښهٔ ئې، ډير ښهٔ اعمال دې کړي دي، ډيرې نيکئ دې کړي دي، دا ستا دپاره بس دے، وائي: ما دَ شيطان مقابله په دې آيت باندې اوکړه: چې الله فرمائي: ﴿يَوۡمَ يَأۡتِ لَا تَكَلَّمُ نَفۡسٌ إِلَّا بِإِذۡنِهِۦۚ فَمِنۡهُمۡ شَقِيّٞ وَسَعِيدٞ﴾.[1]

صبا به قيامت کښې چې خلق دَ الله تعالی په دربار کښې اودريږي نو "په دغه ورځ باندې به خبرې اونهٔ کړي يَو تن دَ دوي نه او سيوا دَ اجازت دَ الله تعالی نه او بعضې دَ دوي نه به په دغه ورځ نيک بخته وي، بعضې به بدبخته وي".

نو ما ته پته نشته: چې په کومه ډله کښې به زهٔ اودريږم؟ نيک بختو کښې به اودريږم او که بد بختو کښې به اودريږم نو ما دَ شيطان مقابله په دغه آيت باندې اوکړه.

**(٥) پنځمه وسوسه**

پنځم: دَ شيطان مقابله مې په دې باندې اوکړه: "چې شيطان راځي او خلقو له وسوسې غورځوي: چې خپل مسلمان رور ته سپک کوره، چې بس څهٔ يم نو زهٔ يم..."، دا په اکثرو خلقو کښې دا مرض وي، چې بل خو هغهٔ له هډو څهٔ انسان نهٔ ښکاري، خپل رور مسلمان ته سپک کتل دا دَ شيطان وسوسه ده، نو وائي: "ما دَ شيطان مقابله په دې اوکړه: چې الله تعالی فرمائي: ﴿وَلِلَّهِ ٱلۡعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ﴾.[2] "عزت دَ الله تعالی دپاره دے او دَ محمد رسول الله ﷺ دپاره دے او دَ مومنانو دپاره دے".

نو ټولو مومنانو ته به دَ عزت په نظر ګورې، چا ته به سپک نهٔ ګورې.

**(٦) شپږمه وسوسه**

شپږم وائي: شيطان راغے نو ما له ئې زړهٔ کښې وسوسه اوغورځوله چې تهٔ دَ مسلمانانو سره

(1) [سورة هود: 105].
(2) [سورة المنافقون: 8].

بغض او حسد ساته، مسلمانانو سره عداوت کوه، دا هم دَ شیطان وسوسه ده، چې شیطان به ستا او دَ بل مسلمان په زړهٔ کښې حسد راولي.

دا یاد اوساتئ! دا صرف زمونږ او ستاسو دَ نیکو تباه کولو یو شے دے کښې پهٔ حسد باندې انسان له ذرّه فائده هم نهٔ میلاویږي، بلکه حسد انسان له دنیاوي نقصان هم دے او دیني نقصان هم دے، دَ یَو سړي به ښهٔ مزیدار بدن وي، خو چې کلهٔ هغه دَ بل مسلمان سره بغض او حسد شروع کړي نو داسې ئې دا بدن ویلي کیږي لکه څنګه چې واوره ویلي کیږي، حسد کر انسان ښهٔ کیږي نه، ولې چې هغهٔ سره روزانه غمونه دي، هغهٔ ستا پهٔ ښهٔ کیدو او خرابیږي، هغهٔ ته ستا پهٔ خفګان خوشحالي میلاویږي، او ستا پهٔ خوشحالئ ورته خفګان میلاویږي، نو چې کلهٔ تهٔ خوشحالیږې نو هغهٔ به پهٔ هغهٔ ورځ باندې پاؤ نور هم کمیږي؛ ځکه هغهٔ کښې بغض او حسد دے، نو دَ دنیا دپاره هم دا نقصان شو؛ ځکه بغیر دَ مرض نه ئې ځان بیمار کړے دے، او دیني نقصان ئې دا دے: چې نبي ﷺ فرمائي: "ځان دَ حسد نه بچ کړئ؛ ځکه حسد نیکئ داسې خوري لکه څنګه چې اُور خشاک خوري"، داسې نیکئ ختموي.

یَو حدیث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: «دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الأُمَمِ قَبْلَكُمْ: الحَسَدُ والبَغْضَاءُ».(1)

"اے زما اُمَّته! دَ پخوانو امتونو مرض تاسو ته هم رو رو اولګیدو چې هغهٔ بغض او حسد دے".

نبي ﷺ فرمائي: دا بغض او حسد دا ذومره ناکاره بیماري ده: چې «هِيَ الحَالِقَةُ، لاَ أَقُولُ تَحْلِقُ الشَّعَرَ وَلَكِنْ تَحْلِقُ الدِّينَ».(2)

"دا بغض او حسد خرَیُونکي دي، دا خرول کوي، نبي ﷺ وائي: دا نهٔ وایم: چې کني تاسو نه ویښتهٔ لرې کوي، بلکه دین درنه لرې کوي".

لکه څنګه چې دَ سړي پهٔ سر ویښتهٔ دي او دے نائي ته کیښني، وائي: زما دَ سر نه ویښتهٔ کټ کړه، بس خالي سر پاتې شو، دغه شان تا پسې چې کوم دین انختے دے چې بغض او حسد درکې راشي، داسې درنه دین لرې کړي، لکه څنګه ئې چې درنه دَ سر نه ویښتهٔ لرې کړل، داسې به دې دَ دین نه پاتې کړي.

(1) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2510).
(2) أخرجه الترمذي في أبواب صفة القيامة والرقائق والورع، باب، برقم: (2510).

وائي: شيطان راغے او هغه زۀ بغض او حسد کښې مبتلاء کولم نو ما دَ قرآن پۀ آيت دَ هغه مقابله اوکړه، او دَ هغۀ هغه وسوسه مې ختمه کړه، هغه دا چې قرآنِ کريم کښې الله تعالیٰ فرمائي: ﴿نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾.(1)

الله وائي: "مونږ دَ دنيا دا ژوند تقسيم کړے دے دَ دوي پۀ مينځ کښې".

نو چا له مې دا ژوند ډير ورکړے دے، چا له مې لږ ورکړے دے، الله وائي: دا زما تقسيم دے، الله پۀ دې ښۀ پوهيږي، نو ستا پکښې څۀ کار دے؟ چې چا له الله ډير ورکړے دے، تۀ پرې خوشحاله شه؛ ځکه دا دَ الله تقسيم دے، تۀ به دَ الله پۀ تقسيمج باندې خفګان نۀ ښکاره کوې.

**(۷) اوومه وسوسه**

اووم: شيطان راته وسوسه غورځوله: چې سرې کښې رياء کاري پيدا شي، عمل دَ دې دپاره کوي چې خلق ماته ښۀ اووائي، او خلق زما صفت شروع کړي، او زما مدح شروع کړي، نو دَ شيطان مقابله شروع کړه، قرآنِ کريم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا﴾.(2)

"څوک چې دَ خپل ربّ دَ ملاقات طمع کوي پس عمل دې کوي دے عمل نيک (صحيح عمل دې کوي)، نۀ دې شريکوي پۀ عبادت دَ خپل ربّ کښې هيڅ څوک".

نو شيطان رياء کاري راوسته نو ما دَ هغۀ مقابله اوکړه.

رياء کارۍ سره بالکل اعمال بربادیږي، قرآنِ کريم کښې الله تعالی فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ كَالَّذِي يُنفِقُ مَالَهُ رِئَاءَ النَّاسِ﴾.(3)

"اے دَ ايمان والؤ! خپل خيراتونه خپلې صدقې پۀ زباډلو باندې، پۀ ردو بدو باندې مۀ بربادوئ، پشان دَ هغې سړي باندې چې مال دَ دې دپاره خرڅ کوي چې خلقو ته ځان ښائي".

نو دَ هغۀ تن عمل برباد دے چې مقصود ئې خلق خوشحالول دي، نو رياء کارۍ سره اعمال دي ختم شول، دَ دې وجې نه مونږ کلۀ کلۀ دې خپلو رونړو ته وايُو: اے رونړو! چې خيرات کوئ، هر عمل

(1) [سورة الزخرف: 32].

(2) [سورة الكهف: 110].

(3) [سورة البقرة: 264].

کوئ نو صرف الله رضاء کړئ، دوي وائي: صحيح ده، جومات کښې به هم ورکوو، خو چونکه دَ زنانو خبره ده نو يَو څو ديګونه به پکښې هم پاخهٔ کړو، خلق به بيا وائي: چې هدو خيرات ئې ورېسې اونهٔ کړو، دا جومات کښې لګول او دا مدرسه کښې لګول دا دوي ته خيرات نهٔ ښکاري، دوي ته صرف دغه ديګونه خيرات ښکاري، دا ياد اوساتئ! دَ دې خپل زړهٔ نه تپوس اوکړئ: دَ ديګونو مونږه مخالفت نهٔ کوو، ښه خيرات دے، دَ بل مخالفت مونږه نهٔ کوو چې هر خيرات کوئ، وې کړئ، خو لږ غونډې دَ دې خپل خيرات نه مخکښې پهٔ دې خپل کړيوان کښې لږ سوچ کوه: چې دا ديګ زهٔ پخوم دَ الله دَ رضاء دپاره ئې پخوم، او کهٔ نه دَ دې دپاره ئې پخوم چې خلق خوشحاله شي، او خلقو ته هم پته اولګي چې دې فلانکي خو خيرات اوکړو، کهٔ مو دا مقصد وي: چې زما نه زما الله رضاء شي خو مزې کوه، دغه ديګ به دې الله تعالی بيا پهٔ لوئي خيرات منظور کړي، او کهٔ زړهٔ کښې دې دا وو: چې الله هم رضاء شي، خو چې دا زنانه رضاء شي، او دا دې هم زړهٔ کښې دي چې خلقو ته پته اولګي نو ځان له دې اعمال برباد کړل، نو شيطان راځي او انسان له وسوسه غورځوي دَ رياء دپاره، نو وائي: ما دَ هغې مقابله پهٔ دې باندې اوکړه.

**(۸) اتمه وسوسه**

اتم: شيطان راځي او انسان له زړهٔ کښې بخل غورځوي، وسوسه دَ بخل غورځوي، چې تهٔ دا مال خيرات کړې نو بيا به څهٔ کوې؟ دا ځامن به دې څهٔ کوي؟ دا دومره ډير زکٰوة چې پهٔ تا باندې لازم شو نو ځان پرې تا وږلے وو، اوس به ئې خلقو له هسې ورکوې، نو شيطان به ستا زړهٔ کښې بخل پيدا کوي، پهٔ اختر کښې سَرسايه ده، پهٔ هغې به دې زړهٔ نهٔ کيږي، قرباني درباندې راشي هغې له به دې زړهٔ نهٔ کيږي، يره! دا خو ډيره زياته خرچه کيږي، نو شيطان به ستا زړهٔ کښې بخل غورځوي، دارنګې خيرات او صدقې له به دې زړهٔ نهٔ کيږي، ولې چې بيا به دَ غريبئ نه يريږې، دا دَ شيطان وسوسه ده، هلکه! کوم الله چې دا مال درکړے دے نور به درکړي تهٔ ئې اولګوه دَ الله پهٔ لار کښې، حديث کښې راځي: چې کلهٔ انسان مال خيرات کوي نو فرشته دعاء کوي: «اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَيَقُولُ الآخَرُ: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا».(1)

(1) أخرجه البخاري في كتاب الزكاة، بَابُ قَوْلِ اللهِ تَعَالَىٰ: ﴿فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَاتَّقَىٰ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ...﴾ «اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقَ مَالٍ خَلَفًا»، برقم: (1442).

"الله کوم کسان چې ستا په لار کښې مال لګوي الله! نور مال ورله ورکړې او بله فرشته خیرې کوي: الله! کوم کسان چې مال نه لګوي نو دغه شته مال ترې هم واخله".

ته اولګوه الله به نور مال درکړي، نو شیطان انسان له وسوسه غورځوي، په دې آیت ما د هغه مقابله اوکړه چې الله تعالی فرمائي: ﴿مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ اللَّهِ بَاقٍ﴾.(1)

"تا سره چې کوم نعمتونه دي دا به ختم شي او کوم چې د الله سره دي نو هغه باقي دي".

که مال نه لګوې نو مه ئې لګوه خو دنیا به درنه یو ځل پاتې کیږي، چې پاتې شي نو تا له په لاس څه راغلل؟ مال اولګوه چې د هغې ځائے نعمت درته میلاؤ شي چې هغه همیشه دپاره دے.

**(۹) نهمه وسوسه**

نهم: شیطان راغے نو هغه انسان له وسوسه غورځوي د تکبر چې دے خپل ځان اوچت کنړي او نور خلقو ته سپک کوري، نو وائي: ما د هغې مقابله په دې آیت اوکړه: چې الله تعالی فرمائي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾.(2)

الله وائي: "مونږه پیدا کړي يئ تاسو د يو نارينه او د يو زنانه نه، ګرځولي مې يئ تاسو وړې وړې قبیلې، او لوئې لوئې قبیلې؛ د دې دپاره چې تاسو يو بل اوپيژنئ، یقینًا په تاسو کښې عزتمند د الله په نزد باندې پرهیزګار په تاسو کښې دي، یقینًا الله پوهه او خبردار ذات دے".

نو کوم چې زیات پرهیزګاره دے هغه زیات عزتمند دے په الله تعالی باندې، د مال او دولت د وجې نه عزت نه راځي، بلکه تقوی چې په چا کښې سیوا ده نو د هغې انسان مقام اوچت دے.

**(۱۰) لسمه وسوسه**

لسم: شیطان راځي: او انسان ته وسوسه غورځوي د طمعې، چې خلقو نه طمع کوي نو دے بیا حق نه وائي، د خلقو نه طمع کوي د هغې وجې نه دے حق نشي وئیلے، نو ما د هغې مقابله اوکړه په دې آیت چې الله فرمائي: ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾.(3)

---

(1) [سورة النحل: 96].

(2) [سورة الحجرات: 13].

(3) [سورة الطلاق: 2- 3].

"څوک چې دَ الله تعالى نه اويريږي الله به دَ هغهٔ دپاره يَو لار اوګرځوي دَ آسانتياء، الله به دَ داسې طرف نه رزق ورکړي چې دَ دهٔ به ورباندې ګمان هم نهٔ وي".

**واقعه**

پهٔ دې آيت باندې مفسرين يَو واقعه ذکر کوي: "يَو صحابي راغے نبي ﷺ ته پهٔ ژړا او فرياد باندې، چې زهٔ کمزورے يم، وس مې نشته، يَو ځوي مې وو، هغه هم کافرانو تختولے دے، نو څهٔ چل اوکړم؟ نبي ﷺ ورته اووئيل: دَ الله نه اويريږه، ځان کښې تقوىٰ پيدا کړه، او "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ" وِظيفه ډيره کوه، دغې صحابي دا خپله مشغله اوګرځوله، څهٔ ورځې بعد ئې کتل چې ځوي ئې مدينې ته راغے، او تقريبًا څلور زره (۴۰۰۰) ګډې او بيزې ئې دَ ځان سره راوستې دَ دشمن نه، نو هغه خو هغهٔ وخت کښې دار الحرب وو، دَ دشمن مال دَ مسلمانانو دپاره روا وو، چې پهٔ طريقه ئې ترې راوړې؛ ځکه دوي به هغوي نه کسان بوتلل، او هغوي به دَ دوي نه کسان بوتلل، نو دَ تقوىٰ پهٔ وجه او دَ "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ" پهٔ وجه پهٔ هغهٔ الله دومره لوئي احسان اوکړو، دَ هغهٔ خو دا خيال هم نهٔ وو، چې زما ځوي به ژوندے راشي او کهٔ نه؟ ځوي ئې راغے او سره دَ څاروو دَ کنډک نه راغے".

کهٔ مونږ او تاسو پهٔ ځان کښې تقوىٰ پيدا کړه الله تعالى به مونږ او تاسو باندې دغه احسانات کوي، قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾.(1)

الله وائي: "کهٔ چرته دَ کلو والؤ ايمان راوړے وے او صحيح طريقې سره ئې ځان دَ ګناهونه نه بچ کړے وے، او تقوىٰ ئې ځان کښې راوستے وے نو ما به پهٔ هغوي دَ آسمان برکتونه راکولاؤ کړي وے، تائم پهٔ تائم بارانونه وو، او دَ زمکې نه چې تائم پهٔ تائم به رزقونه رازرغونيدل".

هر شے به آرزان وو، دے به بالکل خوشحاله وو، خو دا نن چې څهٔ مونږ له ميلاويږي دا زمونږ دَ اعمالو نتيجه ده، مونږ کښې تقوىٰ نشته، او تقوىٰ ديته نهٔ وائي: چې ګني پهٔ سر باندې څهٔ څادر او رومال راواچوه، سترګې ښې غټې تورې کړه، او دَ عطرو يَو بوتل پهٔ ځان باندې اولګوه، او ښې کولاؤ کولاؤ کپړې جوړې کړه، نو بس تهٔ غټ مُتَّقي ئې، ديته تقوىٰ نهٔ وئيلے

(1) [سورة الأعراف: 96].

کبري، حدیث کښې راځي: «التَّقْوَى هَاهُنَا».[1]

"تقوی دلته کښې ده (او درې پیرې ئې سینې ته په ګوتې سره اشاره اوکړه)".

نو تقوی دَ زړهٔ صفت دے، تقوی دیته وائي: چې الله تعالی درته دَ کوم څیز حکم کړے دے هغه کوه، چې دَ کوم څیز نه ئې منع کړے ئې نو دَ هغې نه منع شه، دیته تقوی وائي، چې دَ څهٔ ئې درته وئیلي دي چې هغه کوې، او چې دَ څهٔ نه ئې منع کړے ئې هغه نهٔ کوي، الله رب العزة دې دا تقوی پهٔ مونږ او تاسو کښې پیدا کړي (آمین!).

الله رب العزة دې دَ صحیح عمل کولو توفیق رانصیب کړي (آمین!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(1) أخرجه مسلم في كتاب البر والصلة والآداب، باب تحريم ظُلْمِ الْمُسْلِمِ، وَخَذْلِهِ، وَاحْتِقَارِهِ وَدَمِهِ، وَعِرْضِهِ، وَمَالِهِ، برقم: (2564).

بسم الله الرحمن الرحيم

خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ

(سورة البقرة: 7)

# موضوع

# دَګناهونواثر

بتاريخ: 2008-03-21

مقام جلسئ

خطيب

فصيح اللسان لذيذ البيان علامه عبد الحق ربّاني حفظه الله

# دَ ګناهونو اثر

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّآتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ، أَبَدِيٌّ سَرْمَدِيٌّ لَا أَوَّلَ لَهٗ وَلَا آخِرَ لَهٗ لَا ضِدَّ لَهٗ وَلَا نِدَّ لَهٗ وَلَا مُمِدَّ لَهٗ وَلَا بَشِيْرَ لَهٗ وَلَا نَذِيْرَ لَهٗ وَلَا وَزِيْرَ لَهٗ وَلَا مُشِيْرَ لَهٗ، وَأَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَسَنَدَنَا وَمَوْلَانَا وَحَبِيْبَنَا وَشَفِيْعَنَا وَحَبِيْبَ رَبِّنَا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَسَلَّمَ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

أَمَّا بَعْدُ! فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، ﴿خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ وَعَلٰى أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾.(1)

وقال الله تبارك وتعالى في مقامٍ آخر: ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَأَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِيْنَ* أُولٰئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُوْنَ* لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُوْنَ﴾.(2)

عزتمندو، حاضرينو، مسلمانانو رونړوا په دې جُمعه کښې دَ ګناهونو هغهٔ اثرات ذکر کوو، چې دَ انسان دَ ګناهونو دَ وجې نه په تمامو مخلوقاتو عذاب راځي، کهٔ په مونږ او تاسو قسم ما قسم حالات راروان دي، الله رب العزّة ناراضه دے، حاکمان ناکاره دي، رعيّت ناکاره دے، مسلمان پخپل ژوند کښې پريشانه دے، دَ هر سړي پريشانئ دَ حد نه اوړيدلې دي، دَ هغې سبب دا دے: چې مونږ او تاسو دَ الله رب العزة نافرماني شروع کړې ده.

## دَ قرآنِ کريم اعلان

او قرآنِ کريم اعلان کړے دے چې: دا الله رب العزة زياتے نهٔ دے کړے، بلکه دا دې خلقو

(1) [سورة البقرة: 7].
(2) [سورة النحل: 107-109].

پخپل ځان پخپله زیاتے کړے دے، الله فرمائي: ﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ﴾.[1]

"کۀ پۀ اوچه کوم فسادات شروع دي، پۀ سمندرونو کښې کوم نقصانات شروع دي نو دا دَ خلقو دَ اعمالو دَ وجې نه دا فسادات شروع دي".

**دَ ګناهونو دَ وجې نه دَ انسان دَ بدن دپاره نقصان**

لوئي نقصان دَ انسان دپاره دا دے: چې کلۀ یَو بنیادم ګناه اوکړي، نو امام الأنبياء محمد مصطفٰی ﷺ فرمائيلي دي: "چې کلۀ یَو بنیادم ګناه اوکړي نو دَ هغې ګناه پۀ وجه دَ انسان پۀ زړۀ یَو تور داغ اولګي..."، دَ زړۀ مثال دَ آئینې او دَ شیشې دے، کلۀ چې شیشه صفا وي، دَ ګرد غبار تاکي وغیره پرې نۀ وي، خرابه شوي نۀ وي نو پۀ دې کښې ښۀ تصویر هم ښکاري، او بد تصویر هم ښکاري، چې څنګه ستا تصویر دے هغۀ شان تصویر به درته ښائي، نو کلۀ چې دا شیشه خرابه شي نو کۀ ستا ډیر مزیدار شکل دے خو چې شیشې ته مخامخ کیږې نو دَ ځان نه به دې زړۀ تور شي، دغه شان دا زړۀ هم دے، کلۀ چې زړۀ صفا وي نو چې انسان نیک اعمال کوي، هغۀ ورته بالکل صفا ښکاري، بد عمل ورته بالکل خراب ښکاري، نو دے نیک اعمال کوي او دَ بد اعمالو نه ځان ساتي، او کلۀ چې زړۀ ګنده شي نو بیا مونږ ته هغۀ بد اعمال ښۀ ښکاري، او ښۀ اعمال به راته ښۀ نۀ ښکاري؛ ځکه زړۀ ګنده شوے دے.

**نو دَ ګناه اول اثر دا دے**: چې دَ انسان زړۀ تک تور شي، نبي ﷺ فرمائي: «إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَذْنَبَ ذَنْبًا نُكِتَ فِي قَلْبِهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ، فَإِذَا تَابَ وَنَزَعَ وَاسْتَغْفَرَ صُقِلَ قَلْبُهُ، وَإِنْ زَادَ زَادَتْ حَتَّى تَعْلُوَ قَلْبَهُ».[2]

"چې کلۀ یَو بنیادم ګناه اوکړي نو دَ هغې ګناه پۀ وجه دَ دغې انسان پۀ زړۀ یَو تور داغ اولګي، کۀ چرې دا انسان دَ هغې ګناه نه توبه اوباسي نو هغۀ داغ وران شي، او زړۀ ئې صفا شي، او کۀ چرې دا بنیادم دَ دې خپلې ګناه نه توبه نۀ اوباسي نو هغۀ داغ نور هم سیوا شي تردې پورې چې زړۀ ئې تک تور شي".

نو دا زړۀ چې کلۀ تک تور شي نو بیا دَ هغې نه الله تعالٰی کلۀ پۀ "ختم" سره تعبیر کوي، او کلۀ

(1) [سورة الروم: 41].

2) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (51/1)، و"تفسير ابن الكثير".

دَ هغې نه پهٔ "ران" (زنګ) سره تعبیر کوي، کلهٔ پهٔ "قفل" (جرندې) سره تعبیر کوي، او کلهٔ الله تعالی دَ دې نه پهٔ "سدّ" (دیوال) سره تعبیر کوي، او دا پهٔ قرآن کښې مختلف تعبیرات راغلي، لکه الله رب العزة فرمائي: ﴿خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾.[1]

"مهر لګولے دے الله تعالی دَ دوي پهٔ زړونو باندې، او دَ دوي پهٔ غوږونو باندې، او دَ دوي پهٔ سترګو باندې پردې دي او دَ دوي دپاره عذاب لوئي دے".

الله وائي: ما ورته زړهٔ هم بند کړے، ما ورته غوږونه هم بند کړي، ما ورته سترګې هم بندې کړي دي، او دوي دپاره عذاب لوئي دے.

**دَ غیر دینه خلقو اعتراض**

جبریه اَعتراض کوي: پهٔ دې کښې دَ انسان جرم څهٔ دے؟ ولې چې انسان يَو شے معلوموي، هدایت حاصلوي نو پهٔ زړهٔ باندې سوچ کوي، نو پهٔ هغې باندې دے حق او باطل معلوموي، غوږونو باندې واوري نو پهٔ هغې باندې دے حق او باطل معلوموي، پهٔ سترګو باندې اوګوري، پهٔ هغې باندې دے حق او باطل معلوموي، چې الله رب العزة دَ انسان زړهٔ بند کړو، دَ انسان غوږونه ئې بند کړل، دَ انسان سترګې ئې بندې کړې نو اوس کهٔ دا انسان ګناه کوي، نو دا انسان خو ربّ العزة داسې کړے دے، نو بیا ولې ګناهګار دے؟

جواب دَ دې دا دے: الله تعالی دَ انسان سره بڅپله ظلم نهٔ دے کړے، بلکه دا دَ دې انسان خپل ځان سره بڅپله ظلم کړے دے.

**دَ ګناه اثر**

دا اثر الله پهٔ ګناه کښې کیخودلے دے، کلهٔ چې بنیادم ګناه کوي، زړهٔ به ئې بندیږي، غوږونه به ئې بندیږي، سترګې به ئې دَ حق دَ لیدو نه بندیږي، نو چې انسان ګناه اوکړه، نو دغه چل ورسره اوشو.

مثال پهٔ طور: زهر دي، پهٔ زهرو کښې الله دا اثر کیخودلے دے: چې کله ئې انسان اوخښکي نو انسان به مړ کیږي، اوس يَو انسان زهر اوخښکل نو خلق وائي: ډیر زیاتے ئې دَ ځان سره اوکړو، نو

---

(1). [سورة البقرة: 7].

دۀ بخپله ځان مړ کړو، کۀ الله مړ کړو؟ کۀ الله نۀ مړ کولو نو دے مړ کیدے شو، الله پاک دَ دې دپاره زهر پیدا کړل چې خلق پۀ دې مړ کیږي، خو دا ښنکل او نۀ ښنکل دا دَ بنده اختیار دے، کۀ دا بنده ئې ښنکي نو دے به مړ کیږي، او کۀ نۀ ئې ښنکي نو دے به نۀ مړ کیږي، بخپله نیته به مړ کیږي، نو چې دَ انسان زړۀ الله بند کړے دے، مهر ئې پرې لګولے دے، سترګې ئې ورله بندې کړې دي، غوږونه ئې ورله بند کړي دي، دا دَ انسان دَ عمل دَ وجې نه ئې بند کړي، دَ انسان عمل خراب وو، دَ هغې اثر دا وو: چې دۀ باندې به مهر اولګي، نو يَو اثر دَ ګناه دا دے: چې نبي ﷺ فرمائي: دَ انسان زړۀ ورسره توريږي، دا نن چې مونږ او تاسو دَ شپې او ورځې بیانونه کیږي او پۀ مونږ کښې ذرّه فرق نه راځي، نۀ زمونږ پۀ اخلاقو کښې، نۀ زمونږ پۀ شکل کښې، نۀ زمونږ پۀ عملونو کښې خو بس چې زمونږ زړۀ څۀ غواړي، بس مونږ هغه کار کوو، وجه دا ده: چې زمونږ او ستاسو زړونو باندې مهرونه لګیدلې دي، زنګ پرې راغلے دے.

**دَ فتنو راتلل**

نبي ﷺ يَو مثال پیش کوي: نبي ﷺ فرمائي: "پۀ زړونو دا فتنې داسې راځي، لکه څنګه چې مونږ او تاسو پوزکې راجمع کوو، کوم زړۀ چې هغې فتنې له ځائے ورکړي نو هغې کښې يَو تک تور داغ اوشي، او کوم زړۀ چې هغې فتنې له ځائے ور نۀ کړو نو پۀ هغې کښې تک سپین داغ اوشي، او هغۀ زړۀ تک سپین پاتې شي تردې چې خلق دوه قسمه شي: (۱) يَو قسم هغۀ خلق چې هغوي دَ سپینو زړونو والا خلق دے، او (۲) دویم قسم هغۀ خلق چې هغۀ دَ تورو زړونو والا خلق دے".

**(۱) اول قسم:** سپین زړۀ دے: چې هغۀ جائز جائز پیژني، او ناجائز ناجائز پیژني، او حرام حرام پیژني او حلال حلال پیژني، او حلال کوي او دَ حرامو نه ځان ساتي، صحیح کار کوي، او دَ غلط نه ځان بچ کوي، دا دَ سپینو زړونو والا خلق دي.

**(۲) دویم قسم:** هغه زړونو والا خلق دي: چې هغۀ دَ تکو تورو زړونو والا خلق دے، دَ ګناه پۀ وجه دَ هغۀ زړۀ تور شوے دے، نبي ﷺ فرمائي: دَ هغې مثال داسې دے: لکه يَو کوزه ده، چې هغه کوزه اُلټه کیږدې، کوزه چې نیغه کیږدې نو دَ پاسه نه پکښې اوبۀ اچوه نو هغۀ ډک شي، خو کۀ چرې دا کوزه مونږ اُلټه کیدو، هغۀ خُلۀ ئې لاندې زمکې طرف ته راشي، او

لاندې طرف پرې دَ پاسه کړو، او بیا چې یَو کس ځي، او بالتې راډکوي او دَ پاسه پرې اړوي، یَو کوټ اوبۀ پکښې نۀ جمع کیږي.

نو نبي ﷺ فرمائي: "دَ دغې زړونو مثال بیا دَ کوزې پشان شي، لکه کوزه چې اُلټه شي، کله چې کوزه الټه شي بیا پۀ هغې کښې یَو کوټ اوبۀ نۀ جمع کیږي، «لَا يَعْرِفُ مَعْرُوفًا، وَلَا يُنْكِرُ مُنْكَرًا»[1] بیا دے جائز کار نۀ پیژني، او دے ناجائز کار هم نۀ پیژني بلکه دے اُلټه روان وي، چې جائز وي نو هغې ته ناجائز وائي، او چې ناجائز وي نو هغې له جائز وائي، دا دَ ګناه اثر دے".

**دَ زړۀ تعبیر پۀ "ران" (زنګ) سره**

قرآنِ کریم کښې الله فرمائي: ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾.[2]

"چرې هم داسې نۀ ده بلکه دَ دې خلقو پۀ زړونو باندې زنګ راوستے دے نو هغې څۀ دا زنګ راوستے دے چې دوي کوم عملونه کړي دي".

دا زنګ دَ دوي دَ عملونو دَ وجې نه راغلے دے.

**دَ ګناهونو اثرات**

دَ زنګ دَ راتلو قرآنِ کریم مختلف قسم اسباب ذکر کړي دي:

**(۱) اول اثر دَ ګناه: دَ دنیا محبت**

دَ دنیا سره ناجائزه محبت دَ دې پۀ وجه دَ انسان پۀ زړۀ باندې زنګ راځي، دَ دنیا ګټل جائز دي، دا مطلب نۀ دے: چې لکه دَ پیرانو پشان کوټونو ته دننه شئ، او شپه او ورځ صرف "الله هو" "الله هو" کوئ، مۀ کار کوئ، مۀ کسب کوئ، دا پۀ شریعت کښې نشته، دا دَ مبتدعینو خلقو نظریه ده، نبي ﷺ ته یَو صحابي وائي: "یره، جي! ما له اجازت راکړه، چې زۀ راهب (پیر) شم، چرته شاړه جونګړه کښې به ناست یم، او دَ الله عبادت به کوم؟، نو نبي ﷺ ورته وائي: «وَإِنَّ رَهْبَانِيَّةَ أُمَّتِي الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ»، زما دَ امت رهبانیت هغه دَ الله پۀ لار کښې جهاد کول دي"، پخوانو امتونو کښې رهبانیت (پیرتوب) وو، زمونږ پۀ دین کښې رهبانیت دا دے: چې دَ الله پۀ لار کښې جهاد به کوي.

(1) أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب بيان أن الإسلام بدأ غريبا وسيعود غريبا، وأنه يأرز بين المسجدين، برقم: (144).

(2) [سورة المطففين: 14].

هاں! يَو وخت کښې رهبانيت جائز دے په دې امت کښې هم: چې کلهٔ دَ فتنو دور راشي او داسې دور راشي چې په هغې کښې ته خپل ځان نشې بچ کولے، بل ته دعوت خو درکنار چې ستا دَ خپل ځان خطره ده، چې زهٔ خرابيږم او زما ايمان خرابيږي نو نبي ﷺ فرمائي: "په داسې دور کښې بهتر سړے هغه دے: چې چرته په غرونو کښې اوسيږي او خپلې کډې، بيزې څروي، او آذان کوي، مونځ کوي، دا بهتر انسان دے".

او نورو خلقو نه ځانله کيدل، او ځانله والي ته ثواب وئيل دا زمونږ په دين کښې نشته بلکه دَ دې خلقو به په څهٔ طريقه باندې اصلاح کوې. نو دَ دنيا سره محبت ناروا دے، دنيا ګټل ناروا نهٔ دي، ځان له کار کسب کوه، قرآنِ کريم کښې الله فرمائي: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾.(1)

"اے مومنانو! کلهٔ مو چې دَ جُمعې آذان واوريدو بيا په تلوار دَ الله ذکر ته راشئ، او سوداګانې پريږدئ، دا غوره دي ستاسو دپاره که چرته تاسو پوهيږئ".

نو چې آذان اوشو دَ جُمعې نو بيا اغستل، خرڅول بس کړه، جومات ته راشه، نو چې مونځ اوشي نو الله وائي: ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِن فَضْلِ اللَّهِ وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾.(2)

"کلهٔ چې مونځ پوره شي بيا زمکه کښې خوارهٔ شئ او ځان له کار کسب کوئ، دَ الله رزق حلال لټوئ او الله ډير ډير يادوئ دَ دې دپاره چې تاسو کامياب شئ".

نو دَ دنيا ګټل جائز دي، خو دَ دنيا سره ناجائز محبت ناروا دے، چې دَ دنيا دپاره دې ټول دين پريښودے، او دنيا پسې شوے ئې، دا ناروا دي، او چې چا کښې دا ماده راشي او هغه دَ دنيا دپاره هر څهٔ قربانوي خو دنيا نهٔ پريږدي نو په زړهٔ باندې به ئې مهر اولګي، قرآنِ کريم کښې الله تعالى فرمائي: ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ * أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ﴾.(3)

"عذاب ځکه ورکوم؛ چې دې خلقو محبوب ګڼرلے دے ژوند دَ دنيا په آخرت باندې (دَ دنيا

(1) [سورة الجمعة: 9].

(2) [سورة الجمعة: 10].

(3) [سورة النحل:107-108].

دپاره وخت شته، دَ دین دپاره ذرّه وخت هم نشته، دَ دنیا دپاره ټول عمر شته، او دَ دین دپاره یَو ګهنټه نشته) الله توفیق دَ هدایت نهٔ ورکوي قوم کافرانو ته، دغه کسان دي چې الله مهر لګولے دے پهٔ زړونو دَ دوي او پهٔ غوږونو دَ دوي او پهٔ سترګو دَ دوي، او دغه خلق بالکل دَ دین نه ناخبره دي".

﴿لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾.(1)

"خامخه هم دغه کسان پهٔ آخرت کښې تاوانیان دي".

دَ دنیا دَ محبت دَ وجې نه دَ انسان پهٔ زړهٔ زنګ راځي، چې چا قرآن ته شاه کړه او دنیا ته ئې توجّو اوکړه دَ انسان پهٔ زړهٔ مهر لګي، او زنګ پرې راځي، او دا دَ قرآنِ کریم نه ثابت دي.

الله فرمائي: ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾.(2)

"څوک دے ډیر لوئي ظالم دَ هغهٔ چا نه چې نصیحت ورکړے شو هغهٔ ته دَ الله پهٔ آیتونو باندې، نو دهٔ دَ الله دَ آیتونو نه مخ واړولو او هیر ئې کړل هغهٔ چې دهٔ مخکښې وراندې کړي وو".

تهٔ ورته "قال الله" او "قال الرسول" وائې، او دے بل خوا توجّو اړوي، او دے بل خوا مخ اړوي، دَ هغې نه اعراض کوي، یره، جي! دا دَ دې وخت نهٔ دے، اوس هم بعضې ساده کان وائي، وائي: دا دَ پخوا زمانې سره وې، اوس دَ دې خبرو دور نهٔ دے؛ ځکه دنیا کوم ځائے ته لاړه، او دوي اوس هم هغهٔ زړې خبرې راتینګې کړي دي، نا! بلکه دا یاد اوساته! تر قیامته پورې به دا قانون جاري وي، الله پاک وعده کړې ده: ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾.(3)

الله وائي: "دا قرآنِ کریم ما رالیږلے دے او مونږ به پخپله دَ دې حفاظت کوو".

دَ مخکښې دینونو حفاظت دَ هغې دور علماؤ ته حواله وو، دَ دې دین حفاظت الله پخپله اغستے دے، تر قیامِ قیامته پورې پهٔ دې کښې څوک تبدیلي نشي راوستے، نو الله وائي: "دَ هغهٔ چا نه بل غټ ظالم نشته چې هغهٔ زما دَ کتاب بیان کیږي، او دے دَ هغې نه مخ واړوي، دے پهٔ هغې باندې عمل نهٔ کوي"، او علماء کرامو ذکر کړي دي: دا ﴿أَظْلَمُ﴾ ئې دَ اسم تفضیل صیغه راوړې ده، کهٔ تمام ظالمان راجمع کړې نو پهٔ اعراض کونکو کښې لوئي ظالم هغه دے چې هغه دَ الله دَ

(1) [سورة النحل: 109].

(2) [سورة الكهف: 57].

(3) [سورة الحجر: 9].

کتاب نه اعراض اوکړو، دَ الله دَ کتاب نه ئې مخ واړولو، او خپل ګناهونه ئې هیر کړل.

اوس سزا ئې څۀ ده؟ نو الله تعالی فرمائي: ﴿إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا﴾.(1)

الله وائي: "ما دَ دې خلقو په زړونو پردې راوستي دي؛ دَ دې وجې نه چې په قرآنِ کریم پوهه نشي او په غوږونو دَ دوي کڼبې دروندوالے دے".

نو دا دَ دوي دَ عمل سزا ده، په زړۀ ئې پردې دي، په غوږونو کښې ئې دروند والے دے، دَ الله کتاب اوریدل ورباندې بوج کیږي، کۀ توله ورځ کانې اوړي پروا نشته، هر څۀ دپاره ئې غوږونه سم دي، صرف دَ الله کتاب اوریدو دپاره سم نۀ دي، ﴿وَإِن تَدْعُهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ فَلَن يَهْتَدُوا إِذًا أَبَدًا﴾.(2)

الله وائي: "کۀ تۀ دوي هدایت ته راغواړې نو دوي په هدایت کیږي نه، دوي هم دغه شان په ګمراهئ کښې دي، تردې چې مرګ ورله هم په دې ګمراهئ کښې راشي".

نو یَو سبب: دَ ګناهونو دَ وجې نه دَ انسان په زړۀ باندې مهر لګي.

**(۲) دویم اثر: ګناهونو کښې مبتلاء به دَ علم نه محرومه وي**

دویم سبب: "چې کوم انسان په ګناهونو کښې مبتلاء دے، دغه انسان به الله دَ علم نه محرومه کوي".(3)

ډیر خلق وي وائي: یره جي! مونږ ته دعاء کوه چې الله مونږ له علم راکړي او کوي ګناهونه، نو چې ترڅو ئې ګناهونه نۀ دي پرېښودي نو الله ورله ذرّه علم هم نۀ ورکوي، او بالفرض والتقدیر کۀ علم درته میلاؤ هم شي، هغه علم به داسې وي چې دَ هغې علم نه به خیر نۀ خوریږي، امام ابن القیم رحمه الله لیکلي دي: "چې کلۀ یَو انسان نیک عمل کوي، دَ هغۀ په زړۀ کښې الله یَو نورانیت راولي او کلۀ چې یَو انسان ګناه کوي نو دَ ګناه په وجه دغه نورانیت ختمیږي؛ ځکه علم نور دے، رڼرا ده، دَ ګناه په وجه دغه نورانیت ختمیږي".

**دَ امام شافعي رحمه الله شکایت**

امام شافعي رحمه الله مشهور عالم دے، او دَ دین ئې ډیر خدمت کړے دے، یَو ورځ دَ امام

---

(1) [سورة الكهف: 57].

(2) [سورة الكهف: 57].

(3) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (52/1).

مالک ﷫ خوا ته لاړو، دَ هغهٔ سره ئې خبرې کولې، امام مالک دَ هغهٔ فقاهت ته حیران شو، دَ هغې دور داسې مخلصین علماء وو: چې هغوي به دَ یو بل پهٔ علم باندې اقرار کولو، فلانکے زما نه ښهٔ پوهیږي، پهٔ دې دور کښې کهٔ یو سړے نهٔ پوهیږي نو وائي به: زهٔ دَ ټولو نه ښهٔ پوهیږم، دا دَ تکبر علامه ده.

دَ امام ابو حنیفه ﷫ پهٔ مناقبو کښې چې سړے اوګوري نو امام مالک ﷫ وائي: دَ امام ابو حنیفه ﷫ غوندې عالم نهٔ دے تیر شوے، امام شافعي ﷫ وائي:

أَعِدْ ذِكْرَ نُعْمَانٍ لَنَا إِنَّ ذِكْرَهُ　　هو المِسْكُ ما كرَّرْتَه يَتَضَوَّعُ

"دَ امام ابو حنیفه ﷫ نعمان بن ثابت تذکره راته بیا بیا کوه؛ ځکه دَ هغهٔ تذکره هغهٔ خو دَ مشکو خوشبو ده خومره ئې چې بیا بیا لګوې نو نوره نوره خوشبو خوروي".

نو امام ابو حنیفه ﷫ خو داسې شخصیت وو چې دَ هغهٔ مثال خو دَ مشکو او عنبرو پشان دے، خومره چې دَ هغهٔ تذکره کیږي، نو لکه دَ مشکو او عنبرو خوریږي، داسې هغوي دَ یو بل دَ علم قائل وو، نو دَ امام شافعي ﷫ خبرې چې امام مالک ﷫ واوریدې نو هغه حیران شو، چې دومره ذهین انسان او دومره لوئي عالم، نو هغه ورته وائي: تا دا دومره لوئي علم څنګه حاصل کړے دے؟ هغهٔ ورته پهٔ دوو (۲) شعرونو کښې هغهٔ ټوله خبره ذکر کوي؛ ځکه امام شافعي ﷫ فقیه هم او شاعر هم وو، امام شافعي ﷫ ورته وائي:

شَكَوْتُ إِلَى وَكِيعٍ سُوءَ حِفْظِي　　فَأَرْشَدَنِي إِلَى تَرْكِ الْمَعَاصِي

وَأَخْبَرَنِي بِأَنَّ الْعِلْمَ نُورٌ　　وَنُورُ اللهِ لَا يُهْدَى لِعَاصِي

وائي: "ما خپل استاذ وکیع ﷫ ته شکایت اوکړو: چې زما ذهن کمزورے دے، ما له څهٔ وظیفه راکړه، چې څهٔ خبره واورم نو زما دَ ذهن نه بیا اوځي، وائي: ما ته خپل استاذ وکیع ﷫ اووئیل: چې ګناهونه مهٔ کوه، ګناه پریږده، نو ذهن به دې تیز شي؛ ځکه علم دا دَ الله دَ طرف نه یو نور دے، او الله دا خپل نور ګنانکار انسان له نهٔ ورکوي"، نو چې مونږ او تاسو ټوله ورځ هغهٔ کارونه کوو چې هغهٔ دَ الله دَ غضب سبب دے، نو څنګه به مونږ او تاسو له الله علم راکړي.

**(۲) دریم اثر دَ ګناه: دَ ګناه پهٔ وجه دَ رزق نه محرومي**

دَ ګناه پهٔ وجه انسان دَ رزق نه محرومیږي، او رزق کښې کمے راځي، لکه حدیث کښې راځي:

«إِنَّ الرَّجُلَ لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ بِالذَّنْبِ يُصِيبُهُ».(1)

"يقينًا انسان (بعضې وخت) يَو ګناه اوکړي او دَ هغې دَ وجې نه دَ رزق نه محرومه کيږي".

بنده دَ رزق نه محروميږي په سبب دَ ګناه باندې، چې ګناه اوکړي نو رزق کښې ورته الله کمے راولي، تقوٰی او ګناه دَ يَو بل تضاد دي، تقوٰی څهٔ ته وائي؟ دَ تقوٰی مراتب دي: (۱) اوله مرتبه: دَ شرک نه ځان ساتل، (۲) دويمه مرتبه: دَ محرماتو نه ځان ساتل، (۳) دريمه مرتبه: دَ متشابهاتو نه ځان ساتل، چې کوم شے مشتبه دے: چې دا جائز دے او کهٔ ناجائز دے؟ هغهٔ به هم پريږدي، ديته وائي: "تقوٰی"، څنګه چې تقوٰی سره دَ انسان پهٔ رزق کښې خير او برکت راځي لکهٔ الله فرمائي: ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾.(2)

"څوک چې دَ الله نه اويريږي، ځان کښې پرهيزګاري پيدا کړي الله به دَ هغهٔ دپاره دَ وتلو يَو لار اوکرځوي، دَ هر مصيبت نه به ئې الله رابهر کړي، او دَ داسې ځائے نه به ورته الله زرق ورکوي چې دَ دهٔ به ورباندې هډو خيال نهٔ وي".

دا دَ تقوٰی فائده ده، دَ ګناهونو نه به داسې ځان ساتې لکه څنګه چې دا خپلې کپړې ازغو نه بچ کوي:

خَلِّ الذُّنُوبَ صَغِيرَهَا وَكَبِيرَهَا ذَاكَ التُّقَى
وَاصْنَعْ كَمَاشٍ فَوْقَ أَرْضِ الشَّوْكِ يَحْذَرُ مَا يَرَى
لَا تَحْقِرَنَّ صَغِيرَةً إِنَّ الْجِبَالَ مِنَ الْحَصَى(3)

وائي: "وړهٔ ګناهونه هم پريږدوه او لوئي ګناهونه هم پريږدوه، دغې ته تقوٰی وائي، دنيا کښې زندګي چې تيرَوې نو داسې تيرَوه لکه يَو سړے چې دَ ازغو پهٔ زمکه روانْ وي، او ځان دَ ازغو نه بچ کوي، ګناه ته وړه ګناه مهٔ وايه، دا دومره لوي لوي غرونه چې درته ښکاري دا دَ وړو وړو ګټو نه جوړ شوي دي".

نو کهٔ چرې تهٔ يَو وړه ګناه کوې، بله ګناه کوې نو دَ هغې نه به درته لوئي پند جوړ شي، نو بل اثر دَ ګناه دا دے: چې انسان دَ رزق نه محروميږي، لکه څنګه چې پهٔ تقوٰی باندې دَ انسان پهٔ

(1) أخرجه ابن ماجة في أبواب الفتن، باب العقوبات، برقم: (4022).
(2) [سورة الطلاق:2-3].
(3) انظر: "تفسير ابن كثير" (164/1).

رزق کښې خیر او برکت راځي، دغه شان دَ ګناه په وجه انسان دَ رزق نه محرومیږي.

بعضې خلق وائي: یره جي! ما له داسې وظیفه راکړئ، چې الله زما په رزق کښې خیر او برکت واچوي، لویه وظیفه دا ده: چې ګناه مهٔ کوه، کهٔ لږ رزق وي، خو خیر او برکت به پکښې ډیر وي.

**(٤) څلورم اثر دَ ګناه: دَ الله تعالی نه وحشت محسوسول**

دَ ګناه څلورم اثر دا دے: چې انسان ګناه کوي نو دَ هغې ګناه په وجه انسان وحشت محسوسوي، دَ الله تعالی نه ئې وحشت شي، بیا دا انسان دَ الله دَ دین نه لرې لرې ګرځي، دَ الله دین ته نهٔ نزدې کیږي.

**(٥) پنځم اثر دَ ګناه: دَ نیکانو خلقو نه وحشت محسوسول**

پنځم اثر دَ ګناه دا دے: چې دا انسان دَ نیکانو خلقو نه هم وحشت محسوسوي، لرې والے ترې حاصلوي، څومره چې یَو انسان جُرمونه کوي دومره دَ دهٔ دَ نیکانو خلقو سره تعلق ختمیږي، څومره چې یَو انسان نیکۍ کوي دومره ئې دَ نیکانو خلقو سره تعلق سیوا کیږي، کلهٔ چې یَو انسان ګناه کوي نو دَ هغې ګناهګار انسان تعلق دَ ګناهګار خلقو سره جوړیږي، او کلهٔ چې یَو انسان نیکۍ کوي نو دَ هغهٔ تعلق دَ نیکانو خلقو سره جوړیږي، دَ دې وجې نه علماءِ کرامو ذکر کړي دي: کلهٔ چې یَو انسان په زړهٔ کښې دَ نیک عمل سوچ کوي نو الله تعالی فرښته راولیږي، او دَ هغې انسان توجّو هغې عمل طرف ته پیدا کړي، او هغهٔ عمل صالح ورباندې اوکړي، او کلهٔ چې انسان په زړهٔ کښې دَ ګناه تصوّرات کوي نو شیطان راشي، او په هغې ګناه ئې ورتیز کړي، او هغهٔ ګناه ورباندې اوکړي، نو دَ ګناه اثر دا دے: چې دَ انسان په زړهٔ وحشت راځي، او دَ الله نه ئې لرې والے راځي.

**(٦) شپږم اثر: ګناه سره دَ انسان دَ هر کار نه خیر او برکت ختمیږي**

نو بل اثر دَ ګناه دا دے: چې دَ انسان دَ هر کار نه خیر او برکت ختمیږي، او هر کار په دهٔ باندې مشکل شي، آسان کار به وي، او هغهٔ به په دهٔ باندې ګران شي، لکه څنګه چې تقوٰی باندې ګران کار آسانیږي دغسې په ګناه باندې آسان کار انسان ته ګرانیږي.

بعضې خلق وائي: یره، جي! چې دا څهٔ چل دے چې کوم کار ته لاس اچوم هغه سمے نهٔ خوري، دَ دې وجه ګناهونه دي، تهٔ ګناه پریږده نو تهٔ بیا ګوره! چې ستا هر کار سمے خوري او کهٔ نه؟ خو چې جائز کار وي، او ناجائز کار نهٔ وي.

## (۷) اووم اثر دَ ګناه: ګناه سره په زړهٔ کښې ظلمت راځي

دَ ګناه په وجه دَ انسان په زړهٔ کښې ظلمت راځي، دے بیا دَ دغې ظلمت په وجه جائز او ناجائز نهٔ پیژني، دے په شرکیاتو کښې مبتلاء کیږي، په بدعاتو کښې مبتلاء کیږي، په رسوماتو کښې دے مبتلاء کیږي، چې کوم خلافِ شرع کار دے نو بیا دے دَ هغې مشر وي؛ ځکه چې دَ ده په زړهٔ کښې تیارهٔ راغلې ده.

## دَ ګناه او دَ نیکئ علامات

• دَ ګناه او دَ نیکئ علامات اوپیژنئ! دَ عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دي، هغهٔ وائي: "إِنَّ لِلْحَسَنَةِ ضِيَاءً فِي الْوَجْهِ، وَنُوْراً فِي الْقَلْبِ".[1]

دَ نیکئ اثر دا دے: "چې دِ نیکئ په وجه په مخ کښې نورانیت پیدا کیږي، مخ کښې یَو روښانتیا وي، او دَ نیکئ په وجه زړهٔ کښې هم یَو نورانیت وي".

"وَسَعَةً فِي الرِّزْقِ".

بل دَ نیک عمل اثر دا دے: "چې انسان نیک عمل کويْ الله تعالی دَ هغهٔ په رزق کښې فراخي راولي".

الله تعالی ورله رزق سیوا کوي.

بل دَ نیک عمل اثر: "وَقُوَّةً فِي الْبَدَنِ".[2]

"دې سره دَ انسان په بدن کښې قوّت پیدا کیږي".

تهٔ ګورې نه! دَ شپې دا خوب څومره مزیدار وي، خو چې کلهٔ انسان کښې دَ نیکئ طلب وي نو ما او تا اودهٔ یُو، او چې کومو خلقو کښې دَ نیکئ طلب وي نو هغوي دَ شپې راپاسیدلي وي او الله ته ولاړ وي، دا ولې؟ ځکه دا دَ هغوي دَ نیکو اعمالو نتیجه ده، الله ورله په دې بدن کښې قوّت او طاقت پیدا کړے وي، نو په ما او تا دغه کار ګران شي، او هغوي ته آسان شي، قرآنِ کریم وائي: ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ﴾.[3]

(1) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1)، "أثر الإيمان في تحصين الأمة الإسلامية ضد الأفكار الهدامة": (367/1).

(2) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1).

(3) [سورة البقرة: 45].

الله وائي: "امداد حاصل کړئ، پهٔ صبر او پهٔ مونځ باندې، صبر کول، مونځ کول دا خوئي ډیر ګران خوئي دے (دَ صبر ماده ځان کښې پیدا کول ګران کار دے، مونځ کول ډیر زیات ګران کار دے)، مګر نهٔ دے ګران پهٔ یریدونکو باندې دَ الله نه".

دا مونځ کول ګران دي خو هغهٔ چا ته نهٔ دي ګران چې څوک دَ الله نه یریږي، او چې څوک دَ الله نه نهٔ یریږي نو دا هغهٔ ته ډیر ګران دے، دَ سحر نه تر ماښامه پورې کار کولے شي، بلکه دَ شپې هم مزدوري کولے شي، توله ورځ دَ کرکټ پهٔ میدان کښې منډې وهلے شي، دَ دنیا دپاره دَ یو ملک نه بل ملک ته تلے شي، خو دَ مونځ دپاره دَ کور نه دوه قدمه بهر ته نشي اغستلے، دا دَ ګناه هغهٔ اثر وي چې دَ انسان پهٔ بدن کښې دَ نیکو اعمالو دپاره ضعف پیدا کیږي، دا دَ ګناه هغهٔ اثرات دي.

نو امام ابن قیم رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنه قول نقل کولو: بل اثر دَ نیکئ ابن عباس رضي الله عنه وائي: "وَمَحَبَّةً فِي قُلُوْبِ الْخَلْقِ".[1]

"دَ نیکئ پهٔ وجه دَ خلقو پهٔ زړونو کښې دَ هغې انسان سره محبت پیدا شي".

**دَالله رب العزة سره محبت**

یَو اوږد حدیث کښې راځي: نبي ﷺ فرمائي: "کلهٔ چې الله رب العزة دَ یَو انسان سره محبت کوي نو جبرئیل امین علیه السلام رااوغواړي ورته وائي: اے جبرئیل! دا فلانکے سرے زما دوست دے، دهٔ سره زما محبت دے، خبردار تهٔ ورسره هم محبت اوکړه، نو جبرئیل امین علیه السلام دَ هغهٔ سره محبت شروع کړي، نو جبرئیل امین علیه السلام آسمان ته راشي او فرشتو ته وائي: اے فرشتو! واورئ! دَ دې فلانکي انسان سره دَ الله تعالی ډیر محبت دے، تاسو ورسره هم مینه کوئ، بیا جبرئیل امین علیه السلام زمکې ته راکوز شي، پهٔ زمکه کښې دَ انسانانو پهٔ زړونو کښې دَ هغې انسان سره مینه او محبت پیدا کړي، دَ الله پهٔ حکم سره، نو تمام انسانان دَ هغې انسان سره مینه او محبت کوي (هاں! چې کوم مشرکین او مبتدعین دي نو هغوي به خود بغض او حسد کوي)، او کلهٔ چې الله رب العزة دَ یَو انسان سره بُغض کوي، اول جبرئیل امین علیه السلام ته اووائي: دا فلانکے زما بدي شي، دَ دهٔ سره به تهٔ

(1) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1).

چرته دوستي نهٔ کوي، بغض به ورسره کوي، نو دَ هغې ورځې نه ورسره جبرئیل امین ﷺ هم بغض او دُشمني شروع کړي، جبرئیل امین ﷺ ملائکو ته اووائي: چې دا فلانکے انسان دَ الله تعالی سخت دُشمن دے، تاسو ورسره چرته مینه اونهٔ کړئ، دَ فرشتو ورسره هم دشمني شروع شي، پهٔ زمکه کښې هم الله دَ هغې انسان سره دَ خلقو پهٔ زړونو کښې بغض او حسد پیدا کړي".

دا خلق يَو متل کوي، وائي: "کار خپل کوه او شاباسے دَ کلي اخله"، چې خپل کار کوې خو ښهٔ کار کوې نو خلق به درباندې شاباسے او آفرین وائي، نیکي ځان له کوې او دَ ټولو خلقو به خوښ ئې، او چې بدې کوي نو ځان له به بدي کوي، او دَ ټولو خلقو به بدي شي.

**سیدنا ابن عباس ﷺ دَ گناه اثرات ذکر کوي**

"الجواب الکافي" کښې ابن قیم دَ ابن عباس ﷺ قول نقل کړے، څهٔ حصه ئې اوس دا مخکښې ذکر شوه، مخکښې دَ حسناتو (نیکو) فوائد ذکر شو، او اوس ابن عباس ﷺ دَ سیئات (گناهونو) نقصانات ذکر کوي:

**(۸) اول اثر**

ابن عباس ﷺ فرمائي: "وَإِنَّ لِلسَّيِّئَةِ سَوَاداً فِي الْوَجْهِ".[1]

"دَ بدئ دپاره پهٔ مخ کښې توروالے پیدا شي".

کهٔ يَو ډیر خائسته انسان وي خو دَ هغهٔ دا رنګ پهٔ خلقو باندې غلط لګي، ښهٔ ورباندې نهٔ لګي، دا دَ بدئ هغهٔ اثر دے.

**(۹) نهم اثر**

وائي: "وظُلْمَةً فِي الْقَبْرِ وَالْقَلْبِ".

"دَ بدئ پهٔ وجه دَ انسان پهٔ زړهٔ کښې او دَ دهٔ پهٔ قبر کښې دَ دهٔ دپاره تیارهٔ شي".

قبر کښې به ئې هم توره تیارهٔ وي او زړهٔ به ئې هم دَ تورې تیارې نه ډک وي.

**(۱۰) لسم اثر**

"وَوَهْنًا فِي الْبَدَنِ".[1]

(1) انظر: "الجواب الکافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القیم: (54/1).

دَ بدئ بل اثر دا دے: "دَ انسان پهٔ بدن کښې به وهن (سست والے) پيدا شي".

**دَ منافقٍ دَ مونځ بيان**

قرآنِ کريم کښې چې الله تعالی دَ منافق دِ مونځ ذکر کوي، نو الله فرمائي: ﴿وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَى يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا﴾.(2)

"کلهٔ چې دا منافقان مونځ له اودريږي نو داسې اودريږي چې سُست پست او ناراسته ولاړ وي، دوي خلقو ته ځان ښودنه کوي او دوي نهٔ يادَوي الله لره مګر لږ".

دا کمزوري ولې ده؟ وجه دا ده: چې زمونږ دَ ګناهونو سره تعلق سيوا دے، دا مونځ پهٔ مونږ داسې وي چې کلهٔ به ترې سلام ګرځوو، غټ غټ تکې ترې راغونډ کړو، او زغلو، او مونځ څهٔ وخت کوو؟ پهٔ داسې وخت کښې چې دغه دَ منافق مونځ وي، حديث کښې راځي: "چې منافق پهٔ دې انتظار کښې وي چې کلهٔ به نمر پريوځي، چې نمر پهٔ زيَړيدو شي نو دے به رامنډې کړي..."، اودس کښې به نيم اندامونه اوچ پريږدي او نيم لامدهٔ وي، نو بيا وائي: اِستاجي! مونځ کيږي او کهٔ نهٔ کيږي؟ نو زر نيت اوتړي، نبي ﷺ فرمائي: "دَ چرګ پشان څلور ټونګې اووهي"، پهٔ سيکنډونو کښې څلور رکعته اوکړل، دا دومره پهٔ مونږ باندې ولې بوج دے؟ بوج پهٔ مونږ باندې ځکه دے: چې زمونږ او ستاسو تعلق دَ ګناهونو سره دے، دَ نيکو سره زمونږ تعلق کم دے.

**(۱۱) يَولسم اثر دَ ګناه**

"وَنَقْصًا فِي الرِّزْقِ".

"چې دَ انسان پهٔ رزق کښې کمے راځي".

او کهٔ رزق ئې ډير وي خو دا انسان به مطمئن نهٔ وي.

**حديث قدسي**

حديث قدسي دے، الله پاک وائي: "اِے بنيادمه! تهٔ زما عبادت ته ځان اوزګار کړه، تهٔ زما عبادت له ځان فارغ کړه، زهٔ به ستا غريبي ختمه کړم، او ستا سينه به زهٔ دَ مالدارئ نه ډکه کړم، کهٔ چرې دا کار دې اونهٔکړو نو بنيادمه! شپه او ورځ به دې لاس دَ کار نه نهٔ خالي کوم، او

(1) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1).

(2) [سورة النساء: 142].

غريبي به درته نۀ ختموم".

دَ شپې به هم پۀ کار کښې مبتلا ئې او دَ ورځې به هم پۀ کار کښې مبتلاء ئې، او غريبي به دې نۀ ختميږي؛ نو دا زما او ستا دَ ګناهونو وجه ده، چې څومره ما او تا پۀ ګناه کښې مبتلا کيږو دومره دنيا پسې پۀ منډه کيږو.

**(۱۲) دولسم اثر دَ ګناه**

"وَبُغْضَةً فِي قُلُوبِ الْخَلْقِ".[1]

دَ ګناه سزا دا ده: "چې دَ خلقو پۀ زړونو کښې به مونږ سره بغض او حسد پيدا کيږي".

ګناه به ځان له کوو، او بُغض او حسد به راسره دَ خلقو وي، مثال پۀ طور يَو سړے دے او دے زناکاني کوي، نو دے خو ښۀ ښکلے ځوان دے خو هسې دَ چا پۀ سترګو به ښۀ اولګي؟ ګناه خو ئې ځان له انفرادي ګناه ده، خو دَ خلقو پۀ سترګو دے ښۀ نۀ لګي، دارنګې يَو سړے دے او دے چرس او فوډر څښکي نو دا خو دَ هغۀ ځان له عمل دے، ځان له ئې نقصان دے، خو پۀ ټول کلي کښې هغۀ له څوک ښۀ نۀ ګوري، هر يَو وائي: ګوره! خپل ځان ئې تباه کړو، دَ خلقو پۀ زړونو کښې دَ هغۀ نه نفرت وي، دَ خلقو پۀ زړونو کښې دَ هغې انسان سره بغض او نفرت وي، خو دا ګورے! دَ نيکانو خلقو، "الجِنْسُ يَمِيلُ إِلَى الجِنْسِ" "يَو جنس بل جنس ته ميلان کوي"، مثال پۀ طور يَو سړے دے، زنائي دے، نو دَ زناکارو هغۀ ډير خوښ دے، کۀ يَو سړے غلاکر دے، نو دَ غلا کرو هغۀ ډير خوښ دے، کۀ يَو سړے دهوکه مار دے نو دَ دهوکه مارو خلقو هغۀ خوښ دے، خو محبت دَ نيکانو خلقو به دَ داسې انسان سره نۀ وي، دَ بدکارو خلقو به خو ورسره محبت خود وي.

**دَ مجلس اثر**

دا ياد اوساتئ! دَ هر مجلس اثر وي، نبي ﷺ فرمائي: «الرَّجُلُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ، فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ».[2]

"هر سړے پۀ دين او طريقه دَ خپل دوست باندې چليږي، نو اودې ګوري يَو تن ستاسو نه

(1) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1).

(2) أخرجه الترمذي في أبواب الزهد، باب، برقم: (2378).

چې چا سره ئې دوستانه ده".

کۀ چرې ستا دَ نیکانو سره دوستانه ده، نو آخر به ستا نه نیک سړے جوړ شي، او کۀ چرې بدکارو خلقو سره دې دوستانه ده، نو آخر به درنه بد سړے جوړیږي، کلۀ به هم درباندې دَ هغۀ هغه اثر کیږي، نو دا دَ ګناه اثر دے، چې دَ نیکانو خلقو پۀ زړونو کښې به تا سره بُغض او حسد وي.

**(۱۳) دیارلسم اثر دَ ګناه "حِرْمَانُ الطَّاعَةِ"**

"حرمانِ الطاعة" مطلب دا: چې سړے دَ ګناه پۀ وجه دَ طاعاتو (نیکو) نه محرومه کیږي، مثلا یَو سړے دے چې هغۀ دروغ وائي، نو دے دَ دې دروغو پۀ وجه دَ ریشتیا وئیلو نه منع شوے، یَو سړے دے چې هغۀ پۀ دې خپلو سترګو باندې پردو ښځو ته ګوري، "تي وي" ته ګوري، "وي سي آر" ته ګوري نو دے پۀ دې سترګو دَ الله دَ قدرتونو دَ کتلو نه محرومه شوے دے، یَو سړے دے چې هغۀ ګانې اوري او غیبتونه کوي نو دے دَ ذکر اذکار نه محرومه شوے دے، دَ قرآنِ کریم دَ تلاوت نه دے محرومه شو.

او امام ابن قیم رحمه الله بیا وائي: "فَلَوْ لَمْ يَكُنْ لِلذَّنْبِ عُقُوبَةٌ إِلَّا أَنْ يَصُدَّ عَنْ طَاعَةٍ تَكُونُ بَدَلَهُ".[1]

امام ابن قیم رحمه الله وائي: "کۀ دَ ګناه یَو اثر هم پاتې نشي چې صرف دا یَو اثر ئې پاتې شي چې انسان پرې دَ طاعت نه محرومیږي نو دا هم بس دے"؛ ځکه چې دَ نیکو اعمالو نه خوړې پاتې کیږي، نو دا دَ ګناه اثر دے: چې انسان دَ ګناه پۀ وجه دَ نیکو اعمالو نه پاتې کیږي.

**بدعات ایجاد کول**

دَ دې وجې نه حدیث کښې راځي: "کوم قوم چې بدعات ایجاد کړل نو الله به دَ هغې مقابله کښې دَ هغوي نه سنت طریقه اوچتوي"، نیکي او بدي دا دواړه ضِدَّین دي، دا دواړه پۀ یَو ځائے نشي جمع کیدے، چې تۀ دې نیکئ هم کوې او بدئ دې هم کوې، دا نۀ کیږي: چې "تۀ دې هم شپیلي وهې او هم دې ستوان خورې"، یا به ستوان خورې او یا به شپیلي غږوې، نو کۀ تۀ وائي: چې زۀ دې نیک سړے یم، او دَ ګناهګارو سره دې هم کیښنم نو دا نشي کیدے، چې ګناه کوې، نیکي به درنه پاتې کیږي، او چې نیکي کوې نو ګناه به درنه پاتې کیږي.

(1) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (54/1).

## مثال

مثال په طور: يَو سړے دے، او هغهٔ "ټي وي" ته ناست دے، دَ دې اثر دا دے: چې دَ دې انسان نه به مونځ پاتې کيږي، کهٔ مونځ ترې پاتې نشي نو جَمع به ترې خو پاتې کيږي، او ګنې درس دَ قرآنِ کريم به ترې نه پاتې کيږي، يَو سړے دے غيبت کوي، نو دَ دې اثر دا دے: چې دَ دهٔ نه به بل دَ نيکۍ کار پاتې کيږي، دا دَ هرې ګناه اثر دے چې ګناه راځي نو نيکي به دَ هغهٔ سره ځي.

**(١٤) څوارلسم دَ ګناه اثر: دَ عُمر نه خير او برکت ختميدل**

بل اثر دَ ګناه دا دے: چې دَ دې سره دَ انسان عمر نه خير او برکت ختميږي، دَ خير او برکت دا مطلب نهٔ دے چې دا سل (١٠٠) کاله عمر به ئې پنځوس (٥٠) کاله شي، دغه سل (١٠٠) کاله عمر به ئې وي خو دغې سلو کالو عمر کښې به دَ پنځوس (٥٠) کالو هومره کار نهٔ وي کړے، دَ يَو سړي به سل (١٠٠) کاله زندګي وي، دَ بل به پنځوس (٥٠) کاله زندګي وي، هغې پنځوسو (٥٠) کالو والا به ترې ډير کار کړے وي، دَ دنيا به ئې هم ډير کړے وي او دَ آخرت به ئې هم ډير کړے وي، دا ولې؟! ځکه دَ دهٔ پهٔ عُمر کښې الله خير او برکت اچولے دے، او دَ بد عمله انسان پهٔ عمر کښې خير او برکت نشته دے، تاسو اوګورئ! خلق بوډاکان شي او دَ بوډا والۍ پورې هغوي هغهٔ خپل مونځ هم نهٔ وي سم کړے، دا دَ ګناهونو هغهٔ اثر وي، او کهٔ بيا ډير کوشش کوي نو ژبه ئې پرې نهٔ راوړي، دَ ګناه اثر دا دے: چې دَ انسان پهٔ عمر کښې به خير او برکت نهٔ وي.

**پهٔ عمر کښې برکت**

دَ انسان پهٔ عمر کښې چې برکت راځي، نو پهٔ دوو څيزونو سره راځي، نبي ﷺ فرمائي: "څوک چې دا غواړي چې دَ هغهٔ پهٔ عمر کښې خير او برکت راشي نو «فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ»،[1] نو دے دې خپلوَلي پالي".

خپلولي پالل د چې غم ښادي دې چا سره نهٔ پريږدي، نن معاشره کښې اوګوره! دَ هر سړي دَ بل سړي سره نالګي ده.

بل دا چې دَ خلقو نه دعاګانې اخلي، دَ نيکانو خلقو دعاګانې اخلئ، دَ هغوي خدمت کوئ، چې دعاګانې درته کوي دعاء سره پهٔ عُمر کښې خير او برکت راځي؛ ځکه نبي ﷺ فرمائي: «وَلَا

(1) أخرجه البخاري في كتاب البيوع، باب من أحب البسط في الرزق، برقم: (2067).

يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ». (1)

"پۀ عُمر کښې زيادت نۀ راځي مګر پۀ نيکئ او خيګړې کولو سره".

نو عمر زياتيږي نه؛ ځکه دا خو دَ انسان دَ پيدائش نه مخکښې ليکلے شوے دے، چې دومره عمر به ئې وي، برکت پۀ عمر کښې راځي دَ نيکئ او خيګړې پۀ وجه چې تۀ نيکانو خلقو سره ښيګړه اوکړې او هغه تا ته دعاء اوکړي نو دې سره عمر کښې برکت راځي، نو دَ نيکانو خلقو نه دعاګانې اخلئ.

دا ياد اوساتئ! دَ چا آزار مۀ اخلئ، څوک خفه کوئي مه، حديث کښې راځي: «اتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ، فَإِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ حِجَابٌ». (2)

"دَ مظلوم دَ ښيرو نه ځان اوساته؛ ځکه مظلوم دَ دې ښيرو او دَ الله پۀ مينځ کښې څۀ پرده نشته".

کلۀ چې مظلوم دلته آواز اوکړي، نو فورًا الله هغۀ آواز قبلوي، دَ هغۀ چا دَ ښيرو نه ځان بچ کوه چې دَ هغوي بغير دَ الله نه بله څۀ ايله نۀ وي.

نو مقصد مې دا دے: چې دَ نيک عمل سره دَ انسان پۀ عُمر کښې خير او برکت راځي، او دَ بدئ سره دَ انسان دَ عمر نه خير او برکت ختميږي.

**(۱۵) پنځلسم اثر دَ ګناه: دَ امام ابن القيم رحمه الله قول**

امام ابن القيم رحمه الله وائي: دَ بدئ بل اثر دا دے: چې "أَنَّ الْمَعَاصِيَ تَزْرَعُ أَمْثَالَهَا، وَتُولِدُ بَعْضَهَا بَعْضًا". (3)

"چې دا ګناه ډيريږي، بچې راوړي".

وائي: نيکئ هم سيوا کيږي، بچې راوړي، نو ګناهونه نور نور سيوا کيږي، نن دې يَو ګناه اوکړه، نو صبا به دوه ګناهونه کوې، نن دې دوه ګناهونه اوکړل نو بله ورځ به درې کوي، دغسې به وريسې پۀ بره باندې ځې، او چې نن دې يَو نيک عمل اوکړو، صبا به الله دَ بل نيک عمل توفيق درکوي، دوه نيکئ به کوې، بله ورځ به الله دَ بل عمل توفيق درکوي، نو ورځ تر ورځ به نيکئ سيوا کيږي.

(1) أخرجه الترمذي في أبواب القدر، باب ما جاء لا يرد القدر إلا الدعاء، برقم: (2139).
(2) أخرجه البخاري في كتاب المظالم والغصب، باب الاتقاء والحذر من دعوة المظلوم، برقم: (2448).
(3) انظر: "الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي أو الداء والدواء" لابن القيم: (55/1).

**(١٦) شپاړلسم اثر دَ ګناه: دَ توبې نه پاتې کېدل**

دَ دې وجې نه دَ ګناه بل اثر دا دے: چې دَ دې په وجه انسان دَ توبې نه پاتې کېږي، چې ګناهونه زیات شي، نو ته به دَ کومې کومې ګناه نه توبه اوباسې، دَ دهٔ بیا هر څهٔ ته خیال وي خو توبې ته ئې خیال نهٔ وي، دا دَ ګناه اثر دے.

**(١٧) اوولسم اثر دَ ګناه: دَ ګناه سره عادت کېدل**

بل اثر دَ ګناه دا دے: چې کلهٔ انسان ګناه کوي نو دے دَ هغې ګناه سره عادت شي، بیا ورته ګناه ګناه نهٔ ښکاري، بلکه دے بیا په هغې ګناه باندې فخر کوي، دا څومره ګناهونه چې نن دې ملک کښې عام دي، دَ دې وجه دا ده: چې دا ګناهونه مونږ کوو، دَ بار بار کولو دَ وجې نه مونږ ته دَ هغې په کولو ځان بد نهٔ ښکاري، زنانه خو داسې حد ته اورسیدې، چې هغوي دَ خلقو په مخکښې سندرې وائي، او پروا ئې نشته، "ټي وي" او "وي سي آر" هر کور کښې پروت دے، ښځه بچي خاوند ټول ورته په شریکه باندې ګوري، ولې چې هغه شرم دَ سرې نه ختم شي، دا دَ ګناه اثر دے: چې ګناه سره عادت شي نو بیا ګناه ورته ګناه ښکاري هم نه.

**دَ ښکاره ګناه کونکي حال**

رسول الله ﷺ فرمائي: «كُلُّ أُمَّتِي مُعَافًى إِلاَّ المُجَاهِرِينَ».[1]

"زما ټول امت به الله معاف کړي، خو هغهٔ سړے الله نهٔ معاف کوي چې کوم سړے ښکاره په ښکاره ګناهونه کوي".

دا یاد اوساتئ! علماء کرام ذکر کړي دي: "چې ګیره خریل دا ښکاره ګناه ده؛ ځکه دا خو ټولو خلقو له مخامخ ښکاري، دا په ګناه کبیره کښې راځي"، بعضې خلق وائي: ګیره پرېخودل سنت دي، سنت خو ورته ځکه وائي؛ چې دَ دې ثبوت په سنت راغلے دے، ګني دا واجب دي، دا دَ یَو پیغمبر نه بلکه دا دَ تمامو پیغمبرانو سنت دي، چا دا نهٔ دي نیولي چې یَو پیغمبر یا یَو صحابي یا یَو عالم چرته ګیره خرئیلي وي، دا ښکاره ګناه ده، او دَ ښکاره ګناه کونکي معافي نشته.

**دَ الله په بنده پرده اچول**

نبي ﷺ فرمائي: کلهٔ کلهٔ الله رب العزة په انسان پرده واچوي، دا دَ الله احسان دے، چې

(1) أخرجه البخاري في كتاب الأدب، باب ستر المؤمن على نفسه، برقم: (6069).

مونږ او تاسو ګناهونه اوکړو فورًا الله تعالی سزا هم نۀ راکوي، او پرده راباندې واچوي، خو دا بنده دومره بے حیاء وي چې سحر دے خپله خلقو ته له وائي: يره! بيګا مې خو دا ګناه کړې وه، بيګا مې زناء کړې وه، او بيګا فلانکي ځائے کښې مجلس وو هلته تلے اوم، نو الله درباندې پرده اچولې وه، هيچا ته ئې نۀ ئې ښکاره کړے، او دا ظالم پخپله باندې خلقو ته وائي: چې بيګا مې داسې ګناه کړې وه، دا ولې هغۀ حياء دَ انسان دَ سترګو نه ختمه شي؟ دا دَ ګناهونو اثرات دي، او دا ډير شے دي.

رونړوا کمال دا دے: چې ځان دَ ګناه نه بچ کوئ، ګناه ته وره مۀ وايئ، چې هره ګناه ده، چې شريعت کښې ورته ناروا وئيلې ده، دَ هغې نه ځان بچ کوئ، دَ دې کمال به دا وي: چې دَ نيکو اعمالو توفيق به پۀ بدن کښې سيوا کيږي، او چې څومره ګناه سيوا کيږي دومره به انسان دَ نيکو اعمالو نه لرې کيږي.

الله رب العزة دې مونږ له دَ نيکو اعمالو توفيق راکړي (آمين!).

وَآخِرُ دَعْوٰنَا أَنِ الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

ادارة الكتابة والتوزيع

کاتب: ابو عبد الله ضیاء الرحمن الحنفي
مردان طورو میرو أمان کوٹ
0307-5134893
ہم سے آنلائن کتاب ٹائٹل کی کتابت اعلی کمپوزنگ صفحہ پرنٹنگ وغیرہ کیلئے رابطہ کرسکتے ہیں.

تاريخ اختتام الكتابه: 03/اكتوبر/ 2021ء بمطابق: ۲۶ صفر ۱٤٤۳ھ بيوم الأحد، بوقت: 02:17 م

# پدې کتاب کښې تا سو لوستلے شئ

(۱) دنبي ﷺ سره مینه لازمه ده

(۲) په دین قرباني

(۳) نهی عن المنکر

(۴) رِدِ بدعات

(۵) عیدمیلاد نبي

(۶) عُرس

(۷) ذکر بالجهر(په زوره ذکر کول)

(۸) دسنتو نه روستو په جمع دُعاء کول

(۹) دجنازي نه روستو دُعا

(۱۰) دمړي دکور نه خوراك کول

(۱۱) زيارة القبور

(۱۲) واده کول سنت دی

(۱۳) دواده رسم او رواج

(۱۴) دمحرم رسم او رواج

(۱۵) دصفر دمیاشتی رسومات

(۱۶) د شعبان دمیاشت رسومات

(۱۷) په شریعت کی دخوشحالی طریقه

(۱۸) په شریعت کی دغم طریقه

(۱۹) دشیطان وسوسی

(۲۰) دګنا هونو اثر